

د افغانستان اسلامي جمهوري دولت

د علومو اکاډمي

د اطلاعاتو او عامه اړیکو ریاست

# د سوات پښتو ادب او ثقافت

ډاکټر محمد علي دیناخېل

۱۳۹۹ هـ ل

د دې اثر د پښتي او د ضميمو د تصويرونو لپاره د سواتنامه ويبپاڼې (www.swatnama.com، www.pinterest.com)
او د ډاکټر سلطان روم او محمود خان صاحب مننه کوم!
ډاکټر محمد علي ديناخېل


## د کتاب ځانګړنې

**د کتاب نوم:** د سوات پښتو ادب او ثقافت
(د Ph.D تيزس)

**ليکوال:** ډاکټر محمد علي ديناخېل

**ايډيټ او اهتمام:** رفيع الله نيازی

**خپرندوی:** د افغانستان د علومو اکاډمي، د اطلاعاتو او عامه اړيکو رياست
(Academy of Scincess of Afghanistan)

**د چاپ ځای:** الهام نبي زاده، کابل - افغانستان

**د چاپ کال:** ۱۳۹۹هـ. ل. /۲۰۲۰ ز

**د چاپ شمېر:** ۵۰۰ ټوکه

**ISBN:** ۹۷۸-۹۹۳۶-٦٤٥-۸۰-٦

# د خپرندوی یادښت

«سوات» د پښتونخوا په شمال ختیځه څنډه کې پرته یوه ښکلې لرغونې او تاریخي سیمه ده او د ختیځ سویزرلېنډ بلل کېږي، چې د پېښور او مردان شمال ته د ملاکنډ له غاښي سره ګډه پوله جوړوي. که يې تاريخي شالید ته وګورو، نو لرغونتیا یې له میلاده څو پېړۍ وړاندې زمانو ته رسي. مقدوني سکندر چې له اوسني کونړ څخه د افغانانو د مقاومت او کلکې مقابلې په نتیجه کې په تېښته د چمرکنډ پر لار له پښتونخوا څخه هند ته روان شو، نو د ۳۲۷ق. م کال شاوخوا د یوروګوس (اوسنۍ پنجکوړې) له سیندګي پورې ووت، د کوز سوات درې ته ننوت او (اساګونا) یا سواتیانو پښتني قبیلې له سختې جګړې او مقابلې سره مخامخ شو، دې سیمې تر سکندر وروسته د کوشانیانو، ساسانیانو او بودایانو، په ځانګړې توګه د هندي راجاګانو د واکمنۍ د دورو بیلابېل یرغلونه او تاړاکونه هم ولیدل.

وايي د هندي راجاګانو وروستی واکمن(راجاګرا) د سوات د بګرام غره لمرخاته ته یوه ټینګه او کلکه کلا جوړه کړې وه، چې په هغه پسې سلطان محمود غزنوي هغه مهال چې هند ته د اسلام د سپېڅلي دین د خپراوي په موخه روانېده نورغازي پیرخوشاب په نوم یو پیاوړی پښتون سرلښکر یې له هندوانو څخه د سوات د نیولو لپاره ولېږه، هندي راجا یې کلابند او لویه سوبه د مسلمانانو په برخه شوه، هندوان وتښتېدل او پر ځای یې د پښتنو (دله زاک) قبیله مېشت شوه، چې بیا وروسته په نهمه هجري پېړۍ کې یوه بله پښتني قبیله (یوسفزي) د مغولي حکمرانانو د زور زیاتي له امله له افغانستان څخه دغې سیمې ته ور کډه شول، له دله زاکو پښتنو یې هغه ونیوله او پخپله پکې مېشت شول، چې تر ننه پکې اوسي. مغولي واکمن بابر چې پر هندوستان یرغل کاوه په سوات کې یې له ملک شاه منصور یوسفزي سره خپلوي وکړه او ددغه ځای د پښتنو لښکرو پر مټ یې په هندوستان کې د لودي پښتنو حکومت رانسکور او پخپله د واک پر ګدۍ کېناست. د انګرېزي ښکېلاک په زمانه کې، په ځانګړې توګه د ډیورنډ د تحمیلي کرښې له تېرېدو وروسته د انګرېزي یرغلګرو تر ولکې لاندې راغی، خو کور دننه خپلواکي یې لرله او پر دوو برخو د هند د لویې نیمې وچې له وېش وروسته هم تر ۱۹۶۹م کال پورې سیدعبدالجبار شاه، میا

عبدالودود او میاګل جهانزیب په ترتیب سره د سیمه ییز حکومت (سوات ریاست) واکمنان وو او بیا دغه حکومتولي په شمال مغربي صوبې(صوبه سرحد) کې مدغم او کور دننه خپلواک حیثیت یې ختم شو.

په هر صورت له دې پورته لنډو یادونو څخه دا څرګندېږي چې له ډېرو لرغونو زمانو د تاریخ د په بهیر کې د پښتونخوا دغه لرغونې ښکلې او سمسوره سیمه د خپل جغرافیوي موقعیت او سیاسي ستراتیژیک اهمیت له مخې د بېلابېلو دورو د مدنیتونو، تهذیبونو، ثقافتونو د راټولېدو او له دې ځایه د خپرېدو او په ټوله کې د علم، ادب او فرهنګ د روزنې، پالنې، ودې او پرمختیا ټاټوبی او مرکز پاتې شوی، نو ځکه د ډېرو لرغونو زمانو د آثارو نښې نښانې پکې اوس هم تر سترګو کېږي. ویلای شو چې د پښتونخوا سیاسي تاریخ او د پښتو ژبې او ادب عمومي تاریخ په دغه سیمه کې د رامنځته شویو ملي، سیاسي او ادبي ـ فرهنګي غورځنګونو د ویاړلو ملي او سیاسي مبارزو او ادبي ـ فرهنګي آثارو او افکارو له مطالعې او یادونې پرته نیمګړي ښکاري. تر کومه چې خبره په پښتو ژبه او ادب پورې اړه لري، د شیخ ملي دفتر، د خان کجو تاریخ، د اخون درویزه مخزن الاسلام او دده د نورو لارویانو او پلویانو ډېر منظوم او منثور آثار او د خوشحال خان خټک سواتنامه او له میانور سره یې ادبي او سیاسي مناظرې ټولې د پښتونخوا په دغه سمسورې او ښکلې سیمې (سوات) کې پنځېدلي او رامنځته شوي دي او پر دې ټولو سربېره د واکمنو حکومتونو په دربار او دفتر کې د پښتو ژبې او پښتنو په ادبي او سیاسي تاریخ کې لومړی ځل د رسمي کېدو او دفتري کېدو ویاړ هم په ټولې لویې پښتونخوا کې دغلته د سیمه ییز حکومت (سوات ریاست) په برخه شوی دی. د سوات دې ټول علمي ـ فرهنګي، تاریخي، سیاسي اهمیت او ارزښت ته په کتو د پښتونخوا ځوان پیاوړي لیکوال او څېړونکي ښاغلي محمدعلي دیناخیل په علامه اقبال اوپن یونیورسټي کې د لوړو زده کړو پر مهال د خپل پي ایچ ډي تیزس لپاره( د سوات پښتو ادب او ثقافت) موضوع د څېړنې لپاره خوښه کړې، د ښاغلي ډاکټر عبدالله جان عابد په لارښوونه یې په ۲۰۱۷م کال بشپړه او له یاد پوهنتون څخه یې پرې د Ph. D لوړ علمي سند ترلاسه کړی دی.

نوموړي خپله دغه څېړنیزه مقاله په دې لاندې ترتیب په اوو څپرکو(بابونو) کې بشپړه کړې ده:

په لومړي باب(پېژندګلو) کې د موضوع په اهمیت، مبرمیت، د څېړنې موخې او هدف، پوښتنو، د بابوبو وېش، څېړندود(مېتود) او ... پر ښودنې سربېره د تهذیب په لغوي اصطلاحي معنا، تمدن او تهذیب، ثقافت یا کلچر او د هغو تر مینځ د اړیکو په باب لنډې، خو جامع څرګندونې لري. دویم باب د شالید (پس منظر) مطالعه ده چې پکې پر هغو آثارو بحث او کره کتنه شوې چې د اړوندې موضوع په هکله د مخه خپاره شوي دي. درېیم باب د سوات لنډ تاریخ او د جغرافیوي څرنګوالي پېژندنې ته ځانګړی شوی دی. څلورم باب د پښتنو په زمانه کې د سوات ادب او ثقافت (اول نه تر ۱۹۱۵م کال پورې) په سوات کې پښتو او پښتانه، د پښتو ادب په ودې او پرمختیا او دغلته په رامنځته شویو ادبي او تاریخي آثارو، ادبي غورځنګونو، پښتو پنځیدلي ولسي ادب، دودونو، عنعنو او نورو ډېرو اړوندو موضوعاتو هر اړخیز بحثونه لري.

پنځم باب ته «د سوات په ریاستي دور کې (۱۹۱۵- ۱۹۶۹م) پښتو ادب» سرلیک ورکړل شوی، چې پکې په دغه دوره کې د پښتو ژبې او ادب د ودې او پرمختیا بهیر، د پنځیدلي او رامنځته شوي نوي معاصر ادب، آثارو او افکارو په رڼا کې په تحلیلي بڼه څېړل شوی او د هغه وخت د ټولنیز نظم او نظام، دود، دستور پر څرنګوالي هم بحثونه شوي دي. په شپږم باب کې چې د (سوات پښتو ادب او ثقافت د ریاست سوات ادغام او ټولنیز بدلون) نومېږي، د پښتونخوا په دغه تاریخي سیمه کې د سیاسي او ټولنیزو بدلونونو په رڼا کې د پښتو د اوسني ادب او فرهنګي بهیر د ودې او پرمختیا څرنګوالی او څومره والی، د ادب او فرهنګ او همدارنګه د ټولنیز ژوند په بیلابېلو برخو کې د ترسره شویو څېړنیزو او تخلیقي علمي او عملي کارونو د بېلګو او مثالونو په ښودلو سره په ښه علمي، ادبي اکاډمیکه بڼه تشریح شوي دي. په اووم باب کې د ټولو بابونو لنډیز، نچوړ او نتیجه راغلې. په وړاندیزونو، سپارښتونو، ضمیمو او د اخځلیکونو په عمومي لیکلړ سره دغه څېړنه پای ته رسېدلې ده.

د ښاغلي ډاکټر محمد علي دیناخیل څېړنیز اثر( د سوات د پښتو ادب او ثقافت څېړنه) به نه یوازې دا چې د پښتو ژبې او ادبیاتو څېړونکو، استادانو او زده کړیالانو ته د خپلو لیکنو، څېړنو، زده کړو او ادبي مطالعاتو ترسره کولو لپاره ډېر ګټور مستند معلومات په واک کې ورکړي، بلکې په عام ډول به د سوات د تاریخ، فرهنګ، ثقافت او د خلکو د ټولنیز ژوند ژواک د پېژندنې او پرې پوهېدنې لپاره تاریخ لیکونکو، بشر پوهانو، ټولنپوهانو،

لرغونپوهانو، سیاستوالو او د پښتني کلتور او فولکور څېړونکو ته د یوې معتبرې باوري معلوماتي سرچینې په توګه په کار ورشي او د اړوندو موضوعاتو په برخه کې به د خپلو مطالعاتو او څېړنو لپاره به نوې سوژې او غوره لارې چارې هم ومومي.

همدې علمي، ادبي ـ فرهنګي ارزښت او اهمیت ته په کتو د افغانستان د علومو اکاډمي دغه څېړنیز اثر خپروي، نو یې د کتنې او سمون چارې د خپرونو د کمېسیون له خوا د علومو اکاډمي علمي منشي ښاغلي څېړنوال رفیع الله نیازي ته وسپارل شوې.

موږ له ښاغلي ډاکټر دیناخیل، چې دا اثر یې د چاپ لپاره زموږ په واک کې راکړ او له ښاغلي نیازي، چې دا اثر یې په وروستۍ کتنه او چاپ زیار خپرېږي، مننډوی یوو، دواړو څېړونکو ته په علمي ـ فرهنګي چارو کې د لابریالیتوبونو او غوره خدمتونو هیله کوو.

په درنښت

څېړنپوه ډاکټر عبدالظاهر شکېب

د علومو اکاډمۍ رئیس

کابل، د تلې پنځه ویشتمه، ۱۳۹۹لمریز کال

# لیکلړ

**سرلیک** **مخ**

## خلورم باب

## د پښتو په زمانه کې د سوات پښتو ادب او ثقافت

**پينځم باب**

**په رياستي دور کې د سوات پښتو ادب اوثقافت**

## شپږم باب

## د سوات پښتو ادب او ثقافت

## اووم باب

## په یویشتمه پېړۍ کې د سوات پښتو ادب او ثقافت

# مننه

په ۲۰۱۷م کال کې ما ته د علامه اقبال اوپن یونیورسټۍ د پاکستاني ژبو له څانګې څخه د ډاکټریټ ډګري راکړل شوه. زما د ډاکټریټ د مقالې (تهیسېس) موضوع "د سوات د پښتو ادب تهذیبي او ثقافتي مطالعه : اول نه تر ۲۰۱۲ پورې" وه. زما دا کتاب هم زما د ډاکټریټ په دغه مقاله مبني دی. په دې مقاله کې له لږ و ډېر بدلون وروسته د اختصار په خاطر ما د کتاب د نوم لپاره د مقالې هغه سرخط هم بدل کړ او کتاب ته مې نوم "د سوات ادب او ثقافت" غوره کړ. دا یو تحقیقي کار و، چې له ما سره پکې ځینو ادارو او افرادو مرسته کړې، نو لازم ګڼم چې د هغو ادارو او افرادو مننه وکړم.

زه له هائیر ایجوکېشن کمېشن څخه مننه کوم چې ماته یې زما د تحقیق په سلسله کې د جرمني د برلین هومبولډ پوهنتون ته د تللو لپاره سکالرشیپ راکړ.  په جرمني کې په هومبولډ یونیورسټۍ کې د خپل استاذ پروفېسر لوټس ژهاک هم مننه کوم، چې هغه ما ته د یو وېزېټېنګ سکالر په حیث د هومبولډ یونیورسټۍ سنټرل ایشین سیمینار ته د راتګ دعوت راکړ او په دغه دوران کې یې زما د مقالې د ځینو حصو ډېره په غور مطالعه او اصلاح وکړه. د هائیر ایجوکېشن کمېشن یو ځل بیا هم مننه کوم چې ما ته یې د پي ایچ ډي په دوران کې د روسیې سېنټ پیټرزبرګ پوهنتون ته په یو بین المللي کانفرنس کې د خپلې مقالې د وړاندې کولو لپاره ټرېول ګرانټ منظور کړ.

د ښاغلي ډاکټر عبدالله جان عابد ډېر شکر ګزار یم، چې د هغوی په نګرانۍ کې ما دا مقاله سر ته ورسوله. د سوات د جهانزېب کالج د تاریخ څانګې پروفیسر ډاکټر سلطانِ روم صېب یو جهان مننه کوم چې زما مقاله یې د کره کتنې په غرض ولوستله او د تحقیق په موادو کې یې هم زما ډېره مرسته وکړه. له دې علاوه چې چا له ما سره د څېړنې په دې کار

کې څه نا څه مرسته کړې، د هغوی نومونه په ډېر درناوي او له ډېرې شکرېې سره دلته ليکم، لکه: ډاکټر عطش دراني، ډاکټر عبدالواجد تبسم، ضيا بلوچ، ډاکټر حاکم علي برړو، ډاکټر نورالبصر امن، ډاکټر سيد ظفرالله بخشالی، ډاکټر علي خېل درياب، پروفيسر فضل سبحان (مټه کالج)، نورالبصر بصر، حنيف قيس، فضل ربي راهي، ابراهيم شبنم، نذير احمد بشيري، ډاکټر شاه خالد شاهي او د سوات د جهانزېب کالج لائبريري اسسټنټ شاه وزير خان خاکي. له شخصي کتابتونونو(لائبريريانو) علاوه چې له کومو کتابتونونو څخه ما استفاده کړې، هغه دا دي: سټېټ لائبريري برلن جرمني، هومبولډ يونيورسټي برلن لائبرېري، برټش لائبريري لندن، قائد اعظم يونيورسټي لائبريري اسلام اباد، ارکائيوز لائبريري پېښور، پښتو اکېډمۍ پېښور يونيورسټۍ لائبريري، پېښور يونيورسټي ايريا سټډي سنټر لائبريري، علامه اقبال اوپن يونيورسټۍ لائبريري، گورنمنټ ډگري کالج لاهور لائبريري،گورنمنټ پوسټ گريجوېټ جهانزېب کالج سوات لائبريري،گورنمنټ پوسټ گريجوېټ کالج مټه سوات لائبريري، ميونسپل کميټي مينگوره لائبرېري، پبلک لائبرېري سوات او داسې نور. د دغو ټولو کتابتونونو له عملې د زړه له تله مننه کوم، په ځانگړې توگه د سوات د جهانزېب کالج د لائبريرين علي اکبر صاحب ډېره مننه کوم، چې زما لپاره يې د کتابتون دروازې هر وخت پرانستې ساتلې دي. د جهانزېب کالج د لائبرېرۍ د اسسټنټ خواجه سميع الله عرف طوطا هم ډېره مننه کوم چې هر وخت يې په روڼ تندي مرسته کړې ده. د TARC(ټرايبل ايرياز ريسرچ سيل) ريکارډ کتلو کې د دغې ادارې يو چارواکي لياقت علي راسره ډېر تعاون کړی دی. د سوات ريکارډ روم او د خوازه خېلې د تحصيل د ريکارډ عملې هم مرسته کړې، مننه ترې کوم. د لندن په برټش لائبرېرۍ کې راسره زما ملگري ډاکټر شاه خالد شاهي او پروفيسر جېمز کېرون مرسته کړې، د هغوی هم مننه کوم او د دې کتاب د ټايټل جوړولو لپاره زه د محمد مجتبی همايون صاحب هم مننداوی يم.

له يوې باوري علمي او څېړنيزې ادارې څخه کتاب خپرېدل ډېر لوی اعزاز وي، زه د افغانستان د علومو اکېډمۍ د رئيس ښاغلي ډاکټر عبدالظاهر شکيب او د دغې اکېډمۍ د نشراتي کمېشن له ټولو غړو مننه کوم چې زما د کتاب د چاپولو منظوري يې ورکړه. د څېړنوال رفيع الله نيازي هم ډېره مننه کوم چې د کمېشن له منظورۍ وروسته يې د کتاب د خپرولو اهتمام وکړ.

زه خپل مور او پلار ته لاس په نامه په ډېر احترام سره دعا کوم چې الله دې ورته له ښه صحت سره ډېر عمر ورکړي، د هغوی پالنې او روزنې زه د دې جوګه کړم چې زه نن د تعلیم یافته خلکو په شمار کې راځم. سره له دې چې زما مور او پلار دواړه بې تعلیمه دي، خو زه ورته اعلیٰ تعلیم یافته په دې وایم چې ماته یې د تعلیم موقعه راکړه، زما لوړې زدکړې زما د موروپلار یو ارمان و او زه نن ډېر خوشحاله یم چې د هغوی په ژوندانه د هغوی دغه ارمان پوره شو، الله دې زما د موروپلار سېوری همېشه زما پر سر لري. زما مشر ورور محمد عمر او زما کشر ورور خیال محمد هم زما بوج له ما سره واخسته او ما ته یې د مطالعې لپاره زیات وخت راکړ، الله دې یې تل خوشحاله لري. زه د خپلو خویندو او د کورنۍ د لویو وړو مننه کوم چې په څه نه څه شکل یې له ما سره مرسته کړې ده.

که زما د کوروداني یاسمین بي بي مینه او مرسته نه وای، نو زما پوره باور دی چې دا کار د کېدلو نه و، ځکه چې زما د علمي ژوند ډېرې ستړې د هغې په مینه او مرسته کمې شوې دي، هر وخت یې زما د مطالعې لپاره یو پر سکون ماحول جوړ کړی او همدغه پر سکون او مینه ناک ماحول زه د دې جوګه کړم چې خپل کار مې سر ته ورساوه، د زړه له تله ترې مننه کوم.

ډاکټر محمد علي دیناخېل

پېښور پوهنتون

فروري ۲۰۲۰

alidinakhel@gmail.com

# د کتاب خلاصه

## (Abstract)

په تاریخي دستاویزاتو کې تر ټولو لومړی د سوات ذکر یوه یوناني تاریخپوه اریان (Arrian) کړی دی. سکندر اعظم په ۳۲۷ ق م کې سوات ته راغلی و. د چیني سیلانیانو له سفرنامو پته لګي چې دلته بدهـ مت ښه ترقي کړې وه او بیا وروسته هندومت د دې علاقې مذهب و. په یوولسمه پېړۍ(صدۍ)کې د محمود غزنوي لښکر د سوات زاړه اوسېدونکي (ګوجر او کوهستاني) د سوات غرونو ته په تېښته مجبوره کړل. د محمود غزنوي د لښکر له حملو سره دلته اسلام راغی او په همدغه وخت کې دلته په وړومبي ځل پښتانه راغلل. په شپاړسمه پېړۍ کې دلته یوسفزي پښتانه راغلل، له زړو سواتیانو څخه یې سوات قبضه کړ او قبایلي ژوند یې تېرولو. د یوسفزو له راتګ سره په سوات کې د پښتو ادب په نظر راځي. په۱۹۱۵م کال کې په سوات کې د یو منظم ریاست بنیاد کېښودل شو. د دې ریاست سرکاري ژبه اول فارسي وه او د ۱۹۳۷م په جون کې پښتو د دې ریاست سرکاري او دفتري ژبه وګرځول شوه. د پښتو ادب کتابونه به د ریاست په پیسو چاپېدل او خلکو ته به یې مفت ورکول. دلته به په "جهانزېبي مشاعرو" کې د پښتونخوا شاعرانو برخه اخسته او دا مشاعرې به په کتابي صورت کې چاپېدلې. په ۱۹٦۹م کال کې دا ریاست په پاکستان کې ضم کړی شو، په پاکستان کې د ریاست سوات له ضم کولو وروسته دلته یوه ائیني او انتظامي خلا جوړه شوه چې د هغې او څه نورو عواملو له کبله دلته ډېرې مسئلې او تحریکونه پیدا شول او هر قسمه خلکو ته د اړې ګړې موقعه په لاس ورغله. د پښتنو له راتګ وروسته که په دې تناظر کې مونږ وګورو نو د سوات په تاریخ کې مختلف دورونه په نظر راځي، لکه له ریاست وړاندې د پښتو دور، د ریاست دور، له پاکستان سره له ضم کېدو وروسته دور او بیا د یوویشتمې پېړۍ د اړې ګړې دور او نور.

د سوات د تاریخ په دې ټولو دورونو کې په سوات کې پښتو ادب ښه ترقي کړې او د هر دور د ادب له مطالعې څخه د هغه دور د تهذيبي او ثقافتي ځانګړتیاوو او د ټولنیزو (سماجي) بدلونونو پته تر ډېره حده لګي. د سوات د تاریخ په دې مختلفو دورونو کې چې کوم ټولنیز(سماجي)، تهذيبي او ثقافتي بدلونونه راغلي، د هغې اندازه هم د سوات له پښتو ادب څخه لګي، چې په دې کتابکې پرې په تفصیل سره بحث شوی دی.

# لومړی باب

# پېژندګلو

## د موضوع اهمیت

ټول ټولنیز (سماجي) علوم له انسان څخه چاپېره چورلي، په دې علومو کې د یوې ټولنې ادبي، تهذیبي او ثقافتي مطالعه او تجزیه ځکه د اهمیت وړ وي، چې د یوې خاصې علاقې د خلکو د ټولنیز ژوند په اړه مونږ ته ډېر څه په لاس راځي، یعنې مونږ ته دا پته لګي چې دې ټولنې په کوم رفتار ترقي کړې ده. دلته د خیال ارتقاء درېدلې او که جاري پاتې شوې ده، د دې ټولنې د خلکو دود دستور، تاریخ، سیاست، معیشت، مذهب او نور ډېر څیزونه مونږ ته په اسانه په نظر راځي. د سوات د پښتو ادب او ثقافت دا موضوع په ډېرو حوالو د اهمیت وړ ده، په دې کې وړومبۍ خبره د سوات خپل ادبي،کلتوري، تاریخي، جغرافیایي او ټولنیز(سماجي) اهمیت دی. سوات د تاریخ په هر دور کې د دنیا د پرمختللو تهذیبونو یوه زانګو پاتې شوې، ځکه چې په سوات کې د ډېرو زړو تهذیبونو اثار په نظر راځي. د پښتو ادب په حواله که سوات ته وکتل شي، نو د پښتو ادب د ډېرو لرغونو اثارو ذکر د سوات له یادولو پرته نیمګړی ښکاري، لکه د شیخ ملي دفتر او د اخون درویزه مخزن او داسې نور. له دې علاوه سوات ته د پښتو په تاریخ کې دا اعزاز هم حاصل دی، چې په وړومبي ځل پښتو دلته د سرکار او دربار ژبه وګرځول شوه او تر ډېره حده سرکاري خط و کتابت به په پښتو کې کېده[1]، په نژدې کلونو کې په سوات کې مختلف تحریکونه راپورته شوي وو چې د دې تحریکونو اثرات هم په ادب کې جوت ښکارېږي.

له دې وروسته بیا مختلفو دولتي او نا دولتي ادارو په دې خبرو ډېرې څېړنې او لټونونه کړي او د ځینو کارونو د اسبابو د لټولو کوښښ یې کړی دی. په دې حواله بنیادي خبره دا ده چې څوک په یوه خاص علاقه کې خپله څه نوې پالیسي نافذ کول غواړي او یا

---

[1] د برتانوي حکومت او د پاکستان له حکومت سره به خط کتابت په انګرېزۍ کې کېده. د صحت ، تعلیم او په ځینو نورو ادارو (محمکو) کې به خط او کتابت په اردو او انګرېزۍ کې هم کېده.

څه غیر معمولي حالات قابو کول غواړي، نو هغوی غواړي چې د هاغه ځای د خلکو تاریخي او ثقافتي حالات معلوم کړي، له هغې وروسته د خلکو نفسیات، عادات او رسم ورواج معلوم کړي او بیا د دغو خبرو په رڼا کې خپلې پالیسیانې جوړوي، نو بیا دغه پالیسیانې کامیابې وي، خو که کله پالیسي جوړوونکي د دغو خبرو خیال ونه ساتي نو لازمي خبره ده چې دغه پالیسي به په مشکله سره عملي کېږي.

د یو قوم پر نفسیاتو، رسم ورواج، تاریخ، تهذیب او ثقافت باندې د پوهېدلو لپاره د هغوی د ژبې او ادب مطالعه ضروري ده، ځکه چې تهذیب او ثقافت د ارتقاء له مختلفو مرحلو څخه تېرېږي، نو یو اخري حد ته رسي.

د سوات د پښتو ادب او ثقافت څېړنه به نه صرف د پښتو ادبیاتو د پوهانو او طالب علمانو لپاره ګټوره ثابته شي، بلکې د تاریخ، سیاست، بشرپوهنې، لرغونپوهنې او د نورو برخو د پوهانو او زده کوونکو لپاره به یقیناً چې څه نه څه فایدې ولري.پر دې سربېره به د مختلفو پالیسیانو جوړوونکو لپاره هم دا څېړنه ګټوره وي، ځکه چې د دې په رڼا کې به هغوی د سوات د خلکو تاریخ، تهذیب، ثقافت او رسم و رواج ولولي او د هغوی لپاره د ترقۍ او سوکالۍ پالیسانې جوړې کړي.

## د څېړنې پوښتنه

د دې څېړنې بنیادي پوښتنه (تحقیقي سوال) دا و، چې د سوات په تهذیب او ثقافت کې د ارتقاء له مخې چې کوم بدلونونه راغلي، دغو بدلونونو پر ادب څنګه اثر کړی او په ادب کې څومره ښکارېږي؟

## د تحقیق مقاصد

د دې څېړنې د موضوع د چوڼ پر وخت دا لاندینۍ موخې درلودې، چې د تحقیق له سرته رسېدلو سره حاصل شوې هم دي:

١. د سوات د تهذیب او ثقافت تاریخي ارتقا معلومول.
٢. د سوات په پښتو ادب کې د تهذیب او ثقافت تجزیه کول.
٣. د سوات په تهذیب او ثقافت کې د بدلون د اسبابو جایزه اخستل.

## د ابواب بندۍ جواز

د سوات ټولنيز تنظيم ته چې کله وکتل شي، نو پته لګي چې سوات د تاريخ په مختلفو دورونو کې په مختلفو ټولنيزو جوړښتونو کې پاتې شوی، په خصوصي توګه چې له کوم وخت څخه يوسفزي پښتانه سوات ته راغلي، نو له هغه وخت څخه تر دې دمه د سوات ټولنيز او انتظامي تنظيم وخت پر وخت بدل شوی، لکه له شپاړسمې پېړۍ څخه د نولسمې پېړۍ تر لومړۍ نيمايي پورې دلته د پښتنو قبايلي نظام و او هېڅ قسمه منظم حکومتي نظام نه و. په دې دوران کې د مختلفو قبيلو د مشرانو او د مذهبي مشرانو اثر رسوخ و. له دې وروسته د شلمې پېړۍ په وړومبي دور کې دلته يو منظم رياست جوړ شو او خواوشا پنځوس کاله وروسته دا رياست په يو لوی رياست (پاکستان) کې ضم کړی شو، خو د سوات د رياست له ضم کېدلو وروسته بيا هم د څه ايينې مسئلو له وجې سوات ته د پاکستان ټول قوانين و نه غزېدل او د دې ائينې خلا او د څه نورو عواملو له وجې  وخت پر وخت په سوات کې مختلف تحريکونه شروع شو ل. په يوويشتمه پېړۍ کې د مقامي او بين الاقوامي سياست او د څه نورو عواملو اثرات پر سوات هم پرېوتل او د سوات په تاريخ کې يو نوی باب شروع شو. په دې تناظر کې چې د سوات تاريخ ته وکتل شي، نو د هر دور خپل ځانګړې خصوصيا ت په نظر راځي او په هر دور کې په ټولنيز ژوند کې څه نه څه بدلون راغلی دی. په دې وجه هر دور يو بېل باب لري، چې تفصيل يې د ابواب بندۍ تر سرخط لاندې ورکړل شوی دی.

## د بابونو وېش

دا کتاب په اتو بابونو وېشل شوی دی، په وړومبي باب کې د تهذيب او ثقافت پېژندګلو شوې ده، دويم باب"پس منظري مطالعه" (لټرېچر ريويو) ده،په درېيم باب کې د سوات لنډ تاريخ ليکل شوی، په څلورم باب کې د سوات د پښتو ادب د هغو مطبوعه موادو تهذيبي او ثقافتي تجزيه شوې، د کومو تعلق چې له ابتداء واخله تر ۱۹۱۵م پورې و. په دې دور کې د پښتو ادب له ځينو داسې کتابونو څخه هم توضيحي مرسته اخستل شوې، چې همعصر وو او يا سوات ته په نږدې علاقو کې ليکل شوي وو . دې دور ته په عام طور "د پښتو دور" يا " د پښتو زمانه" ويل شوې ده. په پينځم باب کې د هغو مطبوعه ادبي موادو څېړنه شوې، چې د رياست سوات په دور، يعنې له ۱۹۱۵م  څخه تر۱۹٦۹م پورې ليکل شوي وو، چې دا دور د "رياستي دور" په نامه ياد شوی دی. په شپږم  باب کې د سوات د

پښتو ادب د هغو موادو تهذيبي او ثقافتي تجزيه شوې، چې د ۱۹٦۹او ۲۰۰۰م کلونو په مينځ کې ليکل شوي وو. په اووم باب کې د سوات د پښتو ادب هغه مواد شامل شوي، چې له ۲۰۰۱ څخه تر ۲۰۱۲م کلونو پورې ليکل شوي وو، دې دور ته "د يوويشتمې پېړۍ د سوات پښتو ادب" ويل شوی دی. داسې مواد چې ښکاره تعلق يې له يو دور سره و، خو چاپ شوي په بل دور کې وو نو هغه په خپل متعلقه دور، يعنې د ليک په دور کې اېښودل شوي دي. اتم باب د دې تحقيق په خلاصه مشتمل دی. په دې کتاب کې د سوات د رياست د زمانې ځينې هغه سرکاري حکمونه، چې په پښتو کې ليکل شوي د ضميمې تر سرليک لاندې شامل کړل شوي دي. په دې کتاب کې ددغو حکمونو د شاملولو ډېر وجوهات دي، په هغې کې يوه خبره دا ده چې دا حکمونه به د خلکو په ذاتي کلېکشن کې وي، خو په سرکاري ارکايېوز(ارشيفونو)کې نشته، نو دلته به په دې کتاب کې محفوظ شي. دويم دا کتاب د سوات د پښتو ادب او ثقافت په باره کې دی او دا حکمونه هم د پښتو ژبې، ادب او د سوات له ثقافت سره تعلق لري.

## د تحقيق طريقه

په دې تحقيق کې په اساسي ډول دستاويزي طريقه استعمال شوې او انټرويوګانې هم پکې شوې دي. په لومړۍ مرحله کې د سوات د پښتو ادب تقريباً ټول چاپ مواد راجمع کړی شول، له دې وروسته د هر دور جلا جلا مواد تجزيه شول او په دغو موادو کې تهذيبي او ثقافتي عناصر ولټول شول. د هر دور په پښتو ادب کې د دغه دور خاص او منفرد تهذيبي او ثقافتي عناصر هم په ګوته کړی شول. له دې څخه د سوات د تهذيب او ثقافت ارتقا په ډاګه شوه او دا پته هم ولګېده چې د سوات په پښتو ادب کې د سوات تهذيب او ثقافت څومره په نظر راځي. په ځينو بابونو کې د ولسي ادب حوالې نقل کړی شوې دي، چونکې د ځينو ولسي ادبي اصنافو د زمانې تعين ګران وي، خو په دې حواله دا خبره مخې ته اېښودل شوې، چې دغه ولسي ادبيات په کوم دور کې چاپ شوي دي، نو له هغه دور سره په تړلي باب کې يې حوالې ورکړل شوې دي؛ خو بيا هم يواځې د چاپ کېدلو په زمانه ټوله خبره مبني نه وه، بلکې دا هم کتل شوي، چې په دغو ولسي ادبياتو کې چې کوم تهذيبي او ثقافتي عناصر ذکر شوي، هغه په دغه متعلقه دور کې اوس هم موجود دي که، نه؟

د دې څېړنې لپاره د سوات د پښتو ادب مطبوع مواد ابتدايي مواد ګڼل شوي دي. دغه رنګ د سوات د تاريخ کتابونه، مقالې او نور مواد د ثانوي موادو په حيث کتل شوي دي. د مرکو (انټرويوګانو) په ذريعه هم څه مواد لاس ته راغلي دي. له کتابونو علاوه په ډايريانو کې د رياست سوات ريکارډ او د مختلفو ارکاييوز(ارشيفونو)له ريکارډ څخه هم کافي مدد اخستل شوی او له مختلفو رسالو، تحقيقي مجلو او اخبارونو څخه هم کافي مواد لاس ته راغلي دي.

د پښتو له زړو کتابونو يا قلمي نسخو څخه چې کومې نمونې اخستل شوي، د هغو رسم الخط زوړ نه دی ساتلی شوی، بلکې په نوي رسم الخط کې ليکل شوي، خو په کوم ځای کې چې خامخا د هغه زوړ رسم الخط نمونه ورکول پکار وو، نو هلته زوړ رسم الخط ليکل شوی دی.

په دې کتاب کې به په يو څو ځايونو کې پوره نظم يا غزل رانقل شوی وي، د دې مهمه وجه دا وه چې اکثر دا ډول ادبي نمونې په نايابه نسخو کې وې، چې تر اوسه يې چا په ادبي حواله ذکر نه دی کړی، لکه له تفسير تېسير څخه د پښتو شاعرۍ نمونې نقل کول يا له فتاوي ودوديه څخه د پښتو شاعرۍ نمونې نقل کول.

په دې کتاب کې د سوات د پښتو ادب په هر دور کې د ليکل شوي ادب تهذيبي او ثقافتي تجزيه شوې، نو د تهذيب او ثقافت ډېر عناصر داسې دي چې په هر دور کې پکې څه بدلون راغلی؛ خو نوم يې هم هغه دی نو ځکه په هر باب کې ځينې څنګزن (ذيلي) سرليکونه يو شان دي، که څه هم تر دغو څنګزنو (ذيلي) عنوانونو لاندې هغه بدلونونه ذکر شوي، چې دغه ثقافتي عناصر يې له بل دور څخه مختلف کړي دي. د ثقافت په ځينو څنګزنو عنوانونو کې که په يو باب کې لږ بحث شوی وي او په بل کې ډېر، نو وجه به يې دا وي چې د دغه مخصوص دور په ادب کې به پرې بحث لږ شوی وي. کله کله د يوې خاصې موضوع په اړه پرله پسې د شعرونو حوالې را نقل شوي، خو له طوالت څخه د بچ کېدلو په خاطر پرې بحث نه دی شوی.

## د تحقيق حدونه

د دې څېړنې حدونه او بريدونه بالکل په ډاګه دي، دا تحقيق د موجوده (۲۰۱۲م) سوات ضلعې په زمکنيو حدونو کې دننه د پښتو ادب په چاپو موادو اډانه لري. زماني حدونه يې له پيل څخه تر ۲۰۱۲م کال پورې دی، يعنې په دې تحقيق کې د موجوده

سوات ضلعې په حدونو کې دننه د پښتو ادب د چاپو موادو تهذيبي او ثقافتي مطالعه شوې ده. هغه کتابونه چې په سوات کې ليکل شوي وي يا يې ترتيب او تدوين په سوات کې د سوات ليکوالانو کړی وي په دې څېړنه کې شامل دي. د نورو سيمو داسې ليکوالان چې په سوات کې مېشت وي او دلته يې تخليق کړی وي، د هغوی کتابونه هم په دې مقاله (کتاب)کې شامل دي. دا خبره هم امکان لري چې د سوات د تهذيب او ثقافت په باره کې نورې ډېرې داسې خبرې وي چې په دې څېړنه کې به نه وي ذکر شوې، نو د هغې وجه دا ده چې دا څېړنه د سوات د تهذيب او ثقافت ټوله احاطه نه کوي، بلکې په دې څېړنه کې د هغو تهذيبي او ثقافتي عناصرو ذکر شوی، چې د سوات په پښتو ادب کې په نظر راتلل.

د دې اثر سرليک"د سوات پښتو ادب او ثقافت" دی، نو د دې کتاب له سرليک څخه ښکاري چې په دې اثر کې به د سوات د پښتو ادب او ثقافت تجزيه کېږي، نو دا خبره ضروري ده چې پر اصلي موضوع له بحث کولو وړاندې د موضوع ځينې مهم اصطلاحات تر بحث لاندې راوستی شي، نو په دې باره کې دوه مهم اصطلاحات تهذيب او ثقافت دي.

## د تهذيب لغوي معنی

په مختلفو لغتونو کې د تهذيب مختلفې معنې ورکړل شوې دي، دلته د يو څو لغتونو په حواله د تهذيب لغوي معنې څېړل شوې دي.

وارث سرهندي په "قاموس مترادف"کې د تهذيب دا معٰنې ورکړې دي:

١. اصلاح، درستی، آراستگی، شاخ تراشی

٢. شايستگی، ثقافت، خوش اخلاقی، تمدن، آدميت، پاکيزگی، صفائی، اہليت، لياقت[١]

مولوي سيد احمد دهلوي په "فرهنگ آصفيه"کې د تهذيب تر اصطلاح لاندې داسې ليکي: تهذيب : ع ـ اسم مونث

١. آراستگی، صفائی، پاکی، درستی

٢. شائستگی، خوش اخلاقی، اہليت، لياقت، آدميت، تربيت، انسانيت، شرافت[٢]

د پښتو په قاموس "درياب"کې يې د تهذيب تر سر ليک لاندې دا ډول الفاظ ليکلي دي: (اسم) تمدن، ښه اخلاق، سړيتوب ، شائستگي، انسانيت، د يوې معاشرې د ژوند تېرولو مروجه لارې چارې ، مادي ترقي (م ـ عربي) [٣]

له پورتنيو تعريفونو او معنو څخه چې کومې خبرې مخې ته راغلې هغه دا دي: تهذيب د عربۍ لفظ دی او د لفظ په قسمونو کې اسم دی او د جنس په لحاظ په عربۍ

کې مونث دی. په دې تعریفونو کې تهذیب د سړیتوب او شائستګۍ په معنو هم اخستل شوی دی. له دې علاوه وارث سرهندي د تهذیب په مترادفاتو کې د ثقافت او تمدن لفظونه هم لیکلي دي. په انګرېزۍ کې د تهذیب لپاره د سیویلایزېشن لفظ استعمال شوی دی. دسیویلایزېشن لفظ په لومړي ځل په ۱۷۵۲م کې یو فرانسوي لیکوال استعمال کړی دی.[٤] د تهذیب اصطلاح په اردو تصنیفاتو کې په وړومبي ځل د" تذکره ګلشن هند" په ۱۲۹مخ کې په۱۸۰۱ م کې لیدل کېږي.[٥] اشفاق احمد او محمد اکبر چغتائي په "فرهنګ اصطلاحات"کې د Civilization معنا مدنیت او تمدن لیکلې ده.[٦] محمداحمد سبزواري په "اصطلاحات عمرانیات"کې د سیویلایزېشن معنی تمدن، تهذیب و تمدن لیکلې ده.[٧] د سیویلایزېشن په باره کې J.B. Sykes وایي چې په سماجي ترقۍ کې لوړ مقام ته رسېدل تهذیب دی.[٨] د سیویلایزېشن تعریف "اکسفورډ اېډوانسډ لرنرز" ډکشنرۍ داسې کړی دی:

> Civilization (۱) A state of human society that is very developed and organized. (۲) a society, its culture and its way of life during a particular period of time or in a particular part of the world.[٩]

ترجمه: سیویلاېزېشن (۱) د انساني ټولنې ترقي یافته او منظم حالت. (۲) په یو خاص وخت کې د دنیا په یوه خاصه برخه کې یوه ټولنه او د هغې کلتور.

په حقیقت کې د ښار له جوړېدو سره تهذیب پیداکېږي.Fernand Brandel[١٠]په دې باره کې مخکې لیکي چې کله د ښار د ژوند ذکر کېږي، نو هلته سیویلایزېشن ټکی استعمالول پکار دي او چې کوم ځای د کلیوال ژوند بحث کېږي، نو هلته د کلچر ټکی استعمالول پکار دي. د هغه په خیال سیویلایزېشن د ترقي یافته کلچر یو ډول دی یا د کلچر یو پرمختللی پړاو دی.[١١]

د تهذیب او ثقافت له یو بل سره د ډېر نژدېوالي او د تهذیب د وسعت له وجې د تهذیب داسې تعریف کول چې هر څه راګېر کړي، ډېر ګران کار دی ځکه خو لوی فلسفي Arnold Toynbee په خپل دولس جلده کتاب (۱۹۳٤-۱۹٦۱) A Study of History کې د تهذیب هېڅ تعریف نه دی کړی.[١٢] د تهذیب هر اړخیز او مختصر تعریف ځکه نه کېږي چې تهذیب ډېره پراخه لمن لري.[١٣]او همدا وجه ده چې چا په دې مېدان کې کار کړی، نو هر چا تهذیب ته خپل تعریف ورکړی دی.[١٤] د دې پر ځای چې د تهذیب مختلف تعریفونه راجمع کړو دا به ډېره ښه وي چې د تهذیب عناصر وپېژندل شي.

## د تهذیب عناصر

Ruan Wei د تهذیب دا عناصر بیان کړي دي: د تحریر باقاعده نظام، ادب، فنون، موسیقي، عدالتي نظام، باقاعده سماجي او سیاسي اداري، فوځي نظام.[۱۵]سبط حسن د تهذیب مختلف مظاهر دا بیان کړي دي: ژبه، الات او اوزار، د پیداوار طریقې، ټولنیزې رشتې، استوګنه، فنون لطیفه، علم او ادب، فلسفه او حکمت، عقیدې او وهمونه، اخلاق او عادتونه، رسم و رواج، د عشق او د محبت سلوک او خانداني تعلقات او نور.[۱۶] او په بل ځای کې سبط حسن لیکي چې د دنیا هر یو نوی یا زوړ تهذیب له څلورو څیزونو څخه جوړ دی: طبیعي حالات، الات او اوزار، د فکر او د احساس نظاماو سماجي اقدار.[۱۷]د ټولنیزو (سماجي) اقدارو په باره کې سبطِ حسن وایي په یوه ټولنه کې چې د ټولنیز تړون، اخلاقو او عادتونو، د اوسېدلو د طور طریقو، د رسم او رواج، د حسن او جمال او د فن د اظهار لپاره چې کوم معیار عام وي هغې ته سماجي اقدار وایي.[۱۸]ځینې سماجي اقدار خپل دور ته نژدې په ټولو تهذیبونو کې یو شان وي، لکه په کومو ورځو کې چې د غلامۍ رواج نه و، نو جنګي قیدیان به خلکو وژل او دا به هېڅ ناکاره کار نه ښکارېده، ځکه چې هغوی به دوی ته ډوډۍ او جامې نه شوای ورکولی او بیا هم غلامي په ټولو تهذیبونو کې یو شان وه؛ تر دې چې د اخلاقیاتو لویو استاذانو اپلاتون او ارسطو ته هم په دې کې څه عیب نه ښکارېده. د سماجي رشتو ځینې غیر پېداواري اقدار هم په ټولو تهذیبونو کې تقریباً یو شان وي، لکه مېلمه پالنه، رحم دلي، انصاف، رښتیا ویل، له مظلوم سره همدردي، د عالمانو، فاضلانو او شاعرانو قدرکول، د سندرو اورېدلو شوق لرل، په واده ښادۍ کې خوشحالي کول او په غم باندې افسوس کول او نور. همدا راز ځینې اقدار د هرې ټولنې انفرادي وي، لکه ځینې قومونه، چیندخان، ماران او خنزیران خوري او ځینې نور دغو ځناورو ته لاس وراندې کول هم ښه نه ګڼي. همدا شان د جامو او د ښایست معیار هم بېل بېل وي. سماجي اقدار په یو ځای ولاړ نه وي، بلکې بدلون هم پکې راځي، د ټولنیز ماحول د بدلون اثر پر سماجي اقدارو باندې هم کېږي.[۱۹]

## تمدن او تهذیب

لکه څنګه چې مخکې وویل شول چې وارث سرهندي د تهذیب په مترادفاتو کې د تمدن او ثقافت لفظونه هم ځای کړي، خو په همدغه لغت کې هغه د تمدن تر لفظ لاندې داسې لیکي:

تمدن: مدنیت، معاشرت، طرز معاشرت، شہری زندگی، شائستگی، تہذیب.[20] د تمدن په اړه مولوي محمد نیر الحسن نیر په "نور اللغات"کې لیکي: تمدن! (ع) (مذکر)، بروزن تفعل، شهر میں بودو باش کرنا، شہر کا انتظام کرنا، طرز معاشرت رہنیسہنیی کا انداز.[21]

په پښتو لغت دریاب کې د تمدن په باره کې داسې لیکلی شوي دي: تمدن : (اسم) ۱- د یو ځای د اوسېدو طریقه، په ښار کې اوسېدنه، د معاشرت طریقه ،۲ ـ یو علم چې پکې د معاشرت اداب او طریقې ښودلی شي.[22]

سید انوار الحق په "اردو پشتو لغت"کې د تمدن تر لفظ لاندې داسې لیکي:

تمدن: (ع ـ مذ) په یو ځایکېله یو بل سره د اوسېدو طریقه، د معاشرت طرز (ع) مدن: په ښهر کې اوسېدل یا ښهر ته راتلل)، یو علم چې پکې د معاشرت (د اوسېدو) اداب او دود دستورښېیلی شي، شهریت (سوکس).[23]

د تهذیب او تمدن له دې بحث څخه دا نتیجه راوځي چې تهذیب انسانیت او شایستګۍ ته وایي او تمدن په یو ځایله یو بل سره د اوسېدو طورطریقې ته وایي.

لکه څنګه چې په دې لغتوتو کې ذکرشو چې تهذیب او تمدن دواړه په اصل کې عربي الفاظ دي، نو ځکه دا خبره ډېره ضروري ده چې د دې لفظونو اصلي او صحیح معنې د عربۍ د لغت او اصولو په رڼا کې معلومې کړل شي. په دې باره کې به لومړی تهذیب ته راشو: تهذیب مصدر دی. د دې ماضي فعل هذّبدی اومضارع فعل ترېنه یهذب دی او مهذب ترېنه فاعل جوړېږي. هذّب په عربي کې د ښاخ تراشۍ لپاره استعمالېږي، لکه په عربی کې وایي: هذب فلان شجره. هغه د ونې ښاخ تراشي وکړه او د ښاخ تراشیده ونې لپاره په عربۍ کې داسې ویلی شي: هذه شجرة مهذبة. دا رنګه له ونې څخه د بې ضرورته ځانګو او ښاخونو لرې کولو عمل ته د تهذیب عمل وایي.

لکه څنګه چې له ونې څخه بې ضرورته ښاخونه لرې کولو سره په ونه کې ښکلا او تازګي پیدا کېږي او ډېر زر وده کوي، همدغه رنګ له انساني معاشرې څخه خرابې خبرې او خرابو رسمونو او رواجونو لرې کولو سره په انساني ژوند او ټولنه کې ښکلا پیدا کېږي. دغه وجه ده چې د ونې ښاخ تراشۍ او د انساني ټولنې ښاخ تراشۍ دواړو ته تهذیب ویل کېږي. اوس که مونږ د عربي ژبې د اصولو په تناظر کې تمدن ته وګورو نو تمدن باب تفعّل دی، یعنې تمدن د تفعل په وزن دی. په عربي کې د هر باب خپل خصوصیات وي، لکه د

باب مفاعله مثالونه مقابله، مناظره، مقاتله او نور دي او د باب مفاعله خصوصیت دا دی چې شرکت د جانبینو به پکې وي، یعنې لږ تر لږه به په دې کې له دواړو طرفونو څخه دوه ارکان خامخا وي. دغه شان باب افعال لکه انکار او اصرار کې به لږ تر لږه یو کس وي او د باب تفعّل خصوصیت دا دی چې په دې کې به تصنّع وي. د تصنع معنی یو څیز په تکلیف سره حاصلول، نو څکه تمدن، تفعل او تکلف یو وزن یو باب او یو شان خصوصیات لري او د تمدن لفظي معنی ده په خپل کوښښ ځان په اجتماعي ژوند کې شاملول. باب تفعّل د فعیلة نه دی او د فعیلة هموزن مدینة دی چې وروسته ترې مدینه جوړه شوې او معنی یې ښار یا مدني یا شهري ژوند دی، نو څکه مونږ ویلی شو چې له فعیلة څخه تفعّل شو، له مدینه څخه تمدن شو او د تمدن مطلب شو د ښار زندګي.

د دې بحث په نچوړ کې مونږ د تهذیب او تمدن فرق دا معلومولی شو چې کله شایستګي، انسانیت او سړیتوب په یو کس کې ذاتي طور موجود وي، نو دې ته تهذیب وایي او چې کله دا خصوصیات په اجتماعي توګه موجود وي نو هغې ته تمدن وایي. د تهذیب، تمدن او ثقافت اصطلاحات هغه وخت ډېر کړکېچ پیدا کړي کله چې د اردو، پښتو او انګرېزۍ اصطلاحاتو د مترادفاتو لټولو کوښښ وکړی شي. په انګرېزۍ کې کله Culture د تهذیب په معنٰی راشي او کله د ثقافت په معنی او دا رنګ Civilization کله د تمدن په معنی راشي او کله د تهذیب په معنی. ژبپوهانو او د لغاتو ماهرینو عام طور Civilization د تهذیب او تمدن په معنو کې اخستی او د ثقافت لپاره یې دCultures لفظ استعمال کړی دی. په دې تحقیق کې به هم د سیویلایزېشن لپاره تهذیب او د کلچر لپاره د ثقافت لفظونه کارول کېږي.

## ثقافت یا کلچر

د کلچر وړومبی ښکاره او واضحه تعریف Sir Edward Tylor په ۱۸۷۱م کې داسې کړی دی:

> [Culture is] that complex whole which includes knowledge, belief, art, law, morals, custom, and any other capabilities and habits acquired by man as a member of society.[٢٤]

ترجمه:کلتور هغه جامع یو والی دی چې په هغې کې علم، عقیده، فن، قانون، اخلاقیات، رواج او نور ټول هغه صلاحیتونه او عادتونه شامل وي، چې انسان د ټولنې د یوه غړي په حیث ترلاسه کړي وي.

د کلچر خصوصیات Haviland او د هغه ملګرو دا بیان کړي دي. کلچر زده کېږي، شریکېږي، دا په علاماتو اډانه لري او متحرک وي.[۲۵]اردو انسایکلو پیډیا د ثقافت (Culture)په باره کې لیکي چې دا عربي لفظ دی او د دې مطلب د یو قوم یا طبقې تهذیب دی، ماهرینو د دې دا تعریف مقرر کړی دی:" ثقافت د اکتسابي، ارادي یا د شعوري طرز عمل نوم دی"په اکتسابي طرز عمل کې زمونږ هغه ټول عادتونه، کارونه، سوچونه، رسمونه او قدرونه شامل دي، چې مونږ د یوې منظمې ټولنې یا د یو خاندان د یو فرد په توګه غوره ګڼو، یا هغه په عمل کې راولو یا په هغوی د عمل کولو غوښتنه لرو. د یادونې وړ ده چې د ثقافت یو جامع او آخري تعریف تر ننه نه دی شوی.[۲۶]په "فرهنګ اصطلاحات"کې یې د Culture معنٰی تهذیب، ثقافت او کلچر لیکلې ده.[۲۷] په "قاموس مترادفات" کې وارث سر هندي د ثقافت معنی تهذیب، کلچر، عقل مندي او خرد مندي لیکلې ده.[۲۸] په "پښتو لغت دریاب"کې د ثقافت په باره کې داسې لیکلي دي، ثقافت : اسم، واحد، مذکر، کلچر، کلتور، تهذیب او تمدن. [۲۹]"فېروز اللغات عربي اردو"کې د ثقافة معنٰی عقل و سمج، تعلیم و تربیت او کلچر لیکلې ده.[۳۰]"مصباح اللغات" د ثقافة معنٰی زیرک و سبک و چالاک کېدل لیکلې ده.[۳۱]

T.S. Eliot د کلچر د تعریف په باره کې وایي چې له کلچر څخه زما مراد هم هغه دی کوم چې ترې د بشرپوهنې پوهان اخلي، یعنې د خلکو د یوې خاصې ډلې په یو ځای د ژوند تېرولو طریقې ته کلچر وایي.[۳۲]محمد احمد سبزوازي په "اصطلاحات عمرانیات"کې د انګرېزي لفظ Culture د لاندې ثقافت، تهذیب، تمدن او کلچر الفاظ لیکلي دي.[۳۳]"اکسفورډ ایډوانسډ لرنرز ډکشنری" د کلچر تعریف داسې کړی دی: د یو خاص ګروپ یا د یو ملک دود دستور، عقیدې، فنون، د ژوند طریقې او سماجي جوړښت ته کلچر وایي.[۳٤]په کلچر کې د انساني اعمالو هغه ټولې بنیادي ادارې لکه مذهب، سیاست، معیشت، فنون، ساینس، تعلیم، ژبه او نور شامل دي.[۳۵]یو فرد که په ټولنه کې په انفرادي توګه یو کار کوي یا یو عادت لري، دې ته کلچر نه شي ویلی تر څو چې دا په ټولنه کې عام نه وي.[۳٦]ځینې کارونه، عادتونه او خبرې داسې دي چې هغه زمونږ په ټولنه کې یو شان

وي، خو تعلق يې زمونږ د حسياتو يا جبلّت سره وي نو دغه هم په کلچر کې نه راځي، لکه په کنځلو غصه کول او په وږي کېدلو خوراک خوړل او نور.[۳۷] په وږي کېدلو خوراک ضرورت دی. د ضرورت يا need په باره کې Haviland وايي چې ضرورت زده کېږي نه، خو هغه طريقې زده کېږي په کومو چې مونږه ضرورت دفع کولی شو.[۳۸]لوږه د خوراک ضرورت دی او پخپله پيدا کېږي، خو د خوراک مختلفې طريقې او د پخلي مختلفې طريقې کلچر دی.[۳۹]د کلچر په خصوصياتو کې يو خصوصيت دا دی چې کلچر په ټولنه کې زده کېږي، يعنې Culture is learned خو هر زده کړی کار هم کلچر نه وي، يعنې کوم کار چې په مسلسل تربيت زده شي په هغه کار او enculturation کې فرق دی.[۴۰]

ډاکټر جميل جالبي وايي چې کلچر د هغه ذهني، مادي او خارجي طرز عمل د اظهار نوم دی چې په باضابطه طريقه د يوې ټولنې په ټولو غړو کې يو شان موجود وي. په طرز عمل کې دا با ضابطګي د يوې ټولنې کلچر ظاهروي او همدا څيز مونږ ته د يوې ټولنې او د بلې ټولنې توپير ښيي.[۴۱] په ژوندي کلچر کې به د خيال ارتقا وي[۴۲] او په مړ يا ساکت کلچر کې به د خيال ارتقا نه وي.[۴۳] د کلچر د زوال اسباب هم دا دي چې د خيال ارتقا ودرېږي او د کلچر نظام صرف په ظاهري رسم ورواج پورې محدود يو عادت او رسم پاتې شي، بيا يو عابد تسبيح په لاس کې شراب خانې او دګډا نڅا محفل ته روان وي خو دا احساس ورته نه کېږي.[۴۴]

## د تهذيب او ثقافت اړيکي

سبط حسن وايي چې د تهذيب تعلق له ظاهري څيزونو سره دی[۴۵] او د ثقافت تعلق له هغو څيزونو سره دی، چې زمونږ له ذهن سره اړيکه لري.[۴۶] تهذيب او ثقافت له يو بل سره ډېر ژور تعلق لري او دغه وجه ده چې د تهذيب په تعريف کې د ثقافت او د ثقافت په تعريف کې د تهذيب ټکی استعمال شوی دی. تهذيب او ثقافت په معنوي او تاريخي اعتبار په يو بل کې دومره ګډ وډ شوي، چې جدا کول يې ډېر ګران کار دی.[۴۷]تهذيب او ثقافت اکثرو پوهانو په يوه معنی کې اخستي دي او د دويتر مينځ توپير يې مهم نه دی ګڼلی.[۴۸]د لوېديز اکثرو پوهانو چې کله د زوړ ټولنيز ژوند ذکر کړی هلته يې د کلچر لفظ استعمال کړی او چې کله يې د نوي ټولنيز ژوند ذکر کړی، نو هلته يې د سيويلايزېشن لفظ استعمال کړی دی.[۴۹]که مونږ د تهذيب او ثقافت د مقام او مرتبې تعين کوو، نو تهذيب له ثقافت څخه په لوړ مقام پروت دی او مونږ دا هم ويلی شو چې ثقافت د تهذيب

بنیاد دی او ثقافت د تهذیب لپاره خام مواد پیدا کوي او تهذیب د ثقافت ترقي یافته شکل دی. Christopher Dawson[٥٠] وایي چې کله مونږ د یو ملک خبره کوو نو مونږ کلچر لفظ استعمالوو، لکه د فرانس کلچر، د جرمني کلچر او د برتانیې کلچر، خو کله چې خبره د تهذیب شي نو دې ټولو ته بیا مونږ مغربي تهذیب وایو او دغه شان دا ښکاره خبره ده چې تهذیب له ثقافت، یعنې کلچر څخه په لوړ مقام پروت دی.[٥١]

کلچر(ثقافت) په بنیادي طور د جرمني ژبې له لفظ Kultur څخه اخستل شوی او تهذیب (سیویلایزېشن) د فرانسیي ژبې له لفظ Civilization څخه جوړ دی. د کلچر او د سیویلایزېشن د بحث دا مسئله له هغه وخت څخه شروع شوه کله چې په اتلسمه عیسوي پېړۍ کې د جرمني په ټولو ریاستونو کې سرکاري او د عزت ژبه فرانسیي وه او جرمني ژبه د متوسطې طبقې ژبه وه او سرکاري سرپرستي ورته نه وه حاصله، خو کله چې په جرمني ژبه کې د Geothe, Kant او Schiller تخلیقات مخې ته راغلل نو هغه وخت په جرمني کې فرانسیي ژبه او د هغې اصطلاحات د طنز ښکار شول او له همدغه وخت څخه Culture او Civilization جدا جدا اصطلاحات رامنځته شول.[٥٢] په انګرېزي ژبه کې چې کله د جرمن فنپارو ترجمې شوي، نو په هغو کې د جرمن لفظ Kulture ترجمه Civilization شوې ده، لکه د فرایډ Freud کتاب Unbehagen in der Kultur انګرېزي ترجمه د Civilization and its Discontents په نوم شوې ده او دارنګه د Samuel Huntington کتاب The Clash of Civilizations ترجمه په جرمن ژبه کې د Der Kampf der Kulturen په نامه شوې ده. Huntington پخپله هم په خپل کتاب کېCulture او Civilization په یوه معنٰی کې استعمال کړي دي.[٥٣]

د تهذیب او ثقافت حدونه له یو بل څخه پورې راپورې وتلي او دغه وجه ده چې د دوی په مینځ کې واضحه کرښه راښکل ډېر ګران کار دی.[٥٤]ډاکټر جمیل جالبي وایي چې د "تهذیب" زور په خارجي ځیزونو او د طرزعمل په هغه اظهار دی چې په هغې کې خوش اخلاقي، اطوار، ګفتار او کردار شامل دي او د "ثقافت" د لفظ زور په ذهني صفتونو باندې دی په کومو کې چې په علومو او فنونو کې مهارت حاصلول او د ترقۍ صفات شامل دي.[٥٥] ډاکټر جمیل جالبي د تهذیب او ثقافت معنې یوځای کړي او د دوی لپاره یې د "کلچر" لفظ استعمال کړی دی.[٥٦] ډېر ماهرین او پوهان پر سیویلایزېشن یا تهذیب باندې ډېرې نیوکې کوي او وایي چې د تهذیب له راتلو سره ثقافت ختمېږي.[٥٧]

**د بحث لنډيز**

په تېرو مخونو کې چې د تهذيب او ثقافت په حواله کوم بحث وشو له هغې څخه مونږ دا څو خبرې راويستلی شو:

١. د تهذيب او تمدن دواړو لپاره د انگرېزی ژبې لفظ Civilization استعمالېږي، تمدّن د لفظ تهذيب مترادف هم استعمالېږي، چې په اصطلاح کې د ښار له ژوند سره متعلق خبرو اترو ته وايي.

٢. د ثقافت لپاره د انگرېزی لفظ Culture استعمال شوی، خو ځينو ليکوالانو د تهذيب لپاره د کلچر لفظ استعمال کړی دی.

٣. تهذيب او ثقافت په يو بل کې دومره نښتي، چې له يو بل څخه يې جلا کول گران دي، خو د دواړو تعلق له انساني ژوند او ټولنې سره دی.

٤. د تهذيب او ثقافت تعريف د يو بل له ذکر پرته نه کېږي، ځکه پوهانو د تهذيب او ثقافت په تعريف کې دواړه اصطلاح گانې استعمال کړي دي.

٥. اکثر پوهان په دې متفق دي چې د ثقافت پرمختللې بڼه تهذيب دی.

٦. د تهذيب او ثقافت ترکيبي توکي تقريباً يو شان دي، کله چې دا ترکيبي اجزاء د ارتقاء په لومړنيو مرحلو کې وي، نو دا ثقافت دی او کله چې په پرمختللې بڼه کې راشي نو بيا تهذيب شي.

٧. د ثقافت ترکيبي توکي په دا ډول دي: ټولنيز نظام، رسمونه رواجونه، مذهب، ژبه، فنون او ادب، طرز حکومت، معاشي نظام.

٨. د تهذيب ترکيبي توکي په دې ډول دي:کرکيله، تحريري نظام، د پېشو وېش، فنون او تعميرات ، ښار، ټولنيزه گروه بندي او نور. د تهذيب په ذيلي اجزاوو کې دا اجزا شامل دي: سکه، مواصلات، تحريري ژبه، عدالتي نظام، لرغوني آثار، ادب او د بيان انداز، د پيمايش نظام، فلکيات او نور.

## حوالې

۱-سرہندی، وارث. (مولف)، قاموس مترادفات، لاہور، اردو سائنس بورڈ، طبع اول، اگست ۱۹۸٦، ۴۲۷ مخ.

[۲]- دہلوی، مولوی سید احمد. (مرتب)، فرہنگ آصفیہ (جلد اول، دوم)، لاہور، سنگ میل پبلیکیشنز، بار اول ۱۹۸٦، ٦۴۴ مخ.

[۳]- قلندر مومند، فرید صحرايي. (مولفين)، پښتو لغت درياب، پېښور، اېن ـ ډبليو ـ اېف ـ پي ټېکسټ بک بورډ، اول ايډيشن ۱۹۹۴، ۳۹۳ مخ.

[٤]-Ruan, Wei, Civilization and Culture, International Review of Social Sciences and Humanities, Vol. ١, No. ١ (٢٠١١), p.٤.available at www.irssh.com retrieved on ٥/٥/٢٠١٤.

[۵]-حسن،سبط. پاکستان میں تہذیب کا ارتقا، کراچی، مکتبہ دانیال، تیرہواں ایڈیشن ۲۰۰۹/۱۹۷۵، ۱۸ مخ.

[٦]-احمد،اشفاقاور محمد اکرم چغتائی.(مرتبین) فرہنگ اصطلاحات، (جلد اول) (اے تا ڈی) لاہور، اردو سائنس بورڈ، طبع اول مئی ۱۹۸۴، ۴۸۵ مخ.

[۷]-سبزواری، احمد. اصطلاحات عمرانیات، اسلام آباد، مقتدرہ قومی زبان، ۱۹۹۵، ۳۲ مخ.

[٨]-The Concise Oxford Dictionary of Current English Edited by J. B. Sykes, Oxford at the Clarendon Press, ١٩١١/١٩٨٥, p.١٧٠.

[٩]-Oxford Advanced Learner's Dictionary, ٢٠٠٢, p.٢١١.

[١٠]-Ruan, Wei, Civilization and Culture, International Review of Social Sciences and Humanities, Vol. ١, No. ١ (٢٠١١), .available at www.irssh.com retrieved on ٥/٥/٢٠١٤.٨p.

[١١]-Ibid., p.٨.

[١٢]-Ibid., p.٨.

[١٣]-Ibid., p.٩.

[١٤]-Ibid., p.١١.

[١٥]-Ibid., p.٢.

[۱٦]-حسن،سبط. پاکستان میں تہذیب کا ارتقا، کراچی، مکتبہ دانیال، تیرہواں ایڈیشن ۲۰۰۹/۱۹۷۵، ۱۷ مخ.

[۱۷]-همدغه اثر، ۲۵ مخ.

[18]-همدغه اثر، ۴۰ مخ.

[19]-همدغه اثر، ۴۰-۴۴ مخونه.

[20]-سرہندی، وارث. (مولف)، قاموس مترادفات، لاہور، اردو سائنس بورڈ، طبع اول، اگست ۱۹۸٦، ۴۱۴ مخ.

[21]-نیر،مولوی محمد نیرالحسن.(مولف)، نوراللغات،(حصہ دوم)، مقبول اکیڈمی، ۱۹۸۸، ۲۲۹ مخ.

[22]-قلندر مومند، فرید صحرايي. (مولفین)، پښتو لغت درياب، پېښور، اېن ـ ډبليو ـ اېف ـ پي ټېکسټ بک بورډ، اول ایډیشن ۱۹۹۴، ۳۷۲ مخ.

[23]-انوارالحق، سید. اردو پشتو لغت، (جلد اول)، لاہور، مرکزی اردو بورڈ، مئی ۱۹۷۰، ٦۲۰ مخ.

[24]-Haviland, William A., Harald E. L. Prins, Dana Walrath, Bunny Mcbride, Introduction to Anthropology, New Delhi, Cengage Learning Private Limited, ٢٠٠٧, p. ٢٧٧

[25]-Ibi., p.٢٧٨

[26]-فیروز سنز اردو انسائیکلوپیڈیا، لاہور، فیروز سنز لمیٹڈ، ۱۹۸۴/۱۹٦۲، ۳۵٦ مخ.

[27]-احمد، اشفاق اور محمد اکرم چغتائی. (مرتبین) فرہنگ اصطلاحات، (جلد اول) (اے تا ڈی) لاہور، اردو سائنس بورڈ، طبع اول مئی ۱۹۸۴، ۴۸۵ مخ.

[28]-سرہندی، وارث. (مولف)، قاموس مترادفات، لاہور، اردو سائنس بورڈ، طبع اول، اگست ۱۹۸٦، X مخ.

[29]-قلندر مومند، فرید صحرايي. (مولفین)، پښتو لغت درياب، پېښور، اېن ـ ډبليو ـ اېف ـ پي ټېکسټ بک بورډ، اول ایډیشن ۱۹۹۴، ۴۳۱ مخ.

[30]-فیروز اللّغات عربی اردو، لاہور، فیروز سنز لمیٹڈ، س ن، ٦۹مخ.

[31]-بلیاوی، ابوالفضل مولانا عبدالحفیظ. مصباح اللغات مکمل عربی اردو ڈکشنری، کراچی، مدینہ پبلشنگ کمپنی، مارچ ۱۹۸۲، ۹۴مخ.

[32]-Paul Geyer, Prof. Dr., On the Dialectics of Culture and Civilization in Critical Cultural Studies, p.٤, downloaded from www. Retrieved on ٥/٥/٢٠١٤

[33]-سبزواری، احمد. اصطلاحات عمرانیات، اسلام آباد، مقتدرہ قومی زبان، ۱۹۹۵، ۴۲مخ.

[34]-Oxford Advanced Learner's Dictionary, ٢٠٠٢, p.٣٠٦

۳۵-جالبی، ډاکټر جمیل. پاکستانی کلچر، کراچی، نیشنل بک فاونډیشن، طبع ششم ۱۹۸۱/۱۹۹۷، ۴۴مخ.

۳۶-همدغه اثر، ۴۵مخ.

۳۷-همدغه اثر، ۴۵مخ.

۳۸-Haviland, William A., Harald E. L. Prins, Dana Walrath, Bunny Mcbride, Introduction to Anthropology, New Delhi, Cengage Learning Private Limited, ۲۰۰۷, p.۲۷۸

۳۹-جالبی، ډاکټر جمیل. پاکستانی کلچر، کراچی، نیشنل بک فاونډیشن، طبع ششم ۱۹۸۱/۱۹۹۷، ۴٦مخ.

٤۰-Haviland, William A., Harald E. L. Prins, Dana Walrath, Bunny Mcbride, Introduction to Anthropology, New Delhi, Cengage Learning Private Limited, ۲۰۰۷, p.۲۷۸

٤۱-جالبی، ډاکټر جمیل، پاکستانی کلچر، کراچی، نیشنل بک فاونډیشن، طبع ششم ۱۹۸۱/۱۹۹۷، ۴۷مخ.

٤۲-همدغه اثر، ۴٦مخ.

٤۳-همدغه اثر، ۴۷مخ.

٤٤-همدغه اثر، ۴۹مخ.

٤٥-همدغه اثر، ۴۱مخ.

٤٦-همدغه اثر، ۴۲مخ.

٤٧-Ruan, Wei, Civilization and Culture, International Review of Social Sciences and Humanities, Vol. ۱, No. ۱ (۲۰۱۱), .available at www.irssh.com retrieved on ٥/٥/۲۰۱٤.۱p.

٤۸-Ibid., p.٤

٤۹-Ibid., p.٥

٥۰-Ibid., p.٥

٥۱-Ibid., pp. ٥،٦

٥۲-Ibid., p.٦

٥۳-Paul Geyer, Prof. Dr., On the Dialectics of Culture and Civilization in Critical Cultural Studies, p.٤, downloaded from www.romanistik.uni-bonn.de Retrieved on ٥/٥/۲۰۱٤

٥٤-Ibid., p.۳

[۵۵]-جالبی، ډاکټر جمیل. پاکستانی کلچر، کراچی، نیشنل بک فاونډیشن، طبع ششم ۱۹۹۷/۱۹۸۱، ۴۲مخ.

[۵٦]-همدغه اثر، ۴۲مخ.

[٥٧]-Ruan, Wei, Civilization and Culture, International Review of Social Sciences and Humanities, Vol. ١, No. ١ (٢٠١١), p.٧.available at www.irssh.com retrieved on ٥/٥/٢٠١٤.

# دویم باب

## پسمنظري مطالعه (Literature Review)

په مجموعي توګه د سوات پر پښتو ادب او ثقافت هېڅ ډول تحقیقي کار موجود نه دی، خو د موضوع په ځینو اړخونو، یعنې د موضوع په جزیاتو په اردو، پښتو، انګرېزي او نورو ژبو کې څه نه څه لیکل شوي دي. دا موضوع که مونږ په جزیاتو ووېشو، نو دوه لویې برخې به په نظر راشي، یعنې د سوات پښتو ادب او د سوات ثقافت.

دلته به اوس د هغو موادو جائزه اخلو چې د سوات د پښتو ادب په باره یا د سوات د تهذیب او ثقافت په باره کې وي. دا مواد هم دوه قسمه دي، یو د سوات ادبي تاریخونه او تذکرې یا د سوات له ادب سره تړلې مقالې دي او دویم قسمه کتابونه او مواد د تاریخي نوعیت دي. له دې دویم قسم موادو څخه د سوات تاریخ، تهذیب او ثقافت په ډاګه کېږي. اوس به لومړی دلته د سوات د ادبي تاریخونو، تذکرو، تحریري مشاعرو او له دې سره د تړلو مقالو جایزه واخلو او بیا به د سوات د تاریخي کتابونو تجزیه وکړو.

د سوات د زړو شاعرانو د ژوند او کلام په باره کې معلومات مونږ ته د رحیم شاه رحیم له یوې تذکرې "غنېه خزانه" څخه په لاس راځي. دا تذکره اول ناچاپ وه او په ۲۰۱۵م کال کې چاپ شوې ده. د سوات په ادبي تذکرو کې "واورینې څوکې" یوه مهمه تذکره ده، دا تذکره هم رحیم شاه رحیم لیکلې او په ۱۹۸٦م کال کې چاپ شوې ده. په دې تذکره کې اکثر د هغو شاعرانو او لیکوالانو ذکر موندل کېږي، چې په هغه وخت کې ژوندي وو. د یو څو داسې شاعرانو ذکر پکې هم شته چې په هغه وخت کې وفات شوي وو، خو ډېر شاعران او لیکوالان داسې هم وو چې په هغه وخت کې ژوندي وو، خو د هغوی ذکر پکې نشته. په

۱۹۹۹م کې اختر ملک او رحیم سید خان د "لعلونه" په نوم یوه لنډه شان تذکره چاپ کړې، چې د بر سوات د اکثرو شاعرانو پېژندګلو او د کلام نمونې پکې مو جودې دي. د بریکوټ ادبي ټولنې "د ایلم ګلونه" په نوم یوه تذکره چاپ کړې، چې د سوات د بریکوټ تحصیل د اکثرو لیکوالانو لنډه پېژندګلو او د کلام نمونې پکې شاملې دي. دا تذکره په ۲۰۰۴م کال کې چاپ شوې ده. په ۲۰۱۰م کې "د یوسفزو ګلونه" په نوم یوه مختصره تذکره د "یوسفزی پښتو ادبي ټولنه" دېولۍ له خوا چاپ شوې ده. په دې تذکره کې له دېولۍ سیمې او له دغې ټولنې سره د تعلق لرونکو شاعرانو پېژندګلو او د کلام نمونې راغلي دي. له دې علاوه په خلیجي ملکونو کې هم د پښتو ځینې تذکرې لیکل شوي، چې ځینې پکې د سوات لیکوالانو مرتّب کړي دي، دا ډول تذکرې هم د سوات د شاعرانو او لیکوالانو ذکر لري. په دې قسم تذکرو کې د سوات د مهرونېش خان صدیقي تذکره "د صحرا کاروان" او د سوات د محمد ګل منصور مرتّب کړې تذکره "زما د لرې وطن یاره" او د پښتو ادبي غورځنګ سعودي عرب الرّیاض تذکره "د صحرا ونه" شاملې دي. د قاضي عبدالحلیم اثر افغاني په تذکره "تېر هېر شاعران" کې هم د سوات د محمد شریف، حسین، خیري، حمیدالله او ځینو نورو شاعرانو ذکر را غلی دی.

په ریاستي دور کې چې په سوات کې کومې مشاعرې کېدلې هغوی ته به یې جهانزیبي مشاعرې ویلې. دا مشاعرې به د جون پر پینځم او د دسمبر پر دولسم کېدلې. د جون پینځمه د سوات د والي میاګل محمد عبدالحق جهانزېب د زېږېدو ورځ وه او د ۱۹۴۹م کال د دسمبر پر دولسمه نېټه د هغه تاجپوشي شوې وه. دا مشاعرې به چاپېدې او د هغه وخت د ډېرو شاعرانو د کلامونو نمونې مونږ ته له دغو جهانزیبي مشاعرو څخه په لاس راځي. په دغو مشاعرو کې یو څو مشاعرې دا دي: "جهانزیبي مشاعره ۱۲ دسمبر ۱۹۵۴"، "جهانزیبي مشاعره ۵ جون ۱۹٦۵" ، "جهانزیبي مشاعره ۵ جون ۱۹٦۸ " او نورې. په جهانزیبي مشاعرو کې د شاعرانو د کلام رنګ سره له دې چې درباري دی او د حکمران صفتونه یې کړي، خو له دې پرته دا ډېر مهم او تاریخي دستاویزي حیثیت هم لري، ځکه چې د ډېرو شاعرانو ذکر مونږ ته صرف په دغو مشاعرو کې په لاس راځي. له جهانزیبي مشاعرو علاوه ځینې نورې داسې مهمې مشاعرې هم چاپ شوي، چې د سوات د ادبي تاریخ پوره حصه یې خوندي کړې ده. په دا ډول مشاعرو کې اهمه مشاعره د حافظ الپورۍ د مزار مشاعره ده. دا مشاعره د سوات پښتو ادبي ټولنې تر سبوري لاندې د حافظ

الپوري پر مزار د ۱۹۷٦م کال د می پر ۲۴مه نېټه شوې وه او د سوات د ګڼو شاعرانو د کلام نمونې پکې موندل کېږي. له دې علاوه حليم سرحدي او فيضان سوات د سوات پښتو ادبي ټولنې تر سپوري لاندې وړې وړې مشاعرې چاپ کړې، لکه د شاه فيصل مشاعره، د واده مشاعره او نورې. په دې وړو وړو مشاعرو کې هم د داسې شاعرانو ذکر او د کلام نمونې خوندي دي، چې بل هېڅ ځای کې په لاس نه راځي.

له دې ادبي تاريخونو، تذکرو او مشاعرو څخه علاوه، د سوات د پښتو ادب متعلق، د مختلفو ليکوالانو مقالې او مضمونونه هم په مختلفو کتابونو او رسالو کې چاپ شوي دي. سحر يوسفزي د جهانزېب کالج په "ايلم" رساله کې يو مضمون "د سوات د شاعرۍ روايت" تر سرليک لاندې ليکلی دی. دا مضمون د ايلم د ۱۹۵۹م کال د دسمبر په ګڼه کې چاپ شوی دی. د سوات د پښتو ادب په اړه له ټولو ډېر تحقيقي کار رحيم شاه رحيم کړی دی. هغه وخت په وخت د پښتو اکېډمۍ پېښور يونيورسټۍ په "پښتو" رساله کې د سوات د ګڼ شمېر زړو شاعرانو او ليکوالانو په باره کې تحقيقي مضمونونه او مقالې چاپ کړي دي. د رحيم شاه رحيم په دغو مقالو کې يو څو مهمې مقالې چې د پېښور يونيورسټۍ د پښتو اکېډمۍ په "پښتو" رساله کې چاپ شوي، دا دي:

د سوات ورک شاعران (دويم ټوک)، جلد:۱۲، شماره: ۵(جولايی: ۱۹۸۰) په دې مقاله کې د سوات د يو عوامي شاعر خيري ذکر شوی دی، د خېري ذکر عبدالحليم اثر افغاني په "تېر هېر شاعران" کې هم کړی دی.له ده علاوه په دې مقاله کې د عبدالصّمد حافظ الپوري پر ژوند او شاعرۍ هم بحث شوی دی. د سوات ورک شاعران (درېيم ټوک) جلد:۱۲،شماره:٦(جولايی: ۱۹۸۰)، په دې مقاله کې د سوات پر يو مشهور شاعر احمد دين طالب باندې تفصيلي او ډېر معلوماتي ليکل شوي دي. د سوات ورک شاعران (څلورم ټوک) جلد: ۱۲،شماره:۷ (اګست:۱۹۸۰) په دې مقله کې د مياکريم داد، ميا عبدالحليم او مصطفٰی محمد پر ژوند او شاعرۍ خبرې شوي دي. د سوات ورک شاعران (پينځم ټوک) جلد: ۱۲،شماره: ۹(اکتوبر: ۱۹۸۰) په دې مقاله کې د اخون دروېزه د مکتب له درېو شاعرانو ميا عبدالسّلام، ميا عبدل، ميا قاسم علاوه په دوه نورو شاعرانو ميرا او قلندر باندې هم تحقيقي ليک شوی دی. د سوات ورک شاعران (شپږم ټوک) جلد:۱۲، شماره:۱۱ (دسمبر:۱۹۸۰) په دې مقاله کې د سوات د شلمې پېړۍ د وړومبي دور د يو صاحب کتاب شاعر دوست محمد خان دوستي پر ژوند او فن خبرې شوي دي. د سوات ورک

شاعران (اووم ټوک)، جلد: ۱۲،شماره:۱۲(جنوري: ۱۹۸۰) د سید عثمان طالب، قاضي دا دا ګل او قاضي مصطفٰی جان د ژوند او شاعرۍ په اړه ذکر په دې مقاله کې شوی دی. د سوات ورک شاعران (اووم ټوک) جلد:۱۳،شماره:۹(اکتوبر: ۱۹۸۱) دا مقاله د سوات د دوو مهمو شاعرانو قاضي مصطفٰی جان او محمد اکبر ذکر لري. محمد اکبر صاحب دیوان شاعر دی چې د ده دیوان په وړومبي ځل محمد نواز طائر په برټش میوزیم کې لیدلی دی. د ده زمانه د ۱۸٦۲-۱۷۸۹م خوا و شا ده. د محمد اکبر پر ژوند رحیم شاه رحیم یوه بله مقاله "محمد اکبر څوک وو؟"تر سرلیک لاندې لیکلې، چې په پښتو رساله کې په جلد: ۹، شماره:۸ (ستمبر: ۱۹۷۷)کې چاپ شوې ده. د سوات د پښتو ادب په اړه د رحیم شاه رحیم یو څو نورې مقالې دا دي: سید حسین، جلد: ۱۸،شماره:۸ (ستمبر: ۱۹۸٦)، شفاهــي قیصې، جلد:۱۰، ږشماره:۱ (فروري:۱۹۷۸)، شفاهــي قیصې، جلد:۱۰، شماره:٦ (میٔ:۱۹۷۸)، د کانجو میاکریم داد، جلد: ۱۰،شماره: ۴(میٔ:۱۹۷۸) ، د سوات ادیب تاج محمد خان زېب سر، جلد: ۱۰،شماره:۱۱،۱۰ (نومبر،دسمبر: ۱۹۷۸)، د سیدو غوث په وخت کې د سوات معاشرتي او سیاسي حالات،جلد: ۱۳،شماره:۲،۱(فروري، مارچ ۱۹۸۲). لکه څنګه چې مخکې ذکر شو چې محمد نواز طائر د محمد اکبر دیوان په برټش میوزیم کې موندلی دی، هغه پر دیوان اکبر باندې یوه مقاله لیکلې چې د "پښتو" په جلد: ۹،شماره:۲،۱، (فروري، مارچ: ۱۹۷۷)کې چاپ شوې ده. له دې علاوه د سوات د پښتو ادب په باره کې په "پښتو" او نورو رسالو کې محمد پروېش شاهین، فضل الرّحمان فیضان، عزیز سهېل، نذیر سواتي، عجب دین خټک، محمد نواز خټک او ځینو نورو خلکو هم په څه نه څه حواله لیکل کړي دي. دلته د سوات د پښتو ادب په حواله د شوي کار مختصر ذکر وشو، اوس به د سوات د تاریخ متعلق د کتابو نو لنډه جایزه اخلو؛ ځکه چې په دغو کتابو نو کې د سوات د تهذیب او ثقافت په حواله ډېر څه موندل کېدای شي.په دې کې به لومړی د هغو کتابونو جایزه واخلو، چې په پښتو ژبه لیکل شوي دي."سوات نامه": خوشحال خان خټک، خوشحال خان خټک په ۱۰۸٦ هجري (۱٦۷۵ء) کې سوات ته راغلی و، نو هغه د سوات د هغه وخت تاریخي، ټولنیز، مذهبي او ثقافتي حالات په خپله منظومه سفرنامه کې بیان کړي دي. دا د هغه وخت د سوات پر حالاتو یو مهم کتاب دی، خو چونکې هغه د سوات له خلکو څخ خفه تلی و، نو ځینې خبرې یې مبالغه لري؛ ځکه خو رحیم شاه رحیم

د خوشحال خان خټک د سوات نامې په جواب کې "سوات نامه جواب نامه" ولیکله او په ډېر وضاحت سره یې د هغو مبالغو او مغالطو جواب او رڼاوی وکړ.

"تواریخ حافظ رحمت خاني" چې پیر معظم شاه لیکلی دی، په دې کتاب کې سوات ته د یوسفزو د راتګ او په هغه وخت کې د هغوی د ژوند ژواک متعلق ډېر معلومات دي. له دې امله چې دا کتاب هغه وخت ته نژدې لیکل شوی، نو ځکه یې ډېر معلومات داسې دي چې په نورو کتابونو کې نه پیداکېږي. دا کتاب په فارسي او پښتو کې ګډوډ لیکل شوی دی. د دې کتاب اولنی مصنف خواجو ملیزی دی او د دې کتاب اولنی نوم"تواریخ افاغنه" دی. خواجو ملیزی د خان کجو مصاحب و او د هغه له مرګ وروسته یې دا کتاب د هغه په نوم منسوب کړ. بیا وروسته حافظ رحمت خان ته دا کتاب د شاه جهان پور د نواب خان بهادر خان غوریا خېل داودزي له کتاب خانې نه مېلاو شو او د پیر سباک، پیرمعظم شاه په ۱۱۸۱ هـ (۱۷٦۷ء)کې د دې کتاب تالیف او تلخیص وکړ.

"تاریخِ ریاستِ سوات" د سید عبدالغفور قاسمي، د ریاست سوات پر تاریخ باندې په پښتو کې دا وړومبی کتاب دی. دا کتاب په ۱۹۳۹م کال کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات او د پښتنو له تاریخ علاوه د سوات د خلکو د ژوند ژواک ځینې خبرې موندل کېدای شي؛ تر ۱۹۳۹م پورې د ریاست سوات په حواله پکې هم کافي معلومات درج دي. "عروج افغان "دوه جلدونه د تاج محمد خان زېب سر، دا دواړه جلدونه د سوات او د پښتنو منظوم تاریخ دی. پر وړومبي جلد یې۱۳٦۰م کال لیکل شوی او پر دویم جلد باندې یې ۱۳٦۱هجري کال لیکل شوی، چې له۱۹۴۱ عیسوي کال سره برابر دی. "تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات بانی ریاست سوات حضرت میاګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب "د محمد اصف خان، دا کتاب په۱۹۵۸ م کال کې چاپ شوی او لکه څنګه چې یې له نوم نه ظاهره ده، دا د میا ګل عبدالودود سوانح دي چې محمد اصف خان ته یې ویلي دي. د ریاست سوات پر تاریخ په پښتو کې دا هم ډېر اهم کتاب دی. په دې کتاب کې هم د سوات د خلکو د ژوند د دود دستور په حواله ډېر معلومات دي، خو چونکې د بادشاه خپل سوانح دي، نو په ځینو خبرو کې پکې مبالغې شوې دي. "نوی سوات او شاه جهانزېب" څلور جلدونه د تاج محمد خان زېب سر لیکلی کتاب دی. د دې کتاب وړومبی جلد په ۱۳۷۵ هجري کې تالیف شوی او د کتابت تاریخ پرې ۱۹۷۴-۵-۱٦ لیکل شوی دی. پر دویم جلد باندې د تالیف تاریخ هم ۱۳۷۵هجري لیکل شوی او د

کتابت تاریخ پرې ۱۹۷۴-۵-۱۷درج دی. د درېیم جلد نوم "نوی سوات او د شاه جهانزېب زمانه" دی. د کتاب پر تندي يې مخامخ ۱۹۵۷ ليکلي، خو په اخر کې يې د کتاب د مکمل کېدو تاریخ ۱۳۸۰ هجري لیکلی، چې له۱۹٦۰ عیسوي سره برابر دی. پر څلورم جلد له پاسه دا لیکل شوي دي " نوی سوات څلورم جلد د رياست د انضمام اعلان ۲۸ جولائي ۱۹٦۹". د دې کتاب کتابت فضل الرحمان فیضان کړی دی، د کتابت تاریخ پرې ۱۴ اپرېل ۱۹۷۹ لیکل شوی دی."سوات د تاریخ په رڼا کې": عبدالحلیم اثر افغاني، دا کتاب د ۱۹٦۱م کال په دسمبر کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې دسوات پر وجه تسمیه، په سوات کې د مختلفو تهذیبونو او د سوات پر اثار قدیمه بحث شوی دی. "سوات "د نصرالله خان نصر، دا کتاب په ۱۹٦۳م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات په محل وقوع، قدرتي تقسیم، د چیني سیلانیانو سوات ته راتګ، پښتانه او محمود غزنوي، د شیخ ملي وېش، بایزید انصاري، د سیدو غوث او د سوات پر نورو مذهبي او سیاسي شخصیاتو او د رياست پر ترقۍ بحث شوی دی. "د رياست سوات تاریخي او ترقیاتي جائزه": ډاکټر عنایت الله. دا ورکوټی کتاب دی چې په ۱۹٦۷م کې چاپ دی. په دې کتاب کې د سوات له لنډ تاریخ  علاوه د رياست سوات د مختلفو محکمو د ترقۍ اعداد و شمار ورکړی شوي دي. "تاریخ رياست سوات" سرنزېب خان سواتي، دا کتاب په ۱۹۸۴م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات د رياستي دور او د زوړ سوات تاریخ او نور معلومات شته،لکه د رياست سوات رقبه او ابادي، د یوسفزو تاریخ، د سوات د مذهبي او قبایلي مشرانو ذکر او نور پکې شوی دی."اخون صاحب سوات" : نصرالله خان نصر، دا کتاب د سیدو بابا د ژوند په اړه زيات معلومات لري، د هغه وخت د سوات ټولنیزحالات، د سیدو بابا د جنګونو او د دغو جنګونو په باره کې لیکل شوې چاربېټې او داسې نور معلومات له دې کتاب څخه په لاس راځي. په وړومبي ځل دا کتاب په ۱۹۵۰م کې چاپ شوی دی."میلینئېم او کرزما د سوات په پښتنو کې": لیک د ډاکټر اکبر اېس احمد، پښتو ترجمه د سید تقويم الحق کاکا خېل. په دې کتاب کې د سوات پر تاریخ، په سوات کې د یوسفزو پر تاریخ او د سوات د خلکو د ژوند ژواک په ډېرو اړخونو رڼا اچول شوې ده. دا پښتو ترجمه په ۱۹۷۸م کال کې چاپ شوې ده. له دې علاوه "میاشتینۍ مجلّه پښتو" د سوات بابا جي نمبر: فروري، مارچ: ۱۹۸۲، دا خصو صي ګڼه د اخون عبدالغفور سیدو بابا متعلق ده. په دغه تناظر کې په دې ګڼه کې له ډېرو مقالو څخه د سیدو بابا د زمانې حالات او د خلکو د ژوند ژواک پته لګي.

مولوي نور محمد شاه عرف غوبه جان یو لنډ "منظوم تاریخ سوات" په ۱۹۹۴م کې لیکلی دی. "د سوات گلونه": محمد پروېش شاهین، په وړومبي ځل دا کتاب د۱۹۸۸ م کال په جولایي کې چاپ شوی دی. په دې کې مختلفې مقالې شاملې دي، لکه د سوات سین، سکندر اعظم په سوات کې، سکندر او روښانه، محمود غزنوي په سوات کې، شیخ ملي اعظم، د بي بي مبارکې واده، ببربل په سوات کې، خوشحال او سوات نامه او نور. په تاریخي لحاظ دا کتاب تېروتنې لري خو له ادبي حیثیت څخه یې انکار نه شي کېدی. "سوات د سردرو وطن": محمد پروېش شاهین، دا کتاب په ۱۹۹۳م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې پر دغو سرلیکونو بحث شوی دی، سوات ـ پرون: اریا، ایرانیان، یونانیان، هندوان، بدهیان، یهودیان، مسلمانان، یوسفزي، خوشحال خان، سر اورل سټائن، اب و هوا، د سوات سین پیرزونه، د سوات پوزیشن، له سوات نه بهر پوزیشن، غزاگانې، سوات او اسلام، د سوات علمي مقام، صحافتي او ادبي مقام، سرکاري ژبه، وړومبی باچاهي، د سوات قبیلې، وېش، خوراکونه، ارت، ثقافتي مېلې، لوبې، ابادیانې او طرز تعمیر، بېن الاقوامي حیثیت،کانونه، سوما وطن، شات، ډنډونه، دودونه دستورونه، چرگ اگی او څاوري، ځنگلي ځناور او مرغی، ځېلې بوټي، خاص لرگي او پیداوار، اثار قدیمه، ډېرلیکونه ـسوات ـ نن : سین، اورونه او ښکارونه، د سوات ښارونه، سړکونه، زړې ابادی، د کلو نومونه، سیلانیان او د سیل ځایونه، ولسي ورثه، فن او فنکار، اثار قدیمه ـسوات ـ سبا : سیلانیان، سوانه، چرند پرند، ښکار، سین، یادگارونه، سوئي گېس، پوهنتون وغېره. دا کتاب د سوات په تهذیب او ثقافت کافي معلومات لري. "گل ورینې څوکې": محمد پروېش شاهین، دا کتاب په ۱۹۸۹م کې چاپ شوی دی. د سوات د تهذیب او ثقافت په حواله لږ ډېر معلومات لري او دا مقالې پکې شاملې دي: پښتو، بدهـ مت او پښتونخوا، ایلم د تاریخ په رڼا کې، جونو سر، د سوات وړومبی جماعت، ملاکنډ، د امبېلی غزا، د رېښمو لار، صحافت په سوات کې. د دې کتاب وروستی مقاله "صحافت په سوات کې" د سوات د ادبي صحافت په حواله کافي معلومات لري.

په اردو کې چې د سوات پر تاریخ، تهذیب او ثقافت کوم کتابونه لیکل شوي اوس به د هغوی مختصره جایزه واخلو: "ہدیہ ودودیہ": سید عبدالغفور قاسمي، دا کتاب په ۱۹۳٦م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د یوسفزو د تاریخ او د ریاست سوات د تعمیر او ترقی ذکر شوی دی. "رواجنامہ سوات": غلام حبیب خان، دا کتاب په اصل کې د ریاست

سوات د قوانینو مجموعه ده. دا کتاب د غلام حبیب خان سپرنټنډنټ دفتر ډپټي کمشنر سوات تالیف دی. په وړومبي ځل د دې کتاب کتابت فضل الرّحمان فیضان کړی دی. د کتابت تاریخ پرې د۱۹۷۳م کال د د سمبر ۳مه درج ده."ریاست سوات اور اس کا حکمران میری ماضی اور حال کی آئینہ میں: شاکر بونیري، پر دې کتاب اگر چې د اشاعت تاریخ نه دی لیکل شوی، خو د کتاب له متن او واقعاتو څخه پته لګي چې دا کتاب د ریاست سوات په دور کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې له ریاستي دور څخه مخکې د پښتو د دور او د ریاستي دور لنډه شان موازنه شوې ده. سوات سماجی جغرافیہ قبایلیت اور جدیدیت کی درمیان: مصنفین: ډاکټر انعام الرّحیم، ایلن ویارو، ترجمه فضل معبود، دا کتاب هم د سوات د تاریخ او سماج متعلق معلومات لري. په ۲۰۰۵ م کې دا کتاب په اردو کې له انګرېزۍ څخه ترجمه شوی دی. انسانی حقوق اور ریاست سوات کا حکمران: اختر علي، دا کتاب په ۱۹۶۳م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات د مهمو ځایونو له ذکر علاوه د ریاست سوات د مختلفو محکمو د ترقۍ ذکر شوی دی. تعارف سوات: شېر افضل خان بریکوټي، دا کتاب په ۱۹۵۵م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات له تاریخ  علاوه د ریاست سوات د کارکردګۍ ستاینه شوې ده.له دغو کتابونو  علاوه د سوات ذکر په نورو کتابونو کې هم شوی، لکه مشرق کا سویټزرلینډ وادی سوات د محمد پرویش شاهین، سیر صوات د حکیم حاجي محمد یوسف،کافرستان د محمود دانشور او نور.

د سوات د تاریخ، تهذیب او ثقافت په حواله په انګرېزۍ ژبه کې هم ډېر کتابونه او مقالې لیکل شوي، چې ځینې مهم کتابونه او مقالې پکې دا دي:

Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger په دې کتاب کې د سوات له تاریخ  علاوه یو باب د Socio-Cultural Dimensions په نوم شامل دی. په دې باب کې د سوات د تهذیب او ثقافت په اړه په زړه پورې معلومات موجود دي ـSocial Organization of Yusufzai Swat دا کتاب مخدوم تصدّق احمد لیکلی او په ۱۹٦۲م کې چاپ شوی دی. د سوات پر تهذیب او ثقافت باندې دا بهترین کتاب دی. د نورو کتابونو په نسبت د دې کتاب یو خصوصیت دا دی چې په دې کتاب کې د ریاستي دور او د پښتو د زمانې د سوات د حالاتو موازنه شوې او په دې دواړو دورونو کې چې د سوات د ټولنې او د خلکو د ژوند په کوم اړخ کې هم څه بدلون راغلی، هغه یې په ډاګه

کړې دی. ـA General Report on the Yusufzais دا کتـاب بيليـو ليکلـی او پـه وړومبـي ځل په ۱۸٦۴م کې چاپ شوی دی. له رياستي دور وړاندې د سوات پـه تـاريخ وغېـره ډېـر کم کتابونه ليکل شوي دي. په دې وجه په کومو کتابونو کې چې د هغه وخت حالات ليکل شوي وي، نو هغه کتابونه د ډېر اهميت وړ دي، په دغه وجه دا کتاب هم يو مهم کتاب دی. د دې کتاب په پيـنځم بـاب Government and Customs کـې د يوسـفزو پـر ثقافـت ډېـر معلومات موجـود دي. د ای. ايـچ ميـک مـوهن اوای.ډي. جـی رمزيکتـاب ,Tribes of Dir Swat and Bajour together with UtmanKhel and Sam Ranizai هم ډېر مهم کتـاب دی. د دې کتاب پښتو ترجمه ډاکټر خالق زيار د "دا خاوره او دا خلک" په نامه کړې ده. د سـوات د تهـذيب او ثقافـت پـه اړه د ډاکټـر اکـبر ايـس احمـد کتـاب Millinium and Charisma among Swat Pathans هم کافي مواد لري. دا کتاب هم په پښتو کې ترجمـه شـوی دی. فريـډرک بارتهـPolitical Leadership among Swat Pathans نـومې کتـاب ليکلی دی، چې د سوات پر تاريخ، تهذيب او ثقافت دا هم يو ښـه کتـاب دی. دا کتـاب پـه وړومبـي ځـل پـه ۱۹۵۹م کـې چـاپ شـوی دی ـMonograph on Swat state دا کتـاب W.R.Hay پـه ۱۹۳۴م کـې چـاپ کـړی دی. دا کتـاب د رياسـت سـوات پـه حوالـه کـافي معلومات لري. An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸٦۲) د مېجر راورټي دا مقاله په ۱۸٦۲م کې چاپ شوې ده . لکه څنګه چـې مخکـې وويـل شـول، چې په دغه دور کې د سوات متعلق مواد لږ په لاس راځي همدغه وجه ده چې دا مقاله ډېر د قدر وړ معلومات لري په دې. د مېجر راورټي په دې مقالـه کـې زيـات معلومـات او خـبرې داسې دي چې په نورو ماخذونو کې نشته نو ځکـه دا مقالـه ډېـر اهميـت لـري ـ The Last Wali of Swat د والي سوات سوانح دي، چې فرېډرک بارتهـ تـه بـې ويلـی او هغـه لـيکلي دي. د رياست سوات په باره کـې تـرې ډېـر معلومـات حاصـلېدی شي ـ The North-West Frontier (KhyberPakhtunkhwa)Essays on Historyدا کتـاب ډاکټـر سـلطان روم ليکلی دی. د دې کتاب په درېـيم بـاب کـې پـه پښـتو او پښـتونولی تفصـيلي بحـث شـوی دی.له دې څخه د سوات د تهذيب او ثقافت په باره کې هم ډېر څه په لاس راځي.

له دې علاوه د سوات په باره کې په نورو ډېرو کتابونو او مقالو کې هم څه نه څه معلومات شته، خو د سوات پر تاریخ، تهذیب او ثقافت باندې مهم کتابونه همدا وو، چې دلته یې ذکر وشو. د پورتنیو ذکر شوو موادو له تجزیې وروسته دا خبره معلومه شوه چې په مجموعي توګه "د سوات د پښتو ادب تهذیبي او ثقافتي تجزیه " تر اوسه چا نه ده کړې او دا بالکل یوه نوې موضوع ده چې څېړلو ته اړتیا لري.

# دریېم باب

# د سوات لنډ تاریخ

## د سوات مختلف نومونه

د تاریخ په کتابونو کې سوات په مختلفو وختونو کې په بېلا بېلو نومونو یاد شوی او د هـر نوم څه نه څه معنٰی هم ښودل شوې ده. په تاریخي دستاویزاتو کې له ټولو لومړی د سوات ذکر یو یوناني تاریخپوه آریان [۲](Arrian) کړی دی.[۱] فاهیان په خپله سفرنامه کې سوات د Su-hu-to په نوم یاد کړی دی.[۲] د چین یو بل سیلاني سوات د u-changna او udyana په نوم یاد کړی دی.[۳]د ادهیانه معنی باغ ده او سوات ته د سوات د ښایست په وجه باغ ویل شوي دي. مغلي تاریخپوهانو دا سیمه د سواد په نوم یاده کړې ده، لکه په ائین اکبري او تزک بابري کې ورته سواد ویل شوي دي.[٤] په رګ وېد کې د سوات سیند د سواستو[٥] سوتي[٦] او سویتي[۷] په نوم ذکر شوی دی.[۸] د هندوستان ځینو تاریخپوهانو سوات، صوات لیکلی دی.[۹]په عام طور سره په انګرېزيکېSwat لیکل کېږي، خو مېجر راورټي Suwat لیکلی دی.[۱۰] کله چې په ۱۹۱۵م کې د سوات ریاست رامنځته شو، نو دغه وخت دا ریاست په سرکاري توګه په مختلفو نومونو یاد شوی، لکه یوسفزی ریاست سوات[۱۱] او حکومت خداداد یوسفزی سوات.[۱۲] چونکې په دې ریاست کې یوسفزي ډېر اباد وو، نو ځکه ریاست ته د دوی په نوم نوم ورکړل شو،[۱۳] خو دا خبره هم امکان لري چې باچا صیب به د خپلو سیاسي مصلحتونو پر بنیاد دا نوم ایښی وي. په ریاست کې د کوهستان هغه سیمې هم شاملې وې، چې اوسېدونکي یې پښتانه، نه وو، نو ځکه د ریاست نوم ریاست سوات و

---

[۲]-Arrian of Nicomedia (c. ٨٦/٨٩ – c. after ١٤٦/١٦٠ AD. He is considered the best source on the campaigns of Alexander the Great.

متعلقات کېښودل شو.[١٤]له پورتنیو نومونو علاوه دا سیمه د سوات په نوم یاده او مشهوره ده. د دې نوم په باره کې مختلفو پوهانو خپلې رایې ورکړي دي. نواز طائر وایي چې سوات په سنسکرت ژبه کې یو نېکمرغه ستوري ته وایي او دا په هندي علم نجوم کې په دیارلسم او پینځلسم برج پورې منسوب دی.[١٥] کله چې برتانوي حکومت د ١٩٢٦م کال د می پر٣مه سوات د یو ازاد ریاست په حیث ومنلو، نو د دې ریاست سرکاري نوم ریاست سوات شو.[١٦]کله چې په سوات کې بدهـ مت په عروج باندې و، نو هغه وخت د سوات نوم ادهیانه و او لکه څنګه چې مخکې وویل شول چې د ادهیانه معنی باغ ده او دا نوم په صحیح توګه د هغه معنی عکاسي کوي، همدغه وجه ده چې د سوات تشبیهه اکثر له سویټزرلېنډ سره شوې ده.[١٧]د سکندراعظم د دور تاریخپوهانو سوات د سوات د سیند، یعنې سواستو په نوم یاد کړی دی. سواستو لفظ له سویټا څخه وتلی، چې معنی یې "سپین" ده. د دې وجه دا کېدی شي چې سوات ته دا نوم د سوات د سیند د سپینو اوبو په وجه ورکړل شوی وي.[١٨] څوک وایي چې سوات ته دا نوم  د سواتیانو د قبایلي نوم په نسبت ورکړل شوی دی،[١٩]خو دا رایه صحیح څکه نه ښکاري چې د تاریخ په اوږدو کې سواتي پښتانه د سواتیانو په نوم نه، بلکې په نورو مختلفو نومونو لکه دهګان وغیره باندې یاد شوي او چې کله سوات ته راغلي دي نو بیا په سواتیانو مشهور شوي دي. عبدالحلیم اثر افغاني لیکلي،چې سوات له دوو لفظونو، یعنې "سو" او "ات" څخه مرکب دی. "سو" د سریانی ژبې لفظ دی چې معنی یې لمر ده او "ات" زمکې ته وا یي، نو د سوات معنی شوه د لمر زمکه، یعنې هغه زمکه چې لمر ته یې نسبت کېږي. د دې دوه توضیحات کېدای شي، یو دا چې په هغه زمانه کې دلته د سورج دیوي عبادت کېده او یا د سوات زمکه د نورو کوهستاني علاقو په نسبت پراخه او کهولاو وه او د لمر رڼا پرې ښه لګېدلی شوه.[٢٠] د سوات د سیند د سواستو نوم په اړه اثر افغاني لیکي چې دا سیند په پخوانیو تاریخونو کې د Svati  په نامه یاد شوی او میګاستس نومې مورخ په ٣٢١ قبل المیلادکې دا سیند د سواتس په نوم یاد کړی دی او بطلیموس په ١٥٠ قبل المیلاد کې دا سیند د سواستوس په نوم یاد کړی دی.[٢١]  وکیل حکیمزی د سوات د نوم او معنی په اړه وایي چې د تاریخ په لنډو کې د سوات نوم سواد یا صواد راغلی دی. په دې حواله که وکتل شي نو سواد د زړې هندی ژبې لفظ دی او معنی یې ذایقه، خوشحالي او خوند رنګ ده، مطلب دا چې د  خوندونو او د خوشحالو وطن. د ژبو د بدلون د اصولو پر بنسټ دال پر ت بدلېږي، چې له دې سرهله سواد څخه سوات جوړ

شوی دی.[۲۲] د سوات د وجې تسمیې په باره کې دا خبره هم کېږي چې سوات له اسود څخه دی او اسود په عربی کې تور ته وايي او د سوات شین، ګڼ او ګور ځنګل له لرې څخه د ډېر شین والي له وجې تور ښکارېږي، نو ځکه ورته اسود ویل کېږي.له دې علاوه دا هم ویل کېږي، چې سوات یا صوات د عربی له لفظ صوت څخه وتلی دی، چې معنی یې اواز ده ځکه چې دلته له غرونو څخه اوازونه راتمبېږي او یا د شپې په وخت په خاموشی کې د سوات د سیند اواز اورېدل کېږي. د سوات د نوم رېښې له عربي ژبې سره د لګولو دا توضیحات صحیح نه ښکاري، ځکه چې پر سوات مسلمانان حمله کوونکي عرب نه وو او نه هغوی په خپل روزمره ژوند کې عربي استعمالوله، بلکې هغه افغانان وو او خپله ژبه یې لرله،[۲۳] خو دلته دا خبره هم د پام وړ ده چې د محمود غزنوي په دور کې چې دلته کوم جماعت جوړ شوی و، نو د هغه جماعت تختی په عربي ژبه کې لیکل شوې ده.[۲٤] اګر چې د محمود غزنوي دغه لښکریان عربان نه، بلکې افغانان وو. محمد اختر هم وايي چې د لفظِ سوات ځېلې له عربي څخه راوتلي دي. هغه وايي چې د سواتي قبیلې خلک د سکندر ذوالقرنېن نسل دی او دا زاړه ایرانیان دي چې تاجک ورته ویل شوي دي.له اسلام وړاندې دا خلک زرتشت (ګبري) وو. له ساسانیانو وروسته په زابلستان د دوی حکو مت و او عربانو د سیستان او خراسان له فتح کولو وروسته دلته د ساساني دور د مالګزاری نظام خپل کړ او دغه وجه وه چې دا ګبري دهقانان او بادشاهان د عربي په اصطلاحاتو ښه پوه وو. د سامانیانو په دور کې دا خلک د بلخ، بدخشان او کونړ په علاقو کې اوسېدل او مسلمانان شوي وو. سلطان پکهل او سلطان بهرام چې کله لغمان، کونړ، ننګرهار، باجوړ، سوات، بونېر، اشنغر او د پکهلی په علاقو خور د ګبر په نامه یو مملکت جوړ کړ، نو د سوات د زرخېزی او قدرتي اوبه خور په وجه یې د دې علاقې لپاره د سواد اصطلاح استعمال کړه.[۲۵] په پخوانیو آثارو کې د سوات دوه نومونه ادهیانه او سواستو په نظر راځي. په یو نوي تحقیق کې ډاکټر عبد الرحمان د ادهیانه له معنی، یعنې باغ سره اختلاف لري. هغه وايي چې ادهیانه له Odis څخه وتلی لفظ دی او اوډېس د ګندهارا یوه شاهي قبیله وه، چې په Ora (اوډیګرام) کې اوسېدله. داسې معلومېږي چې دا د سوات یوه مهمه قبیله وه نو ځکه د سوات ټوله وادي د دوی په نوم، یعنې ادهیانه سره یاده شوې ده.[۲٦] ډاکټر محمد فاروق سواتی هم دا وايي چې پوهان اوس دا خبره کوي چې د ادهیانه معنی هغه ځای دی چرته چې ادهیان (Udiyan) اوسېدل.[۲۷]

## د سوات محل وقوع او حدونه

د سوات پر محل وقوع او حدونو باندې له بحث کولو مخکې دا خبره په ډاګه کول ضروري دي چې د سوات په حدونو کې په انتظامي ډول اکثر بدلونونه راغلي دي. په انتظامي او سیاسي وجوهاتو د سوات په حد بندۍ کې د بدلون په وجه مونږ سوات په دریوو دورونو کې وېشلی شو:

لومړی دور: د ریاست له جوړېدو مخکې،

دویم دور: ریاستي دور،

درېیم دور: د ریاست سوات په پاکستان کې له ضم کېدو وروسته دور،

ریاست سوات چې نه و جوړ شوی، نو د سوات خپل طبیعي زمکني حدونه وو او کله چې ریاست جوړ شو، نو په ځینو علاقو د سوات او د ګاونډیو ریاستونو جنجال جوړ شو، نو له دې وجې ځینې هغه علاقې چې د سوات طبیعي حصې وې له سوات څخه بېلې کړای شوې او نورو ریاستونو ته حواله کړل شوې، نو ځکه له دغو برخو څخه د سوات نوم ختم کړی شو. بل طرف ته د ریاست سوات حکمرانانو د ریاست حدونه ځینو نورو داسې علاقو ته وغزول چې اول د وادي سوات حصې نه وې او له قبضه کولو وروسته پرې د ریاست سوات نوم ولګېده. په دې حواله چې وکتل شي نو له طبیعي سوات څخه شمال طرف ته د ادینزۍ علاقه او مغرب طرف ته له لنډاکي څخه تر قلنګۍ پورې دا علاقې جدا کړل شوي دي. د ادینزۍ علاقه په ۱۹۲۲م کې د یوې معاهدې پر بنیاد په دیر ریاست کې شامله شوه.[۲۸] او له لنډاکي څخه تر قلنګۍ پورې دا علاقې د انګرېزانو تر کنټرول لاندې په مالاکنډ پروټېکټډ ایریا (مالاکنډ ایجنسي) کې راغلې،[۲۹] خو بل طرف ته په ریاست سوات کې د بونېر، کاڼا، غوربند او د اباسین کوهستان علاقې شاملې کړل شوې چې د ریاست حدونه ورسره ډېر پراخ کړل شول.[۳۰] همدا ډول کله چې په ۱۹٦۹م کې د سوات ریاست په پاکستان کې ضم کړی شو[۳۱] نو په ریاست سوات کې شاملو ټولو علاقو ته د یوې ضلعې درجه ورکړل شوه، چې بیا وروسته ترې په ۱۹۷٦م کې د اباسین کوهستان حصه جدا کړی شوه[۳۲] او کوهستان ځانله جدا ضلع جوړه کړی شوه. په ۱۹۹۱م کې د بونېر علاقې له ضلع سوات څخه جدا کړل شوې او د بونېر په نوم یوه ضلع جوړه شوه.[۳۳] او اخر ترېنه په ۱۹۹۵م کې د کاڼا غوربند علاقې هم جدا کړل شوې او د شانګله په نوم یوه ضلع ترې جوړه شوه.[۳٤] اوس هغه سیمې کومې چې د ریاست له جوړېدو وړاندې د سوات په نوم

یادېدي د سوات په نوم په یوه ضلع مشتمل پاتې شوې، خو په دې ضلع سوات کې د وادي سوات هغه علاقې شاملې نه دي کومې چې د دیر ریاست او مالا کنډ ایجنسۍ ته ورکړل شوې وې، لکه څنګه چې ذکر شو چې د سوات په طبیعي حدونو او بریدونو کې وخت پر وخت بدلون راغلی، نو ځکه مونږ د سوات له نوم سره درې قسمه لاحقې لګولی شو، یعنې وادي سوات، ریاست سوات او ضلع سوات. وادي سوات د ریاست سوات له جوړېدو مخکې د سوات قدرتي حد بندۍ ته ویل کېږي. په ریاست سوات کې د ریاست ټولې علاقې راځي په کومو کې چې له وادي سوات سره هغه علاقې هم شاملې دي چې د ریاست حکمرانانو قبضه کړې وې او د ضلع سوات حدونه هم درې ځله بدل کړل شوي، یعنې اول ترې کوهستان بیا بونېر او بیا شانګله ضلعې جدا شوي او له ۱۹۹۵م څخه راپه دېخوا بیا د سوات په حدونو کې څه بدلون نه دی راغلی. اوس چې مونږ د سوات پر حد بندۍ بحث کوو، نو لومړی به د وادي سوات حدونه معلوموو.له چینې سېلانیانو وروسته چې کوم مهم سړی سوات ته راغلی او د سوات پر حدونو یې بحث کړی، نو هغه خوشحال خان خټک دی. هغه د سوات د سرحدونو په باره کې داسې ویلي دي:

و شـــــمال و تـــــه یـــــی غـــــر بلورســـــتان دی
شرق کشـــمیر، غـــرب یـــی کابـــل او بدخشـــان دی[35]
د چـــــترال سر حـــــد د ســـــوات سره قریـــــب دی
غـــر او ســـم یـــې ابـــادان جریـــب جریـــب دی[36]
و چـــــترال و تـــــه یـــــی لار د کوهســـــتان ځـــــي
تـــر چترالـــه پـــه پینځـــه ورځـــې کـــاروان ځـــي[37]
بلـــه لار چـــې د پـــښن ځـــي تـــر کاشـــغره
بلـــه لار کـــه پـــه مورنـــګ ځـــي لـــره بـــره[38]

چترال ته له سوات څخه دوه لارې تلې دي، یوه د دیر په طرف ده او بله د سوات کوهستان (کالام) په طرف تلې ده. د اکوړي او سوات تر مینځ خوشحال خان خټک دېرش کروه فاصله ښودلې ده:

سرائـــی لـــه ســـواته فاصـــله لـــري دېـــرش کـــروهَ
چـــې ورکـــوز شي تـــر دریـــا د ســـوات تـــر کـــوهَ[39]

خوشحال د وادي سوات اوږدوالی دېرش کروهَ خوا و شا بیانوي:

طـــــولاني دره تـــــر دېرشـــــو کروهــــــو دېــــره
عـــرض يـــې دوه کـــروهَ يـــا يـــو يـــا تېـــرو بېـــره [٤٠]

مېجر راورټي د وادي سوات اخري کلی پیا ښيي او له دې وړاندې د کوهستان د حد د شروع کېدو ذکر کوي.[٤١]چوړړی [مدين] او تيرات د اخوند کريم داد په وخت کې په سوات کې شامل شوي دي .[٤٢] تواريخ حافظ رحمت خاني قبلې طرف ته سوات د مالا کنډ تر غاښي پورې ښيي او جنوب طرف ته تر مورې کنډاو پورې. په يو ځای کې داسې ليکي 'درست سوات تر تور واله تر تيراته تر پنجکوړې تر نياکه.[٤٣]Mc Mohan د سوات کوهستان د بريد په باره کې داسې ليکي:

The upper portion of its valley and the drainage area of its affluents as far as down as the village of Ain, near Baranial [Bahrin], is known by general term of Swat Kohistan. The inhabitants of Swat خohistan are Torwals and Garhwis, who are non Pathan races.[٤٤]

ترجمه: د دې وادۍ پاسنۍ حصه او د دې ابو د نکاسۍ علاقه برانيال (بحرين) ته نژدې لاندې د ائين تر کلي پورې، دې ته سوات کوهستان وايي. د سوات کوهستان اوسېدونکي توروالي او ګاوري دي چې پښتانه نه دي.

د سوات حدونه لمر پرېواته اړخ ته له مالا کنډ سره لګېدلي دي. بټ خېله او ګېر چاپېره علاقې چې په رياست سوات کې هم نه وې شاملې او اوس په ضلع سوات کې هم نه دي شاملې، خو بټ خېله او مضافات يو وخت د وادي سوات حصه وه لکه څنګه چې د پښتو يو شاعر عبدالعظيم صواتي (سواتي) ويلي دي. هغه په ١١٦٧ هـ کې په ښار (بټ خېله) کې پېدا شوی و او په قبيله رانېزی و.

زه صــــــواتی عظــــــيم لــــــه اصــــــله رانېــــــزی يــــــم
دروغ نشـــــــته دی پـــــــه دې کـــــــې وايـــــــم ســـــــچ [٤٥]

مطلب دا شو چې دی په قام رانېزی و، خو صواتی يې ځان ته ځکه وايه، چې دغه علاقې د سوات په نوم يادېدې او د وادي سوات په حدونو کې شمار وې.

## کوز سوات او بر سوات

سوات په طبيعي ډول په دوو حصو کې تقسيم دی، يعنې کوز سوات او بر سوات. مېجر راورټي د سوات په لروبر دوه حصو کې د قدرتي تقسيم په باره کې وايي چې له مانيار ښخه تر توته کان پورې کوز سوات دی او له مانيار ښخه تر پيا پورې بر سوات دی.[٤٦] د سوات د مختلفو حصو او طبيعي تقسيم په باره کې د NWFP په امپيرئيل گزيټيئر کې داسې ليکل شوي دي:

> Swat is divided into two distinct tracts: one, the Swat Kohistan, or mountain country on the upper reaches of the Swat river and its affluents as far south as Ain; and the other, Swat proper, which is further subdivided into Bar (Upper) and Kuz (Lower) Swat, the later extending from Landakai to Kalangai, a few miles above the junction of the Swat and Panjkora rivers.[٤٧]

ترجمه: سوات په دوه بېلو بېلو برخو وېشل شوی دی. د سوات د سيند او له دې سره د نورو خوړونو اخري حصه د جنوب په طرف تر ائين پورې، دې غرنۍ سيمې ته سوات کوهستان وايي او دويمه حصه خاص سوات دی چې دا بيا هم په دوه حصو کې تقسيمېږي،چې بر سوات او کوز سوات ورته وايي. په دې کې دا موخرالذکر د سوات او د پنجکوړې له سيندونو ښخه يو ښو ميله لپاسه له لنډاکي ښخه تر قلنگۍ پورې خور شوی دی.

مېک موهن هم په خپل رپورټ کې د کوز سوات حدونه تر قلنگي پورې ښودلي دي:

> From the village of Ain commences Swat proper. The upper portion from there down to the Landakai spur, five miles above Chakdara, is known as Bar (Upper) Swat, while the lower portion from Landakai downwards as far as the village of Kalangai is called Kuz (Lower) Swat.[٤٨]

ترجمه: له آئين کلي ښخه خاص سوات شروع کېږي، بره حصه له دغه ښای ښخه تر لنډاکي پورې ده چې له چکدرې ښخه پينځه ميله بره دی، دې حصې ته بر سوات ويل کېږي او له لنډاکي ښخه تر قلنگۍ پورې لاندينۍ حصې ته کوز سوات وايي.

ادينزۍ علاقه چې تر تالاش دَرې پورې رسېدلې ده، دا هم د وادي سوات حصه وه.[٤٩] د سوات سيند ښي اړخ ته د سوات حدونه تر برنګولې پورې رسېدلي ښودل شوي دي.[٥٠] لکه څنګه چې مخکې وويل شول چې د وادي سوات حدونه تر طوطه کان پورې رسېدلي او له طوطه کان مخکې، اتمان خېل علاقه ده چې دا په وادي سوات کې حساب شوې نه ده.[٥١] بونېر د رياستِ سوات حصه وه خو د رياست له جوړېدو وړاندې بونېر د وادي سوات حصه نه وه. دغه وجه ده چې راوړتې بونېر له سوات څخه جدا يوه علاقه ذکر کړې ده.[٥٢] مالاکنډ ته فرنګيانو په ۱۸۹۵م کې د ايجنسۍ (Protected Area) حيثيت ورکړ. له دې مخکې د مالاکنډ ځينې سيمې په وادي سوات کې شاملې وې، دغه وجه ده چې د سوات او مالاکنډ يو تهذيبي پسمنظر دی.[٥٣] بيليو د وادي سوات د حدونو په اړه داسې ليکي:

> The Swat valley is a rich and fertile strip of land between the Ilam range and its extension westwards, as far as Hazarnao on the south, and the Laram mountains, with its western and eastern prolongations, the Kamrani and Munjai mountains, on the north. Its eastern limit is at the ghorband peak and towards the west at the Hatmankhail [utmankhail] hills and Bajawar.[٥٤]

ترجمه: د سوات وادي مغرب طرف ته د ايلم د سلسلې جنوب طرف ته د هزارنو او د لړم غرونو په مينځ کې د زمکې يوه زرخېزه ټکړه ده، مغرب او مشرق طرف ته د کامرانۍ او منجۍ غرنۍ سلسلې دي، مشرقي حد يې د غوربند څوکه ده او مغرب طرف ته يې اتمان خېل غرونه او د باجوړ علاقه پرته ده.

د وادي سوات د پلنوالي او اوږدوالي په باره کې بيليو وايي چې له يو سر څخه تر بل سر پورې د سوات اوږدوالی تقريباً اويا ميله دی او په مينځ يا په کولاو ځای کې يې پلنوالی تقريباً لس ميله دی.[٥٥] لکه څنګه چې مخکې ويل شوي چې د سوات په طبيعي سرحدونو کې وخت په وخت د انتظامي او سياسي حالاتو په وجه بدلونونه راوستل شوي؛ ځينې علاقې په سوات کې شامل کړای شوي او ځينې له سوات څخه لرې کړی شوي دي. کله چې په ۱۹۱۵م کې سوات يو باقاعده رياست جوړ شو، نو د بونېر، کاڼا، غوربند او اباسين کوهستان علاقې هم په سوات کې شاملې شوې. دغه رنګ په ۱۹۲۲م کې د ادينزۍ علاقه

برتانوي حکومت د یوې معاهدې پر بنیادله سوات څخه جدا کړه او د دیر نواب ته یې حواله کړه.[56] په یو بل رپورټ کې د ریاست سوات حدونه داسې ذکر شوي دي:

Swat State is bounded in the north by Gilgit Agency, in the east by Mardan district and in the south by Dir State and Malakand Protected area.[57]

ترجمه: د سوات ریاست د شمال له لوري د ګلګت ایجنسۍ له مشرق څخه د مردان ضلعې له جنوب څخه د دیر ریاست او د مالاکنډ محفوظې علاقې راګېر کړی دی.

سید عبدالغفور قاسمي لیکي چې د ریاست سوات په مشرق کې اباسین، په مغرب کې تهاڼه او د ادینزو علاقه، شمال کې د دیر ریاست او په جنوب کې د مردان ضلع او د دربند ریاست واقع دي.[58]په یوه زمانه کې د قلنګۍ له ترۍ څخه واخله تر مدین (چوړړۍ) پورې او د سهیلي غرونو تر مینځ ټوله علاقه سوات ګڼل کېده، خو کله چې میاګل ګل شهزاده عبدالودود ریاست جوړ کړ، نو علاقایي حد بندي بدله شوه او بایېزی راڼېزی مالاکنډ ایجنسي شوه. ادینزی د دیر په ریاست کې شامل کړل شو او د ګوړې د غونډ او لنډاکي له ګودر څخه په پورته سوات پاتې شو.[59] د ریاست سوات د حدونو بریدونو په باره کېGeorgr Getley داسې لیکي:

It is bordered on the North by Chitral State and Gilgit, on the North -west by Dir state, on the South by the District of Mardan on the east by the District of Hazara and on the West by Malakand Tribal Area of Pakistan. It runs ١٠٠ miles fromNorth to South and ٥٠ miles from East to West at its longest and widest points, with a total area of ٤٠٠ square miles.[60]

ترجمه: د دې په شمال کې د چترال علاقه او ګلګت سره بریدونه لګېدلي دي. په شمال مغرب کې یې د دیر ریاست دی. جنوب ته یې د مردان ضلع ده. مشرق ته یې د هزارې ضلع ده او مغرب طرف ته یې د مالاکنډ قبایلي علاقه ده. دا له شمال څخه جنوب ته سل میله او په پراخو ځایونو کې له مشرق څخه مغرب ته پنځوس میله پراختیا لري او ټوله رقبه یې څلور سوه مربع میله ده.

ایرانی سپلاني محمود دانشور د ریاست سوات د رقبې او حدونو په باره کې لیکي چې د سوات رقبه څلور زره مربع میله ده. د سوات یو طرف ته دیر او چترال بل طرف ته د هزارې علاقه دریم طرف ته اباسین او څلورم طرف ته مردان او مالاکنډ ایجنسي دي.[٦١] د ریاست سوات د جغرافیایي حدونو او محل و قوع په باره کې مخدوم تصدق احمد داسې لیکي:

Swat is situated almost in the extreme north of west Pakistan (٣٥-٠ N.Lat. and ٧٢-٣٥ E.lng.). it is a little over one hundred miles to the north east of the ancient city of Peshawar, and about two hundred miles south of the border of the U.S.S.R. The river Indus forms its eastern boundary. The Agency of Gilgit is situated to its north, and the State of Dir is situated to its west; to its south lie the Malakand Pass and the District of Mardan.[٦٢]

ترجمه: سوات د پاکستان مشرق طرف ته اخري په ۳۵ -٠ درجه عرض البلد او۷۲ -٣٥ درجې طول البلد باندې پروت دی. دا شمال مشرق طرف ته د پېښور له زوړ ښار څخه سل میله لرې پروت دی او د روس له سرحد څخه دوه سوه میله جنوب طرف ته پروت دی. مشرقي سرحد یې له اباسین سره لګېدلی، شمال طرف ته یې د ګلګت ایجنسي ده، مغرب طرف ته یې د دیر ریاست دی، جنوب طرف ته یې د مالاکنډ غاښی او د مردان ضلع پراته دي.

په ریاست سوات کې چې کومې علاقې شاملې دي د هغې په باره کې مخدوم تصدق احمد داسې لیکي:

The actual position today is that the area lying south of Landakai is not referred to as Swat. What is called Swat today consists of (I) the valleys lying between Landakai and Kalam and certain adjacent areas, (II) the valleys of Chamla and Buner which are separated from the Swat valley by Mount Ilam, (III) the mountainous region known as the Indus Kohistan which is bounded by the river Indus on the one hand,

and the high hills situated to the east of Kalam on the other hand, (IV) Kalam valley which territorially is not a part of Swat State but is administered by the ruler (Wali) on behalf of the Government of Pakistan.[٦٣]

ترجمه: نن سبا صحيح پوزيشن دا دی چې له لنډاکي څخه جنوب لور ته علاقې په سوات کې نه شمېرل کېږي، کوم ته چې نن سبا سوات ويل کېږي، هغه په دې علاقو مشتمل دی (۱) د لنډاکي او کالام په مينځ کې پرته وادي او ورسره تړلې علاقې. (۲) د چملې او د بونېر واديانې چې دا د سوات له درې څخه د ايلم غر بېلې کړې دي. (۳) د اباسين کوهستان غرنۍ علاقه چې يو طرف ته ترې اباسين دی او بل طرف ته ترې د کالام لوړ غرونه دي. (۴) د کالام وادي چې دا علاقه د سوات د رياست حصه نه ده، خو د پاکستاني حکومت له طرف څخه دا د والي د انتظام لاندې علاقه ده.

**د سوات رقبه (مساحت)**

د سوات د رقبې، محل وقوع، حد بندۍ او قدرتي تقسيم په باره کې نصرالله خان نصر ليکلي، چې د سوات رقبه څلور زره مربع ميله ده. قطب طرف ته ترې چترال، سوېل طرف ته مردان، قبلې ته د دير رياست او لمرخاته ته اباسين او د امب رياست پروت دی. په قدرتي طور باندې سوات په درېو حصو کې تقسيم دی،کوهستان، بر سوات او کوز سوات.[٦٤] د سوات د رقبې او انتظامي يونټو په باره کې محمد عالم داسې ليکي:

Swat valley consists of ٥٧٣٧ Km² (estimated). Politically it is the part of Malakand Division in NWFP [now called Khyber Pakhtunkhwa], comprises of district Swat (Swat Tehsil and Matta Tehsil), a part of Swat Ranizai ( a subdivision of Malakand Protected Area) and small portion of Adinzai (district Lower Dir).[٦٥]

ترجمه: د سوات وادي په ۵۷۳۷ مربع کلوميټره مشتمله ده. په سياسي لحاظ دا د شمالي مغربي سرحدي صوبې (خيبر پښتونخوا) يوه حصه ده. دا په ضلع سوات (سوات تحصيل او مټه تحصيل)، د سوات رانيزۍ يوه حصه (د مالاکنډ د محفوظې علاقې يو سب ډويژن) او لږه حصه د اډينزۍ (ضلع کوز دير) باندې مشتمله ده.

د رياست سوات د رقبې په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې ليکي:

Swat State covered on area of approximately ٤٠٠٠ square miles, but according to the population census of Pakistan ١٩٧٢, it was ٤٧١٥ square miles. The census of Pakistan ١٩٥١, states the area of Swat state as ٢٩٣٤ square miles and that of Kalam—the tract of Swat Kohistan which was recognized as a tribal area by the Swat ruler in ١٩٥٤, included in the federation of Pakistan—٨٢٢ square miles. Thus the total area of both the recognized area of the State and that of Kalam totals ٣٧٥٦ square miles.[٦٦]

ترجمه: د سوات رياست تقريباً په څلور زره مربع ميله علاقه باندې خور و، خو د پاکستان د ۱۹۷۲م کال د سرشمېرنې مطابق دا رقبه ۴۷۱۵ مربع ميل وه. د پاکستان د ۱۹۵۱م کال د سرشمېرنې مطابق د سوات رياست رقبه ۲۹۳۴ مربع ميله ده او کالام چې د سوات کوهستاني علاقه ده کومه چې د سوات والي په ۱۹۵۴م کې قبايلي علاقه تسليم کړې وه او د پاکستان په وفاق کې شامله وه ، د دې رقبه ۸۲۲ مربع ميل دهاو په دې ډول د رياست سوات د منل شوې علاقې او د کالام ټوله رقبه ۳۷۵٦ مربع ميل جوړېږي.

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شو چې کالام د رياست سوات حصه نه وه او د پاکستان له جوړېدو وروسته پاکستاني حکومت کالام يوه قبايلي علاقه وګرځوله. د کالام په مسئله د پاکستان د حکومت او د سوات رياست د تعلقاتو په باره کې ډاکټر سلطان روم ليکي، چې کله د سوات رياست، کالام د ۱۹۴۷م کال د اګست مياشتې د څوارلسم او پينځلسم په شپه قبضه کړ، نو د دې له وجې د پاکستان د حکومت او د سوات د رياست په مينځ کې تعلقات خراب شول او دا مسئله تر۱۹۵۴م کال پورې وه کله چې د۱۹۵۴م کال د فرورۍ پر دولسمه نېټه د سوات حکمران له پاکستاني حکومت سره د سوات وړومبی ائين لاسليک کړ او د سوات کوهسستان (کالام، اشو، اتروړ) د انتظام په باره کې يې يوه معاهده هم لاسليک کړه.[٦٧]

خو کله چې د سوات رياست په پاکستان کې ضم شو او سوات يوه ضلع شوه، نو کالام بيا په ضلع سوات کې شامل کړی شو.[٦٨]

**د سوات ابادي**

د سوات ابادي د یوسفزو له راتګ وړاندې هم ډېره وه او واړه واړه کلي پکې ډېر وو. خوشحال خان یې داسې ذکر کوي:

جـــــې و هـــــر ســـــړي تـــــه اوګـــــورې نظـــــر کـــــړې
چـــــې تـــــر واړو ښـــــتنو یـــــې دي ډېـــــر کـــــلي
دري څلـــــور تکبـــــیره ووایـــــه تـــــرې تېـــــر شـــــه
د مـــــرده ؤ هـــــدیرې دي دســـــوات کـــــلي[٦٩]

د ۱۸۵۸م کال له یو دستاویز څخه پته لګي چې هغه وخت د سوات ابادي څلور لکه او څلوېښت زره وه. په دې شمېره کې هندوان، پراچګان، سواتیان او نور نه وو شامل[۷۰] ایچ. ډبلیو بیلیو په خپل کتاب (مطبوعه ۱۸٦۴) کې د سوات د ابادۍ په باره کې لیکي چې دا وادې له کلیو څخه ډکه ده. [۷۱] په امپیریل ګزیټیر نارت ویسټ فرنټیر پراونس(۱۹۰۱) کې په مالاکنډ، دیر، سوات او چترال کې د ابادۍ شمېر ۸۱۲۸ ورکړی او بیا یې ورسره دا نوټ لیکلی دی:

The figures given are those of the troops in garrison, camp-followers, civil establishments, and bazzar population at different posts. No enumeration of tribal population was attempted.[۷۲]

میک موهن په ۱۹۰۱م کې د کوز سوات او بر سوات ابادي یو نیم لک لیکلې ده.[۷۳]په تاریخ ریاست سوات (مطبوعه ۱۹۳۹) کې د ریاست سوات ابادي تقریباً درې لکه لیکل شوې ده.[۷٤] تاج محمد خان زېب سر د خپل کتاب "عروج افغان"په لومړی جلد (مطبوعه ۱۹۴۱) کې د سوات د ابادۍ په باره کې داسې لیکي:

د هجـــــرت چـــــې دیـــــارلس ســـــوه شـــــپېته کالـــــه
وو پـــــوره زیـــــات و کـــــم نـــــه وو زمـــــا لالـــــه
نـــــور پـــــه حکـــــم د ســـــلطان بلنـــــد همـــــت
وشـــــه شـــــمار د نفـــــري د ریاســـــت
پینځـــــه لکـــــه شـــــوه د ملـــــک نفـــــري شـــــمار
دا صـــــحیح تعـــــداد مـــــې تـــــا تـــــه کـــــړه اظهـــــار

او یـــــــو لـــــــــک هـــــــــم د کورونـــــــــو ابـــــــــادي ده
غـــــــم د یـــــــو ســـــــړي اوس نشـــــــته دی ښـــــــادي ده[۷۵]

یو کتاب[۳] چې په ۱۹۴۹م خوا و شا کې لیکل شوی، د هغه په څلوېښتم مخ کې د ریاست سوات د ابادی په باره کې داسې راغلي دي:

هغه نفوس چې د سوات د والي تر اداري لاندې دی دوه نیم لکو ته رسېږي. د سوات والي په هغه کتاب کې چې د سوات په باره کې یې لیکلی د سوات نفوس د تخمین له رویه درې لکه تنه ښودلی، خو ولیم بارتن دوه نیم لکه لیکلي دي، خو د کومو طایفو شمېر چې معلوم دی، هغه دا دي:[۷۶]

نیکپي خېل: ۲۴۰۰۰ تنه

شموزي : ۴۰۰۰ تنه

سیبوجني یا شامیزي : ۱۲۰۰۰ تنه

بابوزي : ۲۴۰۰۰ تنه

موسی خېل: ۳۰۰۰ تنه

عزیخېل: ۳۰۰۰ تنه

جنکي خېل: ۳۰۰۰ تنه

گوجر: ۳۰۰۰ تنه

اجړ: ۲۰۰۰ تنه

د سوات د غرونو خلک: ۲۰۰۰ تنه

د اباسین د غرونو خلک: ۲۰۰۰۰ تنه

د بونېر یوسفزي او مندڼ: ۲۰۰۰۰ تنه

د چکېسر پښتانه:۱۰۰۰۰تنه [۷۷]

د ۱۹۵۱م د سرشمېرنې مطابق د ریاست سوات ابادي ۵،۵۲،۰۰۰ ده.[۷۸] فریډرک بارتهـ په ۱۹۵٦ م کال کې په یوه مقاله کې په ریاست سوات کې د پښتنو شمېر څلور نیم

[۳] د دې کتاب وړومبي دېرش مخونه نشته نو له دې وجې یې د لیکوال او د لیک د زمانې پته نه لگي. له اخري سر څخه هم دا کتاب نیمگړی دی او په اخر کې چې کومه پاڼه موجود ده په هغې د صفحې نمبر ۴۱۱ دی. د کتاب د موادو او د متن له ځینو معلوماتو څخه پته لگي چې دا کتاب د۱۹۴۹ په خواوشا کې په افغانستان کې لیکل شوی دی.

لکه او د کوهستانیانو تقریباً دېرش زره ښودلی او بیا مخکې دا لیکي چې په دې علاقه کې د ګوجرو د تعداد اندازه لګول ګران دي.[۷۹] د میاګل عبدالودود د سوانح په انګرېزی ترجمه کې دلته د سني حنفي مسلمانانو شمېره شپږ لکه ښودل شوې او په سوات او متعلقاتو کې یې دوه سوه سیکهان او هندوان هم ښودل شوي دي.[۸۰] د سوات د ریاست ابادي محمد نواز طائر شپږ لکه ښودلې ده.[۸۱] ډاکټر عنایت الله په خپل کتاب (مطبوعه ۱۹۶۷م) کې د ریاست سوات ابادي تقریباً اووه لکه ښودلې ده.[۸۲]د ۱۹۷۲م کال د سرشمېرنې د رپورټ مطابق د ضلع سوات ابادي ۹۳۵۴۴۴.[۸۳] د ۱۹۹۸م کال د سرشمېرنې مطابق د سوات ضلعې ابادي ۱،۲۴ میلیونه ده.[۸٤]

د یادونې وړ ده چې کله د سوات د ابادۍ ارتقائي ذکر کېږي، نو چې وخت په وخت د سوات په حدونو او بریدونو کې کوم بدلونونه راغلي، هغه باید په نظر کې وساتل شي. د سوات د حدونو او بریدونو بحث په دې باب کې په تېرو مخونو کې په تفصیل سر شوی دی.

### د سوات خلک، اصل نسل

په سوات کې اکثریت یوسفزي پښتانه اوسېږي، پر دوی سربېره دلته ګوجر او کوهستاني قومونه هم آباد دي.[۸۵] بدرالحکیم حکیمزی د سوات د ګوجر قوم په باره کې لیکي چې دوی د غرونو په لمنو کې اوسېږي او د دې وطن اصلي اوسېدونکي دي. دوی د راجاګیرا رعایا وو او ژبه یې ګوجري [ګوجرو] ده، نن سبا ټول پښتو وایې او له اکثرو ګوجرو هېره شوې ده.[۸٦] هغه ګوجر چې ګډې بېزې ساتي او لا تر اوسه کډې ګرځوي هغه اجړ یا شپونکي بلل کېږي.[۸۷]

په سوات کې دګوجر قوم په اړه بډلف داسې لیکي:

> A great number inhabit the upper part of the Dir and Swat valleys, and few have found their way in to the Gilgit valley. They all speak the dialect of Punjabi, peculiar to their caste.[۸۸]

ترجمه: دوی په ګڼ شمېر د دیر او سوات د وادیانو په اوچتو علاقو کې اوسېږي او په دوی کې څه خلک ګلګت وادۍ پلو ته تللي دي. دوی ټول د پنجابۍ هغه یوه لهجه وایي چې د دوی په نسل پورې مخصوص ده.

د سوات د ګوجر قوم په باره کې ډاکټر سلطان روم لیکي:

> A large numbers of Gujars are found through the [Swat] State areas. However, instead of their pervious nomadic life, they are now settled and are to be found in almost all the villages and towns, owning land and property. They have become mainly cultivators but can be found in all walks of life. A section of them, the Ajars, are still nomads.[۸۹]

ترجمه: گوجر په زيات تعداد کې د رياست په علاقو کې موندل کېږي، خو د پخواني خانه بدوشۍ ژوند په نسبت اوس دوی مقيم شوي او تقريباً په هر کلي او قصبه کې موندل کېږي، زمکې او جايدادونه لري. دوی زياتره کروندگر دي خو د ژوند په هره شعبه کې مېلاويږي، د دوی يوه ډله اجړ اوس هم خانه بدوش دي.

د يوسفزو له راتلو څخه وړاندې د سوات پر خاوره د گوجرو قبضه وه. په دې اړه بيليو داسې ليکي:

> Gujars are a fine, healthy and athletic race, and in many points resemble the Afghans amongst whom they dwell. They are supposed to be the descendants of the possessors of the country [Swat] previous to the arrival of the Afghans.[۹۰]

ترجمه: گوجر يو ښه، صحت مند او تکړه نسل دی او په ډېرو خبرو کې دوی له افغانانو سره يو شان دي د چا تر مينځ چې دوی اوسېږي. د دوی په باره کې دا خيال دی چې دوی د هغو خلکو اولاد دی کوم چې د افغانانو له راتلو وړاندې د دې ملک واکداران وو.

په دې باره کې مېجر راورټي داسې ليکي:

> They [Gujjars] probably, are the remains of the aboriginal people of these districts, who were conquered by the Afghans when they first made their appearance.[۹۱]

ترجمه: غالباً دوی د دې علاقو د اصلي خلکو اولاد دی، کوم چې افغانانو هغه وخت فتح کړي وو کله چې دوی اول ښکاره شو.

په سوات کوهستان کې اوسېدونکي کوهستاني په توروالي کوهستانو او گاوري کوهستانو باندې هم ياد شوي دي.[۹۲] له دې علاوه په سوات کې د هندو او سکهـ برادرۍ

خلک، سواتي پښتانه، خټک، ترکاڼي، سیدان، میاګان، صاحب زادګان او نور هم شته.[۹۳] مېجر راورټي له مینګورې سره نژدې په شامیلي نومې کلي کې د ډېرو هندوانو ذکر کړی دی.[۹٤] لکه څنګه چې مخکې ذکر شو چې ډېر پوهان وایي چې ګوجر د سوات زاړه خلک دي، دغه رنګ ځینې پوهان دا خیال لري چې کوهستاني خلک د سوات زاړه او اصلي اوسیدونکي دي. فریډرک بارتهـ وایي چې کوهستاني بدهایان دي[۹٥] کله چې یوسفزو سوات قبضه کړ، نو کوهستاني یې په مشرقي سوات کې ځکه پرېښودل چې دا د اوسېدو ځای نه و، یعني غرونه وو. په سوات کې د پښتنو او د کوهستانو د Culture Area او Natural Area باره کې فریډرک بارتهـ داسې لیکي:

From the purely synchronic point of view, the present Pathan-Kohistani distribution presents a simple and static picture of two ethnic groups representing two discrete culture areas, and with a clear correspondence between these culture areas and natural areas. Pathans in broad valleys with a hot climate and scrub vegetation as against Kohistanis in high mountains with a severe climate and coniferous forest cover. [۹٦]

پروفیسر محمد اختر د مېجر راورټي له یو بیان څخه اندازه لګوي او وایي:

کوہستان سوات کی توروال (تور-آل) اور گاوری قبائل جو بحرین سی (گبری، متراوی، ممیالی) میں سی کسی ایک سی تعلق رکھتی ہیں۔ اور ان تینوں تاجک قبیلوں کو صفت نسبتی کی اعتبار سی سواتی (سوادی) کہا گیا۔ کیونکہ ان کی اکثریت مملکت سوات سی تعلق رکھتی تھی۔[۹۷]

ترجمه: د سوات کوهستان توروالي او ګاوري قبیلې چې له ګبري، متراوي او ممیالي قبیلو څخه له یوې قبیلې سره تعلق لري، د نسبتي صفت په اعتبار سره دې درې واړو تاجک قبیلو ته سواتي ویل شوي دي، ځکه چې د دوی اکثریت له سوات سره تعلق لري.

په سوات کې د مختلفو خلکو په باره کې خوشحال خان داسې وایي:

خــــــبردار کلـــــــه پــــــــه ننـــــــګ افغـــــــاني دي
کشـــــــــــمیري او پکــــــــــلي وال او لغـــــــــــماني دي[۹۸]

له دې حوالو څخه دا پته لګي، په سوات کې چې په موجوده وخت کې په اکثریت کې کوم خلک اباد دي دا له دریو نسلي ډلو سره تعلق لري. دغه درې نسلي ډلې پښتانه، کوهستاني او ګوجر دي. د سوات د ابادۍ تر سرلیک لاندې چې په تېرو مخونو کې کوم بحث وشو، نو مونږ ته صرف په دوو حوالو کې په سوات کې له پښتنو علاوه د سوات د ګوجر قوم او کوهستاني قوم شمېره په لاس راغله. فریډرک بارتهـ (۱۹۵٦) د کوهستانو شمېره دېرش زره ښودلې او د ګوجر قوم د شمېرې په باره کې یې لیکلي چې د دې اندازه لګول ګران دي.[٩٩] زما په خیال په سوات کې د ګوجر قوم اندازه لګول ګران به ځکه وو چې ګوجر په سوات کې په هر کلي، غر یا بانډه کې موجود دي او د دوی په مقابله کې د کوهستاني قوم اندازه لګول ځکه اسان دي چې هغوی په یوه خاص دره، یعنې سوات کوهستان کې اباد دي. له فریډرک بارتهـ علاوه یو بل کتاب[١٠٠] (تقریباً ۱۹۴۹مکې) د ګوجرو او اجړو شمېره پینځه زره ښودلې ده؛ یو خو دا شمېره ډېره زړه ده او بل دا په اندازو ولاړه ده، نو سړی پرې باور نه شي کولای، ترکومې چې د صحیح شمېرې تعلق دی، نو دا به هغه وخت مخې ته راځي چې کله په نسلي بنیادونو باندې سرشمېرنه وشي.

## د سوات زوړ تاریخ

سره له دې چې سوات ډېر زوړ تاریخ لري خو د زوړ تاریخ په اړه معلومات ډېر کم په لاس راځي. په تاریخي دستاویزاتو کې چې د سوات ذکر موندل کېږي، نو په وړومبي ځل یوناني تاریخپوه اریان (Arrian) د سوات ذکر کړی دی.[١٠١]له سکندر وړاندې راجه ارنس په په ۳۳۳ قبل المیلاد کې د سوات حاکم و؛ تر اټک پورې په ټوله سرحدي سیمه د هغه حکومت و. دې راجه په سوات کې یوه زبردسته قلا جوړه کړې وه چې هغه د سلطان سکندر په لاس فتح شوې ده. سکندر د کونړ پر لار سوات ته داخل شو او د برې باندې په ګودر له سینده پورېوت او بیا د منګلور پر لار پنجاب ته لاړه. د سکندر د زمانې یادګار څیزونه مشهور ماهر آثار قدیمه سر اوریل سټائین په ۱۹۲٦م کې له منګلور مخکې په "سر پټی" نومې یوه غر کې موندلي دي.[١٠٢] په ۳۲۷ ق ـ م کې سکندر اعظم پر سوات حمله کړې وه. پر سوات د حملې لپاره هغه د پنجکوړې پر سیند پورېوتلی و.[١٠٣] وایي چې دی په سرکاڼیو، چمرکنډ او ناوګۍ تېر شو او د پنجکوړې له لارې چکدرې او د سوات ناوې ته ورسېد.[١٠٤]له دې وروسته پر سوات چې د کوم خاندان د حکومت ذکر راځي هغه موریه خاندان دی. په ۳۲۱ ق ـ م کې چندر ګپت موریه د حکومت واګې په لاس کې

واخستې.[۱۰۵] گزيټئر کې داسې ليکل شوي دي:

The first historical mention of these countries is made by Arrian, who records that in ۳۲۰ B.C. Alexander lead his army through Kunar, Bajaur, Swat and Buner; but his successor, Seleucus, twenty years later made over these territories to Chandragupta. The inhabitants were in those days of Indian origin, Buddhism being the prevailing religion, and they remained thus almost undisturbed under their own kings until the fifteenth century. They were the ancestors of the non ـPathan tribes, e.g. Gujars, Torwals, Garhwis &c., who are now confined to Bashkar of Dir and Swat kohistan.[۱۰٦]

ترجمه: د دې علاقو وړومبی ذکر اريان کړی دی، هغه ليکلي چې په ۳۲۰ ق- م کې د سکندر اعظم په مشرۍ کې د هغه فوځ د کونړ، باجوړ، سوات او بونېر پر لار راغی، خو له هغه وروسته راتلونکي حکمران سيليو کس شل کاله وروسته دا علاقې چندرگپتا ته ورکړې. په هغه دور کې د دې علاقو اوسېدونکي هندوستاني اصل نسل والا وو. بدمت د دې علاقو مروج مذهب و او دا خلک د خپلو بادشاهانو ما تحت تر پينځلسمې پېړۍ پورې په ارام اوسېدل. دا د ناپښتنو قبيلو، لکه گوجرو، تورواليانو او گاوريانو پلار نيکه وو. دا قامونه اوس د دير په بشکار علاقې او د سوات په کوهستان پورې محدود دي.

په موريه خاندان کې اشوک هم پر سوات حکومت کړی دی. اشوک د چندر گپت لمسی و. اگر چې د ده د حکومت په باره کې ډېر لږ معلومات په لاس راځي، خو د تاريخ کتابونو دا دور د اشوک په نوم ياد کړی دی. د اشوک دور د سوات په تاريخ کې يو مهم موړ دی ځکه چې هغه بدهـ مذهب نه صرف اختيار کړ، بلکې په سوات کې يې دې مذهب ته ډېره ترقي هم ورکړه.[۱۰۷] دا زمکه د بدهـ مذهب د ودې او ترقۍ لپاره ډېره زرخېزه ثابته شوه او بدهـ مت نه يواځې په سوات، بلکې له سوات څخه بهر هم ښه ترقي وکړه. په پينځمه ميلادي پېړۍ (۴۰۳ ء)کې يو چيني سيلانی فاهيان سوات ته راغلی و، هغه دلته د بدهـ مت د خانقاگانو ذکر کړی دی.[۱۰۸] فاهيان په سوات کې د پينځه سوه عبادت خانو ذکر کړی دی.[۱۰۹] دغه رنگ تقريباً يو سل پينځلس کاله وروسته يو بل چيني سيلاني سنگ يون

هم دلته د بدهـ مت د زور شور ذکر کوي او وايي چې د دې ځاى باچا د بدهـ مت په اصولو په سختۍ سره عمل درامد کوي، نو ځکه په هر طرف د بدهـ مذهب زور شور دى.[۱۱۰] سنګ يون په ۵۱۹ م کې د کافرستان پر لار سوات ته راغلى دى. ده په خپله سفرنامه کې ليکلي چې په سوات کې بدهـ مذهب په عروج دى، په عبادت خانو کې دومره زيات ناقوس غږېږي چې اسمان يې په سر اخستى وي. دى وايي چې د سو ټو پو ټو سيند په غاړه ډېرې عبادت خانې دي. سوات سرسبز او اباد ملک دى او د اوسېدونکو ګزاره يې په مالدارۍ او کرکيلې ده.[۱۱۱] پروفيسر ټوچي سوات ته د بدهـ مذهب د راتګ او ترقۍ په باره کې داسې ليکي:

With the progressive advance of Buddhism towards the North -west, the law spread so widely in Uddiyana, and the monasteries there were so prosperous that the Bhaisagyavastu of the vinaya of the Mulasarvastivadins includes several Swat localities in the peregrination to the North -west made by the Buddha who flew there in the company of Vajrapani.[۱۱۲]

له دې وروسته په ٦٣٠ م کې هيون سانګ دې علاقې ته راغلى دى. په هغه وخت کې بدهـ مت دلته په زوال و، هغه د دې ځاى د خلکو په باره کې داسې ليکي:

The people are soft and effeminate in disposition are somewhat sly and crafty. They love learning yet have no application. They practice the art of using charms (religious sentences as charms) their clothing is white cotton, and they wear little else. Their language, though different in some points, yet greatly resembles that of India. Their written characters and their rules of etiquette are also of a mixed character as before. They greatly reverence the law of Buddha and are believers in the Great Vehicle.[۱۱۳]

ترجمه: خلک يې د نرم مزاج او طبيعيت مالکان دي، خو بيا هم چالاک او مکار دي. دوى د زدکړې شوق لري خو عمل پرې نه کوي. دوى کوډې او جادو هم کوي. دوى د کاټن سپينې جامې اغوندي او له دې علاوه نورې جامې ډېرې کمې اغوندي. د دوى ژبه

اګرچې په ځینو خبرو کې بدله ده خو تر ډېره حده د انډیا له ژبې سره سمون خوري. د دوی لیکدود او عادات او اداب هم ګډوډ خصوصیات لري. دوی د بدها د قوانینو ډېر احترام کوي او د لوی وهیکل منونکي دي.

په سوات کې د بدهـ مت د زوال په باره کې هیون سانګ داسې لیکي:

On both sides of the river Su -po -fa -su -tu, there are some ١٤٠٠ old Sangharamas [Monasteries]. They are now generally waste and desolate; formerly there were some ١٨٠٠٠ priests in them, but now gradually they have become less, till now there are very few.[١١٤]

ترجمه: د سوپو پا سوتو سیند په دواړه طرفونو تقریباً څوارلس سوه زړې خانقاګانې دي، اوس په عمومي توګه دا شړې او خوشې پرتې دي، خو مخکې په دې کې تقریباً اتلس زره پادریان وو او اوس دا ورو ورو کم شوي او په موجوده وخت کې صرف یو څو پاتې دي.

د بدهـ مت له زوال وروسته دې راهبانو جادو طرف ته توجه وکړه او د وخت له تېرېدو سره په پوره علاقه کې جادو عام شو.[١١٥] په سوات کې چې د هند یونان او هند توران کومې سیکې په لاس راغلي دي له هغې دا پته لګي چې دا علاقه یا خو نېغ په نېغه د هند یوناني حکمرانانو په قبضه کې وه او یا یې له هغوی سره څه کلتوري او اقتصادي تعلقات پاتې شوي دي. د یادونې وړ ده چې هند یوناني هغو یوناني حکمرانانو ته ویل کېږي، چې د موریه خاندان له زوال وروسته یې په مختلفو ځایونو کې خپل حکومت قایم کړی و. د سوات وادي یو وخت د هندي یوناني میننډر په قبضه کې هم راغلې ده، بیا وروسته دا سیمه یو بل ذیلي حاکم لینټي مېکسس دویم ته حواله کړل شوه. د مېننډر له مرګ وروسته د هغه ښځه اګا تهوکلیا د دې علاقې حکمرانه شوه، بیا هغې خپل ځوی هم له ځان سره په اقتدار کې شریک کړ، چې د اینټي مېکسس دویم طاقت ختم کړي چا چې غزني ته نزدې په اراکوشیا کې د خپلې ازادۍ اعلان کړی و. د ډائیو ډوټس نور خپلوان هم وو ځکه خو هغه د خپلې کورنۍ یو کس اول زایي لس د سوات ذیلي باچا مقرر کړ. هغه تر ډېرې لږې مودې پورې دلته حکومت وکړ، خو ډېر زر د دویم اینټي مېکس له مرګ وروسته په اراکوشیا دوباره د قبضې لپاره هلته ولېږل شو. له اول زایي لس وروسته د سوات په ذیلي بادشا هانو کې له ټولو څخه مشهور اپالوډوټس دی چا چې د ساکا سردار مایوس بې دخله

کړی و. د ایلي بالا یوې بلې تورانې قبیلې سایي هم پر سوات او چاپېره علاقو قبضه کړې وه. له ۱۰۰ ق.م څخه فوراً وروسته د هندوستان مشهور ساکا بادشاه مایوس په وادي سوات او گندهارا کې د هند یونانې بادشاهانو پېروي وکړه او اپالوډوټس یېله حکومته بې دخله کړ. د منځنۍ اسیا د یو کډوال نسل کُشان مشر کډ پیس اول د کابل تر سیند پورې په ډېرو سیمو قبضه وکړه او خپل حکومت یې پرې جوړ کړ. دلته د دې خبرې صحیح اندازه لگول گران دي چې ایا سوات هم د دې کُشان سلطنت حصه وه او یا دوی د خپل ازاد حیثیت په ځای ساتلو کې کامیاب شوي وو، خو داسې معلومېږي چې د دې ځای کمزورو بادشاهانو هم د کُشان اطاعت قبول کړی و.[۱۱٦] په ۴۵م کې راجه کنشک یو مشهور راجه تېر شوی، د دې راجه پر سوات، بونېر، کابل او بخارا قبضه وه، د ده پلازمېنه (پایتخت) پېښور و. دویم رام راجه دی، خدوخېل کې راني گټ د رام راجه پلازمېنه وه. بل راجه وراټهه دی، د ده دارالحکومت تخت بهایي و او پر سوات یې هم حکومت و. بل راجه بیټهي دی، له سوات څخه تر اټک پورې د دې راجه قبضه وه. د ده د حکومت زمانه ۲۰۰م وه. د راجه بیټهي له مرگ وروسته د ده ځوی راجه هوډي حاکم شو. د دې راجه په نوم په سوات کې اوډیگرام نومې کلی اوس هم اباد دی او اخري راجه گیرا کافر دی، د ده صدر مقام د اوډیگرام په خوا کې په غره کې و. په دې غره کې ده یوه کلا جوړه کړې وه، چې هغه د پیر خوشحال (خوشاب) په لاس فتح شوه. د پیر خوشحال زیارت د دغه غره په بېخ کې اوس هم شته،[۱۱۷] خو په دې خبرو کې اکثر مورخین دا وایي چې په هندو شاهیه کې د راجه گیرا نوم نشته، تقریباً په ۷۴۵ م کې کله چې په کابل کې د ترکي شاهي حکومت سرحدونه د سیستان له سرحد څخه تر شمالي پنجاب پورې وغځول شول، نو په دې عمل کې سوات هم د دې یوه حصه جوړه شوه. په ۸۷۰ م کې یعقوب بن لیث د ترکي حکومت ختم کړ. له دې وروسته د هندو شاهي خاندان حکومت جوړ شو او د وخت په تېرېدو سره د دې سلطنت حدونه غځېدل شروع شول. په دې دور کې د سوات په باره کې معلومات ډېر کم دي، خو بیا هم د بریکوټ (سوات) په شمال کې په یوه غره کې د یو ډېرلیک تعلق د جی پال دیو له حکومتي دور سره دی. له دې ډېرلیک څخه دا اندازه لگي چې د سوات علاقه په څه نه څه شان د دې هندو شاهي حکومت د لاندې ضرور وه. کله چې دا هندو شاهي حکومت د محمود غزنوي د لښکریانو له لاسه ختم شو، نو سوات هم د دوی له حملې څخه بچ پاتې نه شو او راجه جی پال ته یې ماتې ورکړه. مسلمانانو تقریباً په ۱۰۰۱-

۱۰۰۲م کې پر سوات حمله وکړه او په اوډيگرام کې يې د هغه وخت د حکمران قلا محاصره کړه.[۱۱۸]

## په سوات کې مذهبونه

سوات ډېر لرغونی تاريخ لري، دلته مختلف تهذيبونه راغلي دي، دغه وجه ده چې مونږ په سوات کې مختلف مذهبونه وينو. دلته به په سوات کې په مختلفو مذهبونو لنډ بحث وکړو.

## د نمر اوتار

د سيتهېن قوم له ساکا قبيلې وروسته هم د دې قوم د يو چې قبيلې يو خاندان کُشن يا کُشان اقتدار حاصل کړ. دغه کُشان قبيلې په وړومبي سر کې د نمر (سورج ديوي) عبادت کاوه، خو کله چې دې ملکونو ته راغلل او بدهـ مذهب يې قبول کړ، نو د مهاتما بدها داسې نمونه بتان يې جوړ کړل چې په هغو کې د دوی د پخواني معبود (نمر) علامت هم مو جود و. همدغه وجه ده چې نن ورځ په ټولو هغو سيمو کې چې په زړو تاريخي يادښتونو کې د گندهارا په نوم يادېږي، صرف په همدې علاقو کې د مهاتما بدها چې څومره بتان دي له هر يو بت د سر شا ته د مېچنې د پل په شان يوه غونډه هاله جوړه کړل شوي وي او دغه دې خبرې ته اشاره کوي چې دې خلکو مهاتما بدها د لمر اوتار گڼلو.[۱۱۹]

## بدهـ مت

د سوات په معلوم تاريخ کې چې دلته د کوم وړومبي مذهب ډېر اثار په نظر راځي هغه بدهـ مت دی. په پينځمه عيسوي پېړۍ کې يو چيني سيلاني گر فاهيان د دې سيمې د سيل لپاره راغلی و او هغه وخت کې دلته بدهـ مذهب ښه په ترقۍ کې و[۱۲۰] بيليو سوات ته د بدهـ مت د راتگ په حواله داسې ليکي:

> From the religious emblems found on these coins, it would appear that Budhism [Buddhism] was not known in the time of the Greeks; but during that of their successors, the Bactrians and Scythians, it was in high favor, and flourished with wonderful success, to judge from the multitude of their

religious establishments and idols the ruins of which still exist.[١٢١]

ترجمه: پر سېکو باندې له موجودو مذهبي علامتونو ښخه دا پته لګي چې د یونانیانو په وخت کې دلته بدهـ مت نه، خو د دوی د پېشروانو بیکټرینز او سکیتهیانز په وخت کې یې دلته حیرانونکې ترقي وکړه، چې د دوی له مذهبي عمارتونو، بتانو او کنډراتو ښخه یې پته لګي کوم چې اوس هم موجود دي.

بدهـ مت په سوات کې د اشوک په وخت کې وده وموندره.[١٢٢]وایي چې اشوکا د خپل هېواد په شمال کې څلور لویې سټوپې ودانې کړې چې یوه یې د بالاحصار پر غونډۍ پرته وه.[١٢٣]پروفیسر ټوچي سوات ته د بدهـ مذهب د راتګ او ترقۍ په باره کې داسې لیکي:

With the progressive advance of Buddhism towards the North-west, the law spread so widely in Uddiyana, and the monasteries there were so prosperous that the Bhaisagyavastu of the vinaya of the Mulasarvastivadins includes several Swat localities in the peregrination to the North-west made by the Buddha who flew there in the company of Vajrapani.[١٢٤]

او دغه رنګ تقریباً په ٦٣٠ عیسوي کې یو چیني سیلاني هیون سانګ په دې علاقه کې د بدهـ مت مذهب د زوال ذکر کوي.[١٢٥] په سوات کې د بدهـ مت د زوال په باره کې هیون سانګ داسې لیکي:

On both sides of the river Su-po-fa-su-tu, there are some ١٤٠٠ old Sangharamas [Monasteries]. They are now generally waste and desolate; formerly there were some ١٨٠٠٠ priests in them, but now gradually they have become less, till now there are very few.[١٢٦]

ترجمه: د سوات د سیند په دواړه طرفونو تر څوارلس سوو پورې خانقاګانې وې. دا اوس په عمومي توګه بېکاره او شړې دي، پخوا په دې کې تقریباً اتلس زره راهبان وو خو اوس ورو ورو کم شوي او په موجوده وخت کې د شمار یو څو تنه پاتې دي.

بدهـ مت په سوات کې په شپاړسمه صدۍ کې د یوسفزو تر راتګ پورې موجود و[١٢٧]

د وخت له تېرېدلو سره د بدها له اقوالو څخه دوه لوی مذهبونه جوړ شول، اولنی مهایانه یعنې لوی مذهب و. دا مذهب د هند په شمال، تبت، چین او تر جاپانه پورې خپور شو، چونکې دا په ډېره پراخه علاقه کې په مختلفو قومونو کې خپور شو، نو ځکه پکې ډېر بدلون هم راغی. د دې مذهب منونکو تبلیغ ډېر غوره ګڼلو او دا یې ویل چې هر فرد د کل جز وي چې هغه انسان نومېږي او بیا دغه انسان د هغه لوی کل جز وي، نو څوک چې له شر څخه بچ کېدل غواړي ورته پکار دي چې له نورو بېل نه شي او کار په شریکه وکړي. د بدهـ مت دویم قسم هینه یانا دی، د دې معنٰی ده وړوکی مذهب. د دې منونکي په سوېلي هند کې دي، دوی په انفرادي زیار تکیه کوي. د دوی کتابونه زیاتره په پالي ژبو کې لیکل شوي او د مهایانه، یعنې لوی مذهب کتابونه په سنسکرت ژبه کې لیکل شوي دي.[۱۲۸]

## هندو مت

د بدهـ مت له زوال وروسته سوات ته هندومت راغی. پروفیسر ټوچي لیکي چې په سوات کې د هندو یزم موجودګي یقیني ده.[۱۲۹] هیون سانګ دلته د هندوانو د لسو مندرونو ذکر په دې الفاظو کوي:

> There are about ten temples of Devas [Hindus], and a mixed number of unbelievers who dwell in them. There are four or five strong towns. The kings mostly reign at Mungali (Mung-kie-li) as their capital.[۱۳۰]

ترجمه:دلته د هندوانو تقریباً لس مندرونه دي او له له دوی سره ډېر خلک بې دینه هم اوسي، دلته څلور پینځه مظبوطې قصبې دي، باچا زیاتره په مونګالي کې اوسي، چې د دوی دارالخلافه ده.

پر دې سیمه د۸۷۰ عیسوي خواوشا هندو شاهي خاندان خپله بادشاهي جوړه کړه. دوی د اباسین پر غاړه په هنډ کې خپل پایتخت جوړ کړ او هندو یزم د دې علاقې اوچت مذهب شو. هندو شاهانو لوی لوی مندرونه جوړ کړل او هغه یې له بتانو څخه ډک کړل. د دوی بادشاهي په افغانستان کې له جلال اباد نه واخله تر ملتان او کشمیر پورې خوره شوې وه. جی پال د پنجاب حکمران و او هغه په نهمه عیسوي پېړۍ کې له ترک شاهي خاندان څخه د کابل سیند او د ګندهارا علاقې په زور واخستې.[۱۳۱] د سوات په بریکوټ کې کې په ۱۸۹۷م کې یو ډېرلیک چې په سنسکرت او دیوناګري خط کې لیکل شوی، موندل

شوی دی. دا ډبرلیک اوس د لاهور په میوزیم کې دی، په دې ډبرلیک یې داسې لیکلي دي:"د ستر حکمدار او تر گردو شاهانو غټ لوی باچا سري جیه پاله[٤] دیوه په باچاهۍ کې." [١٣٢] راجه جیه پاله له گوجر قبیلې سره تعلق لرلو.[١٣٣]په سوات کې د هندومت له نورو نخو نښانو علاوه د ایلم غر هم دی. په هندو یزم کې د دې غره د اهمیت په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې لیکي:

After the Amar Nath Cave in Kashmir, Ram Takht in Jogyanu Sar in Mount Ilam is considered the second sacred place for the Hindus due to Rama's spending some of his ban-bas time here. Swat, therefore, possesses a sacred place of the Hindus.[١٣٤]

ترجمه: په کشمیر کې له امرناتهـ غار څخه بعد، د ایلم غر په جوگیانو سر کې رام تخت د هندوانو لپاره دویم مقدس ځای دی، ځکه چې دلته راما د خپل بن باس څه موده تېره کړې ده، دغه وجه ده چې سوات د هندوانو لپاره یو تقدس لري.

له اسلام څخه مخکې په دې سیمه کې براهمنیزم (هندومت) له دې علاقې څخه بدهـ مت په تېزۍ سره ختم کړ. په دې اړه بیلیو داسې لیکي:

Brahminism continued steadily to increase, and soon after entirely superseded Budhism [Buddhism], and flourished unchecked for several centuries, till at length it was suddenly swept away by the flood of Islam, under Mahmud and his fanatic hordes, who rolled over this country in irresistible waves of destruction on their way to the conquest and conversion of India.[١٣٥]

---

[٤] حبیبي لیکي چې دا جیه پال یا جېپال هغه کابلشاه دی، چې د پلار نوم یې بهیم دیوه و او د ٣٠٠ هجري په شاو خوا کې یې باچاهي کوله. جېپال په ٣٤٩ هجري بمطابق ٩٦٠ م کال کې باچا شو او د العتبي په قول په ٣٩٣ ق یې ځان وسوځوه. دغې کورنۍ د غزني له باچا امیر سبکتگین سره ډغرې ووهلې او کله چې له کابل نه بې کوره شو نو بیا یې د اباسین په غاړه په هنډ کې دویم پایتخت جوړ کړ او له لغمانه تر پکلۍ پورې د سوات په شمول د دوی حکومت و (حبیبي، د سواتنامې سریزه، ۴ مخ)

ترجمه: براهمنيزم په کرار کرار خوربده او بیا یې ډېر زر په مکمله توګه بد مت ختم کړ او تر څو پېړيو پورې يې دلته ترقي وکړه، تر هغه پورې کله چې د محمود او د هغه د فوځ له لاسه دی د اسلام سېلاب په تېزۍ سره جارو کړ، چا چې د خپلو فتوحاتو او د هندوستان د مذهب بدلولو په وخت کې دا علاقې د مزاحمت په سختو چپو کې راټولې کړې او دلته تقريباً په ۱۰۰۴ عيسوي کې د اسلام له لاسه هندو مت ختم شو. [۱۳۶]

**اسلام**

کله چې د محمود غزنوي لښکر پر سوات حمله وکړه، نو له دې علاقي څخه يې د هندو شاهي حکومت ختم کړ او په وړومبي ځل دلته د اسلام بېرغ ودرولی شو[۱۳۷] د سبکتګين له مرګ (۹۹۷م) وروسته محمود غزنوي پر تخت کېناست، فتوحات يې شروع کړل او د هغه فوځونه تر سوات پورې راورسېدل، نو د دوی له را تګ سره دلته د اسلام رڼا خوره شوه. د سوات په اوډيګرام کې د راجه ګيرا پر کلا جنګ وشو او دا کلا د محمود غزنوي فوځيانو قبضه کړه.[۱۳۸] د محمود غزنوي فوځيان په ۱۰۰۱-۱۰۰۲م کې سوات ته راغلي، خو محمود غزنوي پخپله سوات ته نه دی راغلی.[۱۳۹] د اوډيګرام د راجه ګيرا د کلا په ښخ کې د غره په لمن کې د يو جومات نخښې موندل شوي دي. دا جومات په ۱۰۴۸-۴۹ م کې جوړ شوی و.[۱۴۰] دا په سوات کې وړومبی جومات دی. د سوات خلک ټول سنيان وو، لکه خوشحال خان چې ويلي دي:

دا دوه نشـــته پـــه ســـوات کـــې څـــوک وايـــي يـــا عـــلي
الصـــــــــالحون للـــــــــــه والصـــــــــــلحون لي[۱۴۱]

د سوات د رياست په وخت کې د سوات د خلکو د مذهب په اړه عبدالغفور قاسمي په خپل کتاب "هديه ودوديه" (مطبوعه ۱۹۳۶) کې ليکي چې د رياست ټول خلک مسلمانان دي. دوی اهل سنت والجماعت دي او د حنفي مسلک پيروان دي.[۱۴۲] تاج محمد خان زېب سر د خپل کتاب عروج افغان په لومړی ټوک (مطبوعه ۱۹۴۱) کې د سوات د خلکو د مذهب په باره کې داسې ليکي:

خپلـــــــه ژبـــــــه پښـــــــتو وايـــــــي افغانـــــــان
پـــــه ټـــــول ملـــــک کـــــې دي ســـــني مســـــلمانان
دلتـــــــــه نشـــــــــته دی فرقـــــــــې جماعتونـــــــــه
د مـــــــــذهب د جنـــــــــګ جـــــــــدل حکاېتونـــــــــه

د امـــــــیر المـــــــومنین حکـــــــم دی صـــــــاف
مـــــذهبي چـــــې پیـــــدا ني کــــړي ثـــوک خـــلاف
د شــــــیعه او احمـــــــدي ثـــــــه لــــــرې بــــــرې
دلتــــــه نشــــــته د خــــــلاف هغـــــه خـــــبرې[۱۴۳]

په سوات ریاست کې اکثریت مسلمانان وو البته دلته هندوان او سیکهان هم وو. د میاګل عبدالودود د سوانح په انګرېزۍ ترجمه کې دلته د سني حنفي مسلمانانو شمېر شپږ لکه ښودل شوی او په سوات او متعلقاتو کې یې دوه سوه سیکهان او هندوان هم ښودل شوي دي.[۱۴۴] په ریاست سوات کې د خلکو د مذهب په باره کې د باچا صیب په سوانح حیات کې محمد اصف خان داسې لیکي:

دا فخر سوات ته حاصل دی، چې د ریاست سوات زمکه د فرقو نه پاکه ده. د ریاست شپږ لکه خلک ټول سني مذهب دي. سوات کې د سوات صاحب د مقدس خاندان دا برکت دی چې دا وطن او ورسره شامل نزدې وطنونه د فرقه بندۍ د لعنت نه خلاص دي.[۱۴۵]

لکه څنګه چې مخکې وویل شول چې د سوات خلک سنیان دي او د حنفي مسلک پیروان دي. د ریاست له ادغام وروسته دلته شیعه ګان هم له نورو علاقو څخه راغلي دي، هندوان او سیکهان دلته له پخوا نه اباد دي او عیسایان (بنګیان) دلته د ریاست له ادغام وروسته راغلي دي.[۵]

## په سوات کې مختلف تهذیبونه

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شو چې مختلفو خلکو په مختلفو وختونو کې پر سوات حملې او حکومتونه کړي دي، نو دغه وجه ده چې په سوات کې د مختلفو تهذیبونو اثرات موندل کېږي.

## یوناني تهذیب

په ۳۲۷ ق م کې چې رومي سکندر د نورستان، لغمان، کونړ او باجوړ په لار سوات ته رانوت، نو د سوات په مختلفو درو، غرونو او میداني سیمو کې یې په جنګ جګړو ورځې

[۵]ډاکټر سلطان روم زباني معلومات ـ نېټه: ۲۰ دسمبر ۲۰۱۶

تېرې کړې. په دغه دوران کې هغه يو څو ورځې د سوات په منګلور کلي کې هم پړاو نيولی و. د سوات د هغې زمانې راجه د دېرش زره پياده او دوه زره سوَرو لښکر سره د سکندر مقابله کړې وه، خو ماته يې وخوړه او بيا په دغه جنګ کې مړ هم شو. د دې راجه نوم ارنس ياد شوی، چې په ۳۳۳ ق م کې حکمران شوی و. يوناني تاريخپوه Megasthenes د اباسين په غاړه د څلورو قبيلو ذکر کوي چې په هغې کې د اسا کينوئي قبيلې نه مراد د هغې زمانې د سوات خلک دي.[١٤٦] شېر افضل خان بريکوټی ليکي چې يونانيانو په خپلو کتابونو کې د سوات نوم اساکينوئي ليکلی دی. اسا کينوئي د سنسکرت له اسوا لفظ نه اخستل شوې، چې معنی يې شهسوار ده. بيا وروسته په قديم سنسکرت کې دا لفظ اسواکا يا اسادکا ويل شوی، خو يونانيانو دا لفظ بدل کړ او له اسواکا نه يې اساکاني جوړ کړ.له دې لفظ نه ددې علاقې د زړو اوسېدونکو د شهسوارۍ پته لګي.[١٤٧] د يونانيانو او اساکيني (Assakeuien)دا جنګ د Massaga [منګلور] د مضبوطې کلا مخې ته شوی و. دا د سکندر په سوات کې وړومبی جنګ و.[١٤٨]له دې وروسته هغه د سوات په رياست بازيره او اورا کې نور جنګونه وکړل.[١٤٩]

## ايرانی تهذيب

کله چې په ٦٠٠ ق م کې په وادي سوات کې د اشوري خاندان حکومت پای ته ورسېد، نو ورپسې سمدستي په دې علاقه د ايران د ميدين قوم حکومت راغی. په دې زمکه د خسرو د زمانې(۴۸۰ ق م) کتيبې (ډبرليکونه) موندل شوي دي. پانيني په ۴۳۷ ق م کې دلته د ميدين قوم وجود ښيي. داسې ښکاري چې د يونانيانو تر راتلو (۳۲۷ ق م) پورې تقريباً درې سوه کاله په دې علاقو د ايرانيا نو اقتدار پاتې شوی دی.[١٥٠] دارايوش اعظم په ۵۲۱ ق م کې د ايران واګې په خپل لاس کې وا خستې. د ده په دور کې د منځنۍ او مغربي اسيا ټولې صوبې په ايران کې د تورې په زور شاملې کړل شوې. په دې دورِ حکومت کې په وړومبي ځل په تاريخ کې د سوات نوم راځي. دې ايراني بادشاه سرحدي علاقې فتح کړې او په دوه حصو کې يې تقسيم کړې، يوه حصه هغه ده چې اوس ورته سوات وايي.[١٥١]

## ګندهارا تهذيب

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شو چې اشوک او له هغه وروسته د کنشک په دورِ حکومت کې بدهـ مت په سوات کې په تېزۍ خپور شو، د سوات سيند په دواړه طرفونو

تقریباً۱۴۰۰ عبادتخانې وې. د بدهـ مذهب ځینې کلاگانې او سټوپې اوس هم دلته موجودې دي، لکه د بریکوټ په سیمه کې د شنگر دار او املوک دَرې سټوپې. د بریکوټ جنوب طرف ته د یوه غره په لمن کې دوه سټوپې دي. له نجیگرام سره خوا کې هم د سټوپو او عبادت خانو نخښې پیداکېږي. د تیرات په مقام په یو گټ کې د مهاتما بدهـ د پښو نخښې هم دي، دا دواړه گټې د بدهـ مت منونکو لپاره ډېرې مهمې دي.[۱۵۲]

## دله زاک او سوات

کله چې سوات ته د محمود غزنوي فوځیان راغلل، نو له هغوی سره دلته نورې ډېرې قبیلې هم راغلې او ابادې شوې، چې په هغو کې یوه قبیله دله زاک هم ده. دغه رنگ یوه بله قبیله دهگان هم سوات ته راغلل چې بیا وروسته په سواتیانو یاد شول. سواتي او دله زاک قبایل له یو بل سره وران شول او دله زاک یې له سوات نه پېښور طرف ته وشړل. اصف خان وایي چې تر څلور سوه هجري سنې (۱۰۰۹ م) پورې دا دواړه قبیلې په ارام اوسېدې خو څه وخت وروسته پکې اختلاف پیدا شو او سواتیانو دله زاک له سوات نه وشړل.[۱۵۳] عبدالغفور قاسمي وایي چې د ۴۰۲ هـ (۱۰۱۱م) نه تر ۹۰٦ هـ (۱۵۰۰م) پورې پر سوات بونېر او نورو سیمو باندې دله زاکو حکومت وکړ، خو پر دوی باندې اوله حمله خلیل مهمندو وکړه او دویمه حمله پرې یوسفزو وکړه او دوی یې چچ هزارې ته وزغلول. په چچ هزاره کې دوی تالان طوفان گډ کړ اخر دا چې سلطان جهانگیر په ۱۰۱۴ هـ (۱٦۰۵م) په دوی تباهي گډه کړه او اکثر یې له کډو سره دکن ته جلا و طن کړل. په دوی کې یحی نومې ډېر بهادر سړی تېر شوی دی، دی له خپل دوه زره لښکر سره د سلطان محمود غزنوي د سومنات په حمله کې شریک و.[۱۵٤] الله بخش یوسفي وایي چې مغلو به دوی ته افغانان ویل خو نورو پښتنو قبیلو دوی پښتانه نه گڼل.[۱۵۵] د دوی د اصل نسل باره کېH.W Bellew لیکي، دا خبره واضحه نه ده چې دله زاک څوک دي، څوک دوی ته ترکلاڼي پښتانه وایي، خو پښتانه دوی له هندي نسل څخه گڼي.[۱۵٦] د محمود غزنوي له فوځي حملې سره په سوات کې د هندو شاهي سلسله ختمه شوه او دلته اسلام راغی.

## د یوسفزو سوات ته راتگ

د یوسفزو سوات ته راتگ په باره کې مېجر راورټي داسې لیکي:

At length Shaykh Mali who was, by all accounts, the

> chief of the tribe, and another of their great men, Malik Ahmad, having consulted together, determined to effect the conquest of Suwat, then held by a dynasty of kings who claiming descent from Alexander of Macedon himself, had for many centuries past, ruled over the regions lying between the Kabul river and the mountain of Hindu Kush, as far east as the Indus; together with the whole northern alpine Punjab, as far east as the river Jehlum, the Hydaspes of the ancients.The Yusufzis, accordingly, taking with them their wives and families, invaded Suwat by the Malakand Pass, the scene of the terrible defeat sustained by the troops of the emperor Akbar, under his favourite, Raja Bir ـbal at the hands of the Yusufzis in after years, and soon overran the whole of that pleasant valley, which they finally subdued, together with the surrounding districts of Buner, Bajawrr, and Panjkorah.[۱۵۷]

یوسفزي چې له افغانستان نه راغلل نو زیات په پېښور، اشنغر او د بګیاړې د رود پر غاړه دېره وو.[۱۵۸] چونکې یوسفزي له افغانستان نه ډېر په بد حال راغلي وو، نو دلته به دوی سوات ته مالګې او انډېري راوړل او په غله به یې بدلول. په دې دوران کې د ملک احمد او د سلطان اویس تعلق جوړ شو او سلطان اویس د ملک احمد له خور سره واده وکړ.[۱۵۹]له دې وروسته د یوسفزو سوات طرف ته راغزېدل شروع شول او چې کله مهورې ته راورسېدل نو له سلطان اویس سره وېره پیدا شوه او دا یې وویل چې یوسفزي د سوات د زوال سبب جوړېدی شي،[۱۶۰]نو مشاورینو یې ورته دا مشوره ورکړه چې له یوسفزو سره رشته ختمول غواړي چې دوی نور نه راځي،[۱۶۱] نو سلطان اویس خپله بي بي په چاړه ووهله او په منګلور کې یې دفن کړه.[۱۶۲] ملک احمد خبر شو، خو له حکمته یې کار وا خست او سره د سلو غوایانو لاسنیوي ته راغی.[۱۶۳] له ملک احمد سره چې کوم ملګري لاسنیوې ته راغلي وو د هغوی او د میر هنده (د سلطان اویس د فوځ مشر) په مینځ کې تاو تریخوالی پیدا شو او میر هنده د هغوی ډېره بې عزتي وکړه[۱۶٤] او دغو مېلمنو ته یې غله پر زمکه وغورزوله او چې

کله ملک احمد بهر راووت او له دې قيصې خبر شو نو ملګرو ته يې ډاډ ورکړ او ورته يې وويل چې دوی کبر وکړ، د سوات وريژې يې وغورځولې او مونږ راټولې کړې، انشاءالله سوات له دوی لاړ، ځکه چې دوی خپله کاسه پخپله واړوله.[١٦٥] دوی واپس شو او په سوات د حملې بندوبست يې جوړ کړ. سوات ته د راتلو دوه لارې وې يوه د مهورې پرغاښي وه چې په هغې د مير هنده چوکۍ ناسته وه او بله لار د مالاکنډ پر غاښي وه چې په هغې د بادشاه اويس او فرخ زاد تانه ناسته وه.[١٦٦] يوسفزو د مالاکنډ پر لار حمله وکړه او چې ښهر (بټ خېله) يې لاندې کړه او د سوات درېيمه حصه د دوی په تصرف کې راغله، نو چا چې به اطاعت قبلولو هغه ته به يې امن ورکولو او دغه رنګ نور يوسفزي به پسې په کډو راتلل او مېشت کېدل به.[١٦٧] دا شان په هر کلي کې يو څو کورونه به د يوسفزو وو نور به ورسره سواتي اوسېدل او بيا په تانه کې د سلطان اويس د لښکر او د يوسفزو جنګ شو، په دې جنګ کې سلطان اويس ماتې وخوړه او لښکر يې وتښتېده. د يوسفزو لښکر ورپسې روان شو، له ډېر هيبته سلطان اويس لار غلطه کړه او راپورې له لنډاکيه چې مقابل د ترهنګ کلی دی، له لښکره جدا شو، په ترهنګ ورغی، له هغه ځای څخه سوې ګلۍ په غاښي ورغی، له هغه دمغار ته ورغی او بيا له هغه ځای څخه منګلور ته ورغی.[١٦٨] په دې جنګ کې د سوات ډېر لوی لوی اميران مړه شول[١٦٩] سلطان اويس په دې تېښته کې له وېرې خپلې د سرو زرو حلقې هم وغورځولې چې څوک يې ونه پېژني ځکه چې هغه وخت به صرف بادشاه د سرو زرو حلقې اچولې.[١٧٠]له دې وروسته چې د يوسفزو او د سلطان د لښکر کوم جنګ وشو، نو په هغې کې له يوسفزو څخه صرف يو کس کريمداد دَ مير هنده په مقابله کې مړ شو او دوه برخې سوات د دوی په قبضه کې راغی او دغه شان په هر کلي کې څو څو کډې د يوسفزو پرتې وې.[١٧١] درېيمه برخه سوات چې له سلطان او ملک حسن متراوي سره و، هغه د سوېګلۍ له غاښي نه تر منګلوره پورې دا ملک د سلطان اويس و او د شامېلې له غاښي نه تر لنډاکي او مهورې پورې دا ښېرازه او د اوبو د لاندې علاقې له حسن متراوي سره وې او د يوسفزو ټول لښکر ورته ګېرچاپېره په ښار، تانه، چکدره او راموړه کې پروت و.[١٧٢]له دې وروسته يوسفزو پر منګلور او ګېرچاپېره کلو باندې حملې وکړې او سلطان اويس د منګلور په کلا کې بند و. دې دوران کې د يوسفزو ځينو هلکانو په تالاش حمله وکړه او تالاش او درست سوات د دوی په قبضه کې راغی.[١٧٣] د يوسفزو پر سوات له قبضې نه وروسته سواتيان له دې ځای نه پکهلۍ، الائي او ننده‌ياړ علاقو ته لاړل.[١٧٤] يوسفزو په

دولس کاله کې پوره سوات قبضه کړی دی.[۱۷۵] کله چې یوسفزو دا علاقه قبضه کړه نو د شیخ ملي په مشوره په مفتوحه علاقو کې تقسیم شو.[۱۷۶]له یوسفزو مخکې چې کوم خلک دلته اوسېدل هغوی ته زاړه سواتیان ویل کېږي. د سواتیانو قوم اګر چې په نسب کې په پښتنو نه ورګډېږي خو کله چې دوی پښتو وایي او ټول رواجونه یې د پښتنو دي او له پښتنو سره ډېرګډ راګډ دي نو ځکه په پښتنو حساب دي.[۱۷۷] دا سواتي د یوسفزو له قبضې نه ببرته وتښتېدل.[۱۷۸] په اتمه پېړۍ کې دغو سواتیانو د سید جلال الدین په مشرۍ کې پر پکهلۍ حمله وکړه،[۱۷۹] په پکهلۍ کې د سلطان او دهګان تمیز ختم شو.[۱۸۰] سوات ته د یوسفزو د راتګ د نېټې په باره کېH.W. Bellew داسې لیکي:

In ۱۵۱۹ A.D, when Babur journeyed this way, their limit included the lower half of Swat, and it was subsequent to this that they spread into their present limits.[۱۸۱]

ترجمه: په ۱۵۱۹م کې چې کله بابر په دې لار سفر وکړ، هغه د کوز سوات تر نیمایي پورې محدود پاتې شو او له دې وروسته بیا هغه خپل موجوده حدونو پورې وغزېدو.

الله بخش یوسفي وایي چې دا اندازه لګولی شي چې تر ۱۵۱۵ پورې یوسفزو پر مردان، دیر او سوات خپل اقتدار قائم کړی و.[۱۸۲] په Imperial Gazetteer کې لیکلي چې په شپاړسمه پېړۍ کې بونېر، کوز سوات او پنجکوړه د یوسفزو په قبضه کې وو.[۱۸۳]ډاکټر اکبر ایس احمد پر سوات د یوسفزو د قبضې نېټه ۱۵۲۰ ښيي.[۱۸٤] ډاکټر سلطان روم پر سوات د یوسفزو د حملې نېټه د شپاړسمې پېړۍ اولنۍ نیمایي ښيي.[۱۸۵] عبدالاکبر خان اکبر وایي چې پر سوات یوسفزو قبضه په ۱۵۱۸کې کړې او بندوبست وېش په ۳۱-۱۵۳۰کې شوی دی.[۱۸٦]له دې ټولو خبرو وروسته مونږ دا ویلای شو چې یوسفزي سوات ته د ۱۵۱۵ او ۱۵۳۰ عیسوي په مینځ کې راغلي دي.

### د سوات اخون

په سوات کې چې له پیر بابا او اخون درویزه بابا وروسته د کوم اهم او مقبول شخصیت ذکر راځي هغه د سوات اخون دی، چې د سیدو بابا په نوم مشهور دی. سیدو بابا(عبدالغفور) د سوات شامیزو په علاقه جبړۍ نومې کلي کې په ۱۷۹۴م کې پیدا شو، د پلار نوم یې عبدالواحد و، پښتون قام کې له صافي مومندو قبیلې سره تعلق لري.[۱۸۷] سیدو بابا په مختلفو نومونو مشهور دی، لکه سوات صاحب، اخون صاحب سوات، د سیدو غوث،

اخون بيکي او نور[188] H.W. Bellew د سيدو بابا د حسب نسب په باره کې داسې ليکي:

Abdul Ghafur, now known as Akhun Sahib, was born at jabrai, a small shepherd's hamlet in Bar Swat, about the year ١٧٩٤. His parents, of whome nothing certain appears to be known, were poor and obscure people of the Gujar caste, but according to some accounts, of the Tsapi caste, who are a branch of the Mian fraternity, according to the saying of his disciples and followers. The former would appear to be the correct account, for all admit that Abdul Ghafur in his youth was employed to tend cattle at graze.[189]

ترجمه: عبدالغفور چې اوس د سوات د اخون په نوم يادېږي په ۱۷۹۴م کال کې په بر سوات کې په جبړۍ نومې کلي کې د شپونکو په يوه وړه جونګړه کې پيدا شو. د هغه مور و پلار چې د هغوی په باره کې څه صحيح معلومات نشته د ګوجر قبيلې غريبانان او بې نومه خلک وو، خو د هغه د شاګردانو او مريدانو د ځينو روايتونو پر بنياد دا صافيان وو چې دا د مياګانو له شجرې سره تعلق لري. دا وړومبنۍ خبره زياته صحيح ښکاري ځکه ټول دا مني چې عبدالغفور به په خپل هلکوالي کې څاروي څرول.

د سيد احمد بريلوي له مرګ وروسته د سوات اخون اهميت نور هم ډېر شو، په دې باره کې ايمپيريل ګزيټير داسې ليکي:

The primacy then passed to Abdul Ghafur, the famous Akhund, who established himself in ١٨٣٥ at Saidu in Upper Swat, where he lived until his death in ١٨٧٧, the most powerful man in the country. [190]

ترجمه: مشري بزرګي بيا اخوند عبدالغفور ته پاتې شوه چا چې ځان په ۱۸۳۵کې په بر سوات کې د سيدو په مقام مقيم کړی و او همدلته دی تر وفات يعنې تر ۱۸۷۷م پورې اوسېده. دی د دې علاقې له ټولو څخه ډېر با اختياره سړيو.

د سيدو بابا طبيعت له وړوکوالي نه پرهيزګارۍ طرف ته مايل و. د کومې غوا پيۍ به يې چې څښلې، نو هغه به يې هم له پړي نيولې په دې خيال څروله چې هسې نه د بل چا

د پټې فصل يا وابښه وخوري.[191] مېجر راورټي د سيدو بابا په باره کې داسې ليکي:

He is learned in the whole of the usual sciences studied by Muhammadans, to the necessary degree that his position in religious matters demands, and has no concern in, or control what soever, over the government of the valley, which is entirely held by the different petty chieftains.[192]

ترجمه: هغه په هغو ټولو علومو باندې تر دومره حده پوهه لرله څومره چې په مذهبي معاملاتو کې پکارېږي او کوم چې مسلمانان لولي او زده کوي يې. دی د علاقې د حکومت په معاملاتو کې گوتې نه وهي او نه پرې څه قابو لري دا اختيارات په مکمله توگه له وړو وړو ملکانو سره دي. د سيدو بابا هم دا کرزماتي شخصيت و، چې بيا وروسته په سوات کې د هغه لمسو د باچاهۍ په جوړولو کې لوی کردار ادا کړی دی.

په ۱۸۷۷م کې سيدو بابا وفات شو،له دوی څخه دوه ځامن پاتې شول د يوه نوم عبد الحنان مياگل او د بل عبد الخالق مياگل و، دا دواړه ورونه په ميا گلانو مشهور شول.[193]

## شهزاده عبد الحنان او سوات

لکه څنگه چې وړاندې ذکر شو چې د سيدو بابا دوه ځامن وو، د يوه نوم عبدالحنان و او د بل نوم عبدالخالق. عبدالحنان په مشر مياگل مشهور و، د تورو ټوپکو، د اسونو او د ښکارونو شوقي و، د ده دا خيال و چې د پلار له وفات وروسته په وطن کې د امن قايمولو لپاره فوځي طاقت ضروري دی. د دې غرض لپاره يې ډېر کوښښونه وکړل، خو کامياب نه شو. دی په ۱۸۸۷م کې وفات شو. ده دوه ځامن عبدالرزاق المعروف سيد بادشاه او عبدالواحد المعروف امير بادشاه خپل يادگار پرېښودل. [194] ايمپيريل گزيټير ليکلي چې د اخون سوات له وفات وروسته د ده ځوی د اقتدار ډېر کوښښ وکړ، خو خوند يې ونکړ او د دير نواب يې سخت مخالفت وکړ.[195] ډاکټر سلطان روم ليکي چې په ۱۸۷۱م او ۱۸۷۵م کې سيدو بابا د خپل مشر ځوی ميا گل عبد الحنان لپاره د سوات د باچاهۍ د منصب حاصولو کوښښونه کړي وو، خو ناکام شوی و. هغه مخکې ليکي چې ميا گل عبدالحنان ټول عمر د سوات د حکمرانۍ لپاره کوښښونه وکړل، خو د هغه دا خوب د پلار له مرگ وروسته هم پوره نه شو.[196]

## شهزاده عبد الخالق او سوات

عبدالخالق د دنياوي جاه و جلال پرواه نه لرله او له اول نه يې د سيدو بابا د ولايت او خلافت منصب سنبال کړ. د سيدو بابا خليفه گان او مريدان يو ځل بيا سيدو شريف ته راروان شول. دی په ۱۸۹۲م کې وفات شو. دوه ځامن شهزاده عبدالودود او شهزاده عبدالمنان عرف شيرين صاحب ترې پاتې شول.[۱۹۷]

## په سوات کې لومړنی حکومت

سيدو بابا د سوات د خلکو په صلاح د پير بابا په اولاد کې د ستهانې د سيد زمان شاه لمسي سيد اکبرشاه ته دعوت ورکړ او په ۱۸۴۹م کې يې د سوات باچا کړ. د سوات په تاريخ کې د يو حکومت جوړېدل يوه مهمه واقعه ده. د سوات خانان ملکان په خپله ازادۍ وېرېدلي وو ځکه چې انگرېزان د هغوی دروازې ته رارسېدلي وو، ځکه هغوی جرگه وکړه او سيد اکبر شاه يې خپل بادشاه ومانه. دی تر خپل وفات يعنې د۱۸۵۷م کال د مې تر ۱۱مې نېټې پورې د سوات باچا و.[۱۹۸] سيد اکبر شاه سوات بونېر کې امن قائم کړ، شرعي نظام يې جاري کړ، بيت المال يې جوړ کړ او حضرت اخون صاحب سوات يې شيخ الاسلام مقرر کړ.[۱۹۹]

# دسوات د ریاست تشکیل

## سید عبد الجبار شاه (۱۸۸۰-۱۹۵٦) او سوات

په ۱۹۱۵م کې د سوات خلک چې د دیر د نواب له ظلمونو نه ډېر تنګ شول، نو د سنډاکی ملا تر ببرغ لاندې راجمع شول. اول دوی غوښتل چې په میاګلانو کې یو کس خپل مشر کړي خو هغوی له یو بل سره په حسد کې دومره ډوب وو چې دوی ته خپله د نجات لار په هغوی کې نه ښکارېده او سم له واره یې سید عبدالجبار شاه را اوغوښت.[۲۰۰] سید عبدالجبار شاه د سوات له باچا کېدو وروسته د سواتیانو د مشرانو یوه لویه جرګه سیدو شریف ته راوبلله. د دغې جرګې په صلاح مشوره یې د سوات لپاره یوه نظام نامه جوړه کړه.له دې وروسته یې سنډاکی ملا صاحب د سوات قاضي القضاة مقرر کړ.[۲۰۱] دی د ۱۹۱۵م کال د اپریل پر ۲۴مه باچا شو.[۲۰۲] میاګل عبد الودود په خپل سوانح کې لیکي چې کوم وخت سید عبد الجبار شاه باچا شو، نو په هغه وخت کې زما او زما د ورور میا ګل شیرین جان له یو بل سره تعلقات ډېر خراب وو. زمونږ د دواړو جدا جدا ډلې وې، اصل کې عبد الجبار شاه د شمالي سوات خلک، یعنې د سیند ښي طرف خلکو بادشاه کړی و، نو د بابوزي علاقې او نورو خلکو چې دا تماشه ولیده نو دوی هم تګ راتګ شروع کړل، حتٰی چې زما شیرین هم ورسره ملاقات وکړ، نو په دې دوران کې ما  د میا ګل عبدالودود او شیرین خپلو کې صلح وکړه او د خپلو ډلو خلکو ته یې وویل چې له یو بل سره جوړ شئ.په دې خبره خلک له دوی نه خفه شول او څه کسان د عبد الجبار شاه څنګ ته لاړل، نو میا ګلانو پر هغوی حمله وکړه او بیا عبد الجبار شاه د هغوی په مرسته پر میا ګلانو حمله وکړه او دوی یې له سوات څخه وویستل. دوی په دیر کې دلبار نومې کلي ته لاړل چرته چې د میاګلانو خپل دو ترونه وو.[۲۰۳] سید عبد الغفور قاسمي د عبد الجبار شاه په باره کې لیکي چې د هغه په لاس کې له ښه تقریر او صفا تحریر نه علاوه نور هېڅ هم نه وو، خو د سوات قوم له ده سره ډېره  مرسته وکړه او په خپلو ټوپکو کارتوسو ورسره نوکران شول[۲۰٤] اګر چې سید عبد الجبار شاه بادشاه و، خو د ریاست حقیقي بانیان مولوي احمد جان عرف سنډاکی ملا ، ماسم خان او د هغه ورور حبیب خان شامیزی وو.[۲۰۵] په ۱۹۱۷م کې سید عبد الجبار شاه له حکومت څخه معزول کړل شو. په دې باره کې ډاکټر محمود احمد غازي د سید عبدالجبار شاه د پسمرګي چاپ شوي کتاب "کتاب العبرة" په دیباچه کې لیکي

چې د انګرېزانو سازشونو او د خپلوانو دوکو هغه کار ته نه پرېښوده.[۲۰۶] سید عبد الغفور قاسمي لیکي چې د هغه حکومت ځکه ختم شو، چې هغه خپل خپلوان په سوات کې په اعلٰی عهدو مقرر کړي وو او نه یواځې دا چې هغه قادیانی و، بلکې د قادیاني مشن یو سرګرم کارکن و.[۲۰۷] تاج محمد خان زېب سر وایي چې د هغه د معزول کولو وجه هم د هغه دغه د قادیانیت نظریات وه، په دې اړه هغه داسې لیکي:

یـــــــو مـــــــلا شـــــــولو وارد د هندوســـــــتانه
دا مـــــلا د مـــــا مـــــدېری وه واوره مانـــــــه
چـــــې ای خلقـــــو ستاســـــو شـــــاه خـــــو قادیـــــانی دی
دا احـــــوال معلـــــوم ټـــــول مـــــا تـــــه پخـــــوانی دی
چـــــې مـــــلا د ســـــنډاکی پـــــرې خـــــبردار شـــــه
مخـــــالف هغـــــه د شـــــاه عبـــــد الجبـــــار شـــــه[۲۰۸]

بهر حال لکه څنګه چې مخکې وویل شول د عبدالجبار شاه په بادشاه کېدو او معزول کېدو دواړو کې د سنډاکی ملا لوی کردار و. سنډاکی ملا له هغه سره تعلق ځکه خراب شو، چې هغه د انګرېزانو طرفداري کوله. سید عبدالجبار شاه د سوات د ټولو کورنیو او بېروني مسئلو حل په دې یوه خبره کې لیده، چې سوات دې انګرېزانو ته حواله شي. د دې حالاتو په رڼا کې د بر سوات د خلکو یوه جرګه د نلو په قلا کې د **۱۹۱۷**م کال د ستمبر میاشتې پر دویمه نېټه د اتوار پر ورځ راوبلل شوه چې د سوات د مستقبل د بادشاه په باره کې فیصله وکړي او همدغې جرګې سید عبدالجبار شاه ته دا پېغام ولېږه، چې د سوات خلکو ته نور د هغه د خدمت ضرورت نشته.[۲۰۹]

## میا ګل عبد الودود (**۱۸۸۳-۱۹۷۱**) او ریاست سوات

د عبدالجبار شاه له معزول کولو وروسته میا ګل عبدالودود ته په خپلو مقاصدو کې کامیابي حاصلول اسان شول، یعنې هغه دا غوښتل چې د سوات یو روحاني او سیاسي مشر جوړ شي. دغه وخت کې ده ته میدان خالي و او صرف د ده یو معارض و د دیر نواب، خو هغه هم په جندول کې په خپلو نورو مسلو کې نښتی و او دارنګ د **۱۹۱۷**م کال د ستمبر میاشتې په دویمه هفته کې میاګل عبدالودود ته د کبل په ګراونډ کې د بادشاهۍ پګړۍ پر سر شوه.[۲۱۰]

میاګل عبدالودود (عرف باچا صاحب) چې د سوات حکمران شو، نو سمدستي ورته په ۱۹۱۸م کې د دیر نواب پر سوات حمله وکړه. هغه د دیر د نواب د فوځ د مقابلې لپاره خپل کشر ورور شیرین شهزاده ولېږه، هغه ډېر په نره وجنګېده، خو اخر وفات شو. په ۱۹۱۹م کې د دیر نواب ته بادشاه صاحب سخت شکست ورکړ او د ادینزئ علاقه یې قبضه کړه، چې بیا وروسته فرنګیانو په ۱۹۲۲م کې د میاګل عبدالودود او د دیر نواب تر مینځ صلحه وکړه او دا علاقه یې د دیر نواب ته ورکړه. د دیر له خطرو چې میا ګل عبدالودود فارغ شو، نو اباسین کوهستان علاقې یې فتحه کړې او په ۱۹۲۲م کې یې بونېر هم قبضه کړ.[۲۱۱] W.R. Hay لیکلي، چې بونېر یې د ۱۹۲۳م کال په می کې قبضه کړی دی.[۲۱۲]

## میا ګل محمد عبد الحق جهانزېب ولیعهد منتخب کول

د میاګل محمد عبدالحق د ولیعهد منتخب کولو په باره کېW.R Hay لیکي چې د بونېر له فتح کولو فوراً بعد هغه د ۱۹۲۳م کال په مئي کې په سیدوشریف کې یو دربار راوبللو او خپل مشر ځوی میاګل جهانزېب یې خپل ولیعهد خوښ کړ. په دغه وخت کې هغه له برتانوي حکومت سره د خپلې وفادارۍ او له بالشویزم څخه د بېزارۍ اظهار هم وکړ او پولیټیکل ایجنټ ته یې ولیکل چې هغه د "فرمانرواء یوسفزي" لقب اختیار کړی[۲۱۳]او د ۱۹۳۳م په مئي کې برتانوي حکومت جهانزېب ولیعهد تسلیم کړ.[۲۱٤]

## د انګریزانو ریاست سوات تسلیمول

برتانوي حکومت په ۱۹۲٦م کې ریاست سوات تسلیم کړ.په دې باره کې W.R. Hay لیکي چې اخر کار دا تجویز وړاندې کړل شو، چې عبدالودود دې بادشاه تسلیم کړی شي او همدغسې وشوه او د هغه لپاره یې د کال لس زره روپۍ معاوضه هم مقرر کړه. دا معاوضه د هغې معاهدې په بدل کې وه په کومه کې چې له نورو خبرو نه علاوه دا خبره هم وه چې دی به د برتانوي حکومت وفادار وي او په اخره کې په دې خبره هم فیصله وشوه چې د ده لقب به بادشاه نه وي، یا به والي او یا به حکمران وي ځکه چې د بادشاه لقب صرف د برتانیې د حکمران لپاره خاص دی.[۲۱۵]جیمز ـ ډبلیو سپېن لیکي چې د ریاست په تسلیمولو کې یو شرط دا و چې والي به د قانون مفرورانو ته په خپل ریاست کې پنا نه ورکوي.[۲۱٦] میاګل عبد الودود یو وهبي قائد Charismatic leader تعریف ته دومره نزدې و،

ځومره چې کېدی شوه او په دې کې کامیاب شو چې په ۱۹۲٦م کې انګرېزانو د سوات والي ومنلو.[۲۱۷]

## میا ګل محمد عبدالحق جهانزېب د سوات والي کېدل

لکه څنګه چې مخکې ویل شوي چې میاګل عبدالودود د ۱۹۲۳م کال د مې پر ۲۱مه یو دربار منعقد کړ او میاګل جهانزېب یې ولیعهد مقرر کړ او د ۱۹۳۳م کال د مې پر ۱۵ مه انګرېز حکومت میاګل جهانزېب په سرکاري توګه ولیعهد ومنلو. څه ورځې وروسته باچا صیب له ولیعهد نه بد ظنه شو او په ۱۹۳۵م کې یې له هغه نه اختیارات واخستل او پینځه کاله بعد یې د صوبایي ګورنر په مفاهمتي کوښښ بیا بحال کړ. میاګل جهانزېب د دې کشیدګۍ وجه د وزیرانو سازش بیانوي. وزیران چې کله د خپلو مفاداتو په تحفظ کې ناکام شول، نو د۱۹۴۳م کال په اکتوبر کې له سوات نه ووتل. د ۱۹۴۹م کال د دسمبر پر ۱۲مه میاګل عبدالودود د خپل ځوی په حق کې له تاج و تخت نه لاس په سر شو او میاګل جهانزېب نوی والي شو.[۲۱۸]میاګل عبدالودودله حکومت څخه د دستبردارۍ دوه وجې ښیي، هغه وایي چې زما د علم حاصلولو شوق و او دویم ما غوښتل چې د سوات د خلکو اخلاقي اصلاح وکړم.[۲۱۹] میاګل جهانزېب وایي چې له ما سره د پلار محبت و، نو ځکه یې زه والي کړم او دا یې ویل چې ما ته یې حکومت په ۱۹۳۵م کې راکاوه، خو حالات ښه نه وو.[۲۲۰]

## ریاست سوات کې پښتو سرکاري ژبه

د پښتو په تاریخ کې سوات هغه ریاست و چرته چې پښتو ته سرکاري سرپرستي مېلاو شوه او پښتو سرکاري ژبه وګرځول شوه. په دې باره کې میاګل عبدالودود داسې وایي:

> "زه چې د سوات حکمران شوم نو بیا څه موده پس زه په دې نتېجه ورسېدم چې هرې علاقې او هر قام لپاره خپله ژبه خپلول ښه وي. خپلې ژبې او خپل تهذیب ته په سپک نظر کتل د پرېوتي غلام ذهن کار دی او له خپل قومي وقار او قومي غیرت سره دښمني کول دي، نو ما د خپل ریاست دفتري او عدالتي ژبه پښتو مقرر کړه، سرکاري فارمونه، اسټامونه، رجسټرونه، کتابونه دا هر څه مې پښتو کې چاپ کړل"[۲۲۱]

میاګل عبدالودود په۱۹۱۷م کې د سوات حکمران منتخب شوی و او پښتو د سرکاري او دفتري ژبې په حیثیت په ۱۹۳۷م کې په نظر راځي. په دې حواله چې کله د ریاست سوات سرکاري ریکارډ ولټول شو، نو رجسټر نمبر۱: بیع نامه جات، رهن نامه جات، نکاح نامه جات، اقرار نامه جات: از مورخه ۲۱جنوري ۱۹۳۰ تا ۲۹-۰۲-۱۹۳۲ د دې رجسټر ټولې انټریانې په فارسی کې دي.[۲۲۲] کتاب نمبر: ۳ بیعه نامه ، نکاح نامه تحصیل خوازه خېله از ۱۹۳۴-۰۵-۰۳ تا ۱۹۳٦-۰۴-۱۴په دې کتاب کې هم ټول اندراجات په فارسی کې شوي دي .[۲۲۳] رجسټر نمبر ۱۰۱: رجسټر اندراج فیصله جات تحصیل مټه از ۱-٦-۱۹۳۵ تا ۱-۵ -۱۹۴۴په دې رجسټر کې له ۰۵-۰٦-۱۹۳۷پورې ۹۹ فیصلې په فارسی کې لیک دي او سلم نمبر فیصله چې په ۲۱-۰٦-۱۹۳۷لیک ده دا او له دې نه تر ۲۷-۵-۱۹۴۴پورې ټولې فیصلې په پښتو کې لیک دي.[۲۲٤] خوازه خېله تحصیل رجسټر نمبر ۱: فیصله جات از ۰۸-۰٦-۱۹۳۵په دې رجسټر کې تر ۲۹- ۰۵- ۱۹۳۷پورې فارسي ده.له ۱٦- ۰٦- ۳۷ نه بعد فیصلې په پښتو کې لیکل شوې دي. په دې رجسټر کې وروستۍ فیصله په ۲۸- ۰۴- ۴۲ په پښتو کې لیکل شوې ده.[۲۲۵] رجسټر نمبر ۳ فیصله جات فتح پور از ۹- ۷- ۴۴- تا ٦- ۴- ۴٦ دا ټولې فیصلې په پښتو ژبه کې لیکل شوې دي.[۲۲٦] رجسټر نمبر ۹ کتاب اندراج رهن نامه از ۲۳- ۴- ۰٦ تا ۲۱- ۳-٦۲ په پښتو کې دي.[۲۲۷] کتاب اقرارنامه، نکاح نامه تحصیل خوازه خېله له ۲۹- ۳- ٦۲ تر ۱۲- ٦- ۷۴ دا په پښتو کې لیکل شوې دي.[۲۲۸] کتاب نمبر ۱۷ کتاب فیصله جات نائب مشیر بابوزي مورخه ۲۳- ٦- ٦۹ تر ۱۳- ٦ ۷۰ دا فېصلې هم پښتو کې لیکل شوې دي.[۲۲۹] رجسټر نمبر ۱۱ رهن نامه خوازه خېله ۲۷- ۵- ٦۹ تر ۲۰-۴- ۷۰ دې رجسټر کې هم پښتو لیک ده.[۲۳۰] رجسټر نمبر ۳۳ فیصله جات بابوزي محکمه قضا له ٦-۸-۷۰ څخه تر ۲۸-۲-۷۴ پورې دا هم په پښتو کې لیکل شوي دي.[۲۳۱] رهن نامه تحصیل خوازه خېله له ۱- ٦- ۷۱ څخه تر ۲۹- ۴- ۷۲ ص ۱٦۰۰۱ تر ۱٦۱۹۹ پورې په پښتو کې لیکل شوي دي.[۲۳۲] فېصله جات تحصیل بابوزي له ۱۳-٦- ۷۲ تر ۱۵-۸- ۷۲ پورې په پښتو کې لیک دي.[۲۳۳] رجسټر نمبر ۱: رجسټر بیع نامه فتح پور له ۲۸-۴-۷۳ څخه تر ۱-٦-۷۴ پورې. رجسټر نمبر ۱۹: رجسټر بیع نامه تحصیل خوازه خېله له ۲۳- ۵- ۷۴ څخه تر ۲۵- ٦- ۷۴ رجسټرتمسکات له ۲۳- ۵- ۷۴ څخه تر ۱۱- ٦- ۷۴، رجسټر رهن نامه تحصیل خوازه خېله له ۲۳- ۵- ۷۴ څخه تر ۱۲- ٦- ۷۴ پورې دا ټول په پښتو کې لیکل شوي دي.[۲۳٤] رجسټر نمبر ۱: اقرار نامه فتح

پور له ٦-٥-٧٠ څخه تر ۴-٦-٧۴ له ٣٨٨٠١ مخ څخه تر ٣٨٩٩٩ پورې په دې کې تر ٣- ٦-٧۴پورې پښتو ده او په ٣٨٩٩٩نمبر صفحه، یعنې اخري مخ تمسک نمبر ٨٧ تاریخ ۴-٦-٧۴ په اردو کې دی.[٢٣٥] بهي نمبر ١ جلد نمبر ١ خوازه خېله رجسټر خوازه خېله ضلع سوات له ٣١- ٥- ٧٥ څخه تر ٢٧- ٨ -٧٧ پورې دا رجسټر ټول په اردو کې لیکل شوی دی.[٢٣٦]

په دې رجسټرو کې په یو رجسټر کې په وړمبي ځل ١٦/ ٠٦/ ١٩٣٧ پښتو په نظر راځي دغه رنګ په بل رجسټر کې په ١٩٣٧/٠٦/٢١ کې په وړمبي ځل پښتو لیکل شوې او له دې مخکې ټوله فارسي ده، نو پته لګي چې پښتو د ١٩٣٧م کال له جون څخه په ریاست کې د سرکاري ژبې په حیث شروع شوې وه. دغه رنګ کله چې د پښتو د سرکاري ژبې حیثیت ختمېږي او اردو شروع کېږي، نو مونږ په یو رجسټر کې په ٠۴- ٠٦ - ١٩٧۴ کې اردو وینو، دغه رنګ بل رجسټر چې د ٣١- ٠٥- ١٩٧٥ څخه تر ٢٧- ٠٨- ١٩٧٧ پورېدی دا ټول په اردو کې دی، نو پته لګي چې د ١٩٧۴ تر جون پورې پښتو سرکاري ژبه وه او بیا اردو شروع شوې ده.

په سوات کې پښتو ته د سرکاري ژبې حیثیت په ورکولو کې د چا تحریک کېدې شي، په دې حواله دا ویل کېږي، چې دا مشوره باچا صیب ته د سوات د دېولۍ کلي ذولفقار ملک ورکړې وه. ذوالفقار ملک د باچا صیب نزدې ملګری او خفیه خبر رسان و، هغه باچا صیب ته دا خبر ورکړ، چې په افغانستان کې پښتو سرکاري ژبه ګرځول شوې ده.[٢٣٧]

په ریاست سوات کې پښتو ته د سرکاري او دفتري ژبې مقام ورکولو تجویز د سوات والي ته په ١٩٢٦م کې مولانا عبدالقادر هم ورکړی و. مولانا عبدالقادر لیکي چې که میاګل عبدالودود د تعلیم ښه خدمت کول غواړي، نو پښتو به خپله قانوني او تعلیمي ژبه مقرر کړي او د خپلو مدرسو نصاب به د پښتو په ژبه کې منظور کړي. دی بیا وړاندې لیکي چې که میاګل عبدالودود داسې وکړي نو امید دی چې چرته په اخبار یا رساله کې د هز مجسټي امیر امان الله خان غازي محض په دې تعریف کېږي او نوم یې اخستی شي، نو هلته به د دوی نوم ورسره ځلېږي.( سرحد اکتوبر ١٩٢٦م) [٢٣٨] په دې حواله عبدالرحمن شباب "د فکر یون" په دیباچه کې لیکي چې دې خبرې ته خو بنده حیران پاتې شي چې دومره کم عمرۍ کې او د کالج په مست او نا تجربه کار ماحول کې یو طالب علم دومره رسا او په صدو مخکې نظر لرونکی ذهن او نظر لري چې د سوات تعلیمي سرګرمۍ ستایي او د سوات والي صاحب ته دا تجویز وړاندې کوي چې سوات به هله ترقي وکړې او والي صاحب

به په اصلي معنو کې د خپل ملک ښې ورځې ولیدی شي چې د ملک تعلیمي او دفتري ژبه خپله مورنۍ ژبه پښتو وګرځوي. بیا وړاندې عبدالرحمان شباب لیکي چې په سوات کې تعلیمي او دفتري ژبه پښتو ګرځېدل هم د دغه نوخېزه هلک د فکر نتېجه ده.[۲۳۹]

او کله چې په سوات کې پښتو ته سرکاري سر پرستي حاصل شوه او دلته د پښتو ژبې او ادب د ترقۍ انګازې جوړې شوې، نو مولانا عبدالقادر د سوات والي ته په یو خط کې لیکلي، چې دا امتیاز او افتخار الله تعالی د سوات د ریاست د چلوونکي خاندان په برخه کې لیکلی و، چې پښتو په حیثیت د سرکاري ژبې هم په سوات کې ده... [۲۴۰] په افغانستان کې پښتو په لومړي ځل په ۱۹۳٦م کې سرکاري ژبه وګرځولې شوه.[۲۴۱] پښتو ته د سرکاري ژبې حیثیت ورکولو امتیاز د ریاست سوات دی ځکه چې دلته یواځې پښتو دفتري ژبه وه او په افغانستان کې ورسره دري ژبه هم شامله وه.[۲۴۲]پښتو چې کله په سوات کې سرکاري ژبه شوه، نو په اردو سکرپټ کې به لیکل کېده او ساده او د اسانې ژبې د استعمالولو حکم باچا کړی و، لکه د باچا صیب د سوانح په انګرېزۍ ترجمه کې چې لیکل شوي دي:

> On coming into authority, I declared Pashto to be the official language of the State and adopted the Urdu script as the style of writing. Special forms and registers were prepared in Pashto for use in offices and courts. Both officials and the public were directed to employ simple, every day language in all their writings, and express themselves briefly and to the point, especially avoiding lengthy salutations and adulatory phrases. [۲۴۳]

ترجمه: چې کله زه د اختیار خاوند شوم نو ما پښتو د سوات سرکاري ژبه وګرځوله او د لیکدود لپاره مې د اردو رسم الخط اختیار کړ. په دفترونو او په عدالتونو کې د استعمال لپاره خصوصي فارمونه او رجسټرې مې په پښتو کې تیارې کړې، دواړو عوامو او خواصو ته هدایات ورکړ شو، چې په خپلو لیکونو کې دې ساده د روزمرې مطابق ژبه استعمالوي، خپله مدعا دې په لنډو ټکو کې بیانوي او په خصوصي توګه دې ځان له اوږدو القابو او ادابو څخه وساتي.

په خط یا درخواست کې د مختصر القاب او اداب لیکلو په باره کې میاګل جهانزېب په ۱۹٦۰/۱۰/۴م کې یو حکم جاري کړی و "چې هر څوک په خط یا په درخواست کې سرنامه لیکي نو هغه به هیڅا ته (قبله و کعبه، قبله دو عالم) الفاظ نه لیکي، خواه که هغه پلار ته لیکي یا بل لوی افسر ته، د هر مسلمان لپاره قبله او کعبه شته، هغه کافي دي، صرف جناب پوره دی، لکه (جناب وزیر صاحب) یا (جناب مشیر صاحب). [۲٤٤] د سوات په رواجنامه کې هم دا حکم لیکل شوی دی. [۲٤٥] دغه رنګ په یو بل حکم کې یې لیکلي، چې هر سرکاري نوکر به اخبار یا رسالي ته د خوشامدانه تعریف، توصیف، مضمون نه ورکوي، البته شاعر خپل نظم یا شعرونه اخبار ته ورکولی شي. [۲٤٦] دا حکم په رواجنامه سوات کې هم چاپ دی.[۲٤۷] د پښتو د ځینو لفظونو د املا په باره کې یې دا حکم کړی دی:

لاندې الفاظ چې څوک لیکي، نو صحیح به لیکي،غلط به نه لیکي:

| | |
|---|---|
| صحیح | غلط |
| صاحب | صېب |
| معصوم | ماشوم [۲٤۸] |

دا پاسني حکمونه د دې کتاب په ضمیمو کې هم موجود دي.

پوهاند صدیق الله رشتین لیکلي، چې هغه کله سوات ته تلی و، نو والي ورته ووې چې " زمونږ د ریاست د کاروبار ژبه پښتو ده، خو پخوا فارسي وه. دلته مونږ د پښتو ځینې کتابونه هم چاپ کړي دي لکه د سوات د ریاست تاریخ، فتاویٰ ودودیه، د انوار سهیلي او د فرشتې د تاریخ پښتو ترجمې. هغه وړاندې لیکلي، چې ماته وویل شول چې په سوات کې د سوات تاریخ او فتاویٰ ودودیه اول په اردو لیکلي وو، خو د خان عبدالغفار خان په وینا دغه کتابونه په پښتو نشر شول. وایي چې د سوات تاریخ اول تاج محمد زېب سر په اردو برابر کړی و، سید عبدالغفور قاسمي په پښتو واړوه. [۲٤۹] نصرالله خان نصر د ریاست سوات د حکمرانانو د ادب نوازۍ او د پښتو ژبې د خدمت په باره کې لیکي، لکه څنګه چې په برصغیر هند کې د دکن والیانو د اردو د ادیبانو او شاعرانو حوصله افزایي کوله او اردو ژبه یې په دغه حکمت عملۍ سره صرف پنځه سوه کالو کې د ترقۍ معراج ته رسولې وه، دغه رنګ والي صاحب هم د هغو په نقش قدم قدم ایښی دی. بیا وړاندې لیکي چې د دکن د والیانو توجه صرف د اردو ژبې طرف ته وه او د سوات والي له اردو ژبې سره سره پښتو ژبې ته هم ترویج ورکوي. د والي په دغه اقدام نه یواځې په ریاست کې ښه ښه شاعران او

ادیبان د پښتو د ادب په اسمان لکه د ستورو وځلېدل، بلکې له سوات بهر هم ځینې شاعران او ادیبان د گمنامۍ له ورېځو څخه لکه لمر څرگند شول. د سوات والي به د خپلې سالگرې په ورځ یعنې د جون پر ۵ مه نېټه به هر کال چراغان او خوشحالۍ کولې، په دغه تقریب کې د صحافیانو، شاعرانو او ادیبانو ډېر خاطر تواضع په دې غرض کېده، چې نور خلک ترې عبرت واخلي او د شاعر او ادیب د قدر او منزلت مقام وپېژني. [۲۵۰]دغه رنگ د دسمبر پر ۱۲ مه نېټه به هم د سوات والي مشاعرې کولې، دغه د هغه د تاج پوشۍ ورځ وه او په دغو پروگرامونو کې به د ټولې پښتو نخوا شاعرانو برخه اخستله[۲۵۱] او والي سوات به د لیکوالانو حوصله افزایي کوله[۲۵۲] ځکه چې هغه یو ادب دوست انسان و.[۲۵۳]د سوات باچا نه صرف پښتو سرکاري ژبه گرځولې وه، بلکې د پښتو کتابونه یې هم ډېر په ښکلي ډول چاپول او خلکو ته به یې مفت ورکول. په دې باره کې میاگل عبدالودود لیکلي، چې په هغه زمانه کې د فیرنگي پاچاهي وه، نو د پښتو خوارې تپوس چا کوه. هغه وړاندې دا هم لیکلي، چې له پښتو څخه د تعلیم یافته پښتنو د بېزارۍ وجه هم دا ده چې یو خو پښتو له سرکاري سر پرستۍ محرومه ده، بله دا چې د پښتو کتابونه او لټریچر په داسې بد رنگې طریقې سره چاپېږي چې هېڅ زړه راښکون نه لري. په هغې زمانې کې به اکثر هندوانو او سکهانو دوکاندارانو د تجارت لپاره په خراب او کمزوري کاغذ د پښتو کتابونه چاپول. میاگل عبدالودود وایي دا ضروري وي چې په پښتو کې یو ځو ښکلي او معیاري کتابونه چاپ شي او بیا خلکو ته مفت ورکړل شي، چې له پښتو سره د خلکو دلچسپي پیدا شي او ذ هني فایده هم ترې حاصله شي. [۲۵۴]

## د ریاست ادغام

د هند له وېش مخکې په براعظم گوټي کې درې قسمه علاقې شاملې وې (i) برتانوي هند (ii) قبایلي علاقې (iii) شاهي ریاستونه. [۲۵۵] کله چې د ۱۹۴۷م کال د اکست پر ۱۴ مه نېټه پاکستان جوړ شو، نو د هغه وخت د سوات والي میاگل عبدالودود د پاکستان له حکومت سره په یوه معاهده دستخط وکړ او د خارجه پالیسۍ دفاع او د مواصلاتو په محکمو کې یې اختیارات پاکستان ته ورکړل،[۲۵٦] له دې وروسته د پاکستان وفاقي حکومت د ریاستونو په حکمرانانو دباو راوست، چې مرکزي حکومت ته نور اختیارات ورکړي. په دغه تناظر کې د سوات والي میاگل جهان زېب په ۱۹۵۴م کې په ضمني ضابطه الحاق دستخط وکړ او دغه رنگې د پاکستان قانون سازې اسمبلۍ ته نور اختیارات

حاصل شول.[۲۵۷] د ۱۹٦۲م کال د آئین د ۲۲۳ نمبر دفعه په ۳ کلاز کې يې ليکلي دي:

The President may, at any time, by order, direct that the whole or any part of a Trible Area shall cease to be a Tribal Area and any such order may contain such incidental and consequential provisions as may appear to the president to be necessary and proper. Provided that before making any order under clause, the president shall ascertain in such manner as he considers approiate, the views of the people of the area concerned, as represented in Jarga. [۲۵۸]

د ۱۹٦۲م په دې آئين کې له ۲۴۲ دفعه لاندې د امب، چترال، دير او سوات رياستونه په قبايلي علاقو کې شامل کړی شوي دي. چيف مارشل لاء ايډمنسټريټر يحيٰي خان د ۱۹٦۲م د آئين د ۲۳۳ دفعه کلاز نمبر ۳ لاندې صدارتي اختيارات استعمال کړل او د ۱۹٦۹م کال د جولای پر ۲۸ مه نېټه يې په رياست سوات کې د انتظامي بدلونونو اعلان وکړ، چې باقاعده نوټيفکيشن يې د ۱۹٦۹ م د اگست پر ۱۵ مه نېټه وشو.[۲۵۹]

د ادغام د دې ريگوليشن د سيکشن B مطابق د ملاکنډ ډويژن د وړمبي کمشنر تقرري د ۱۹٦۹م د اگست پر ۱٦مه نېټه وشوه، [۲٦۰] د ده نوم سيد منيرحسين و. [۲٦۱] د مغربي پاکستان گورنر د ملاکنډ ډويژن کمشنر ته د والي اختيارات ورکړل.[۲٦۲] د ۱۹٦۹م کال د اگست پر ۱۸مه نېټه محمد همايون خان د سوات وړومبی ډپټي کمشنر مقرر شو[۲٦۳] په دغه وخت کې چې کومې علاقې په سوات ضلع کې شاملې وې په هغې کې موجوده بونېر، شانگله او له آباسين راپورې د کوهستان حصې هم شاملې وې. په ۱۹۷٦م کې د اباسين نبي طرف ته د کوهستان حصې له سوات څخه جدا کړی شوې او د کوهستان په نامه ځانته يوه ضلع جوړه شوه.[۲٦٤] دغه رنگ په ۱۹۹۱م کې د بونېر علاقې هم جدا کړل شوې او ځانله بونېر ضلع جوړه کړی شوه [۲٦۵] او په ۱۹۹۵م کې د شانگلې علاقې جدا کړل شوې او د شانگله په نوم يوه ضلع جوړه کړل شوه.[۲٦٦]

## د رياست سوات د ادغام وجوهات

په پاکستان کې د رياست سوات د مدغم کولو لويې لويې وجې دا دي:

مطلق العنانيت، د ذمه وار نماينده حکومت نشتوالی، د معاشرې د سرمايه دارو

خلکو ناراضیتوب، د اصلاحاتو مطالبه، د جماعت اسلامي کردار، سماجي او معاشرتي عوامل، د سیاستوالو کردار، د پاکستان په سیاست کې د بدلون کردار او ځیني نور عوامل.

## د ادغام اثرات

د ادغام څه فایدې او څه نقصانونه مخې ته راغلل، لکه له ادغام سره چې څنګه د امریت خاتمه وشوه، نو خلکو ته د اظهار رای ازادي حاصل شوه، له دې مخکې د اظهار او سیاسي سرګرمیو ازادي نه وه. له ادغام وروسته ملازمتونه د اهلیت پر بنیاد مېلاویږي او د ریاست په وخت کې دا ټولې خبرې د حکمران په خوښه وې. کله چې د ۱۹٦۹م کال د جولای پر ۲۸ مه نېټه د ادغام اعلان وشو او والي خپل کار بند کړ، خو نوره انتظامیه نه وه او باقاعده نوټیفیکشن د ۱۹٦۹م کال د اګست پر ۱۵ مه نېټه وشو، نو په دې مینځ کې د انتشار او بې یقینۍ صورتحال پیدا و. د ریاستي ملازمینو د نوکرو په مسئله کې ډېر مشکلات راپېښ شول، نوې انتظامیه د خلکو د مسائلو په حل کولو کې ناکام راغله ځکه چې د هغوی اختیارات هم محدود وو او وسائل هم نه وو. غیر سواتي خلک په سوات کې اباد شول، چې دې هم ډېرې مسئلې جوړې شوې. د زمکو او د جایدادونو مسئلې او تنازعې ډېرې راپیدا شوې چې د دې د حل کولو لپاره د شمال مغربي سرحدي صوبې حکومت د ۱۹۷۰م په اکتوبر کې یو کمېشن مقرر کړ، چې د دې جګړو حالت معلوم کړي[۲٦۷] د ځنګلونو بې دریغه پرېکول شروع شول، د انتظامیې لپاره هم مشکلات پیدا شول، د تعلیم معیار راوغورځېد، د میلونو او کارخانو له بندېدو سره معاشي حالت خراب شو، په عدالتي فیصلو کې مشکلات رامخې ته شول. د ریاست سوات له ادغام سره ځینې حالات داسې هم رامخې ته شول، چې د هغې ډېرې خرابې نتېجې بیا وروسته د سوات خلکو د ترهګرۍ په شکل کې ولیدلې.

# حوالې

[۱] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱٥-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, Second Impression ۲۰۰۹, p. ۲۱.

[۲] - حبيبي، عبدالحی. تاريخ افغانستان بعد از اسلام، تهران (ايران)، دنياي کتاب، ۱۳٦۷ل، م (۱۹۸۸)، ۲۰ مخ.

[۳] [Hiuen Tsiang], Chinese Accounts of India translated from the Chinese of Hiuen Tsiang, translated and annotated by Samuel Beal, Vol. ۲, new edn.(Calcutta: Susil Gupta (India) Limited, ۱۹٥۸), p.۱٦٦.

[۴] حيدر، مرزا نصيرالدين(مترجم). بابر نامه، تزک بابري، مصنف محمد ظهيرالدين بابر، لاهور،الفيصل ناشران و تاجران کتب، ۲۰۰٦، ۲۷۳ مخ.

[٥] Griffth, Ralph T.H., (Translater), The Hymns of the Regveda, ۲nd Edn., ۱۸۹٦, o. ۳۱٤. Also available on www.sacred-texts.com retrieved on ۰۹-۰٥-۲۰۱٤.

[٦] ارشاد، اورنگزېب، (ژباړن). افغانستان د تاريخ په رڼا کې، مصنف احمد علي کهزاد، پېښور، دانش خپرندويه ټولنه، ۲۰۰۱، ۳۱ مخ.

[۷] حبيبي، پوهاند عبدلحی. د افغانستان لنډ تاريخ (ژباړن محمد داود وفا)، پېښور، دانش کتابتون، ۱۹۹۹، ۱۱مخ.

[۸] Griffth, Ralph T.H., (Translater), The Hymns of the Regveda, ۲nd Edn., ۱۸۹٦, o. ۳۱٤. Also available on www.sacred-texts.com retrieved on ۰۹-۰٥-۲۰۱٤.

[۹] حضروي، حکيم حاجي محمد يوسف. سيرصوات، (حصه اول)، کلکته، منيجر آکثيرات هند دواخانه، ۱۹۴۴، سر ورق.

[۱۰] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸٦۲)

[۱۱] دانشور، محمود. کافرستان اور چترال، دير، سوات کی سياحت، لاهورالفيصل ناشران و تاجران کتب، ۲۰۰٦/ [۱۹٥۳]، ۱۹۰ مخ.

[۱۲] خان، روشن خان. يوسفزئ قوم کی سرگزشت، کراچی، روشن خان اينڈ کمپنی، ۱۹۸٦، ۳۳۸ مخ.

[۱۳] قاسمي، سيد عبد الغفور. تاريخ رياست سوات، پشاور، حميديه پريس، [۱۹۳۹]

[۱۴] خان، محمد آصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات ميا گل گل شهزاده عبدالودود خان باد شاه صاحب، [۱۹٥۸] ، ۲۳مخ.

[۱٥] طائر، محمد نواز. درديال ناليدلے سوات، پېښور، منظور عام کتب خانه، ۱۹٦٥، ٦مخ.

[۱٦] خان، روشن خان. يوسفزئ قوم کی سرگزشت، کراچی، روشن خان اينڈ کمپنی، ۱۹۸٦، ۳۳۹ مخ.

[۱۷] Malakand ۱۹٥۸-٦۸: A Decade of Progress. Foreword by Muhammad Humayun Khan, Political Agent malakand, n.p., n.d., p.٤

[۱۸] Ibid., p.٤

[۱۹] خان، محمد آصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات ميا گل گل شهزاده عبدالودود خان باد شاه صاحب، [۱۹٥۸] ، ۳۷مخ.

[۲۰] افغاني، عبدالحليم اثر. سوات د تاريخ په رڼا کښې، باجوړ، دارالاشاعت، [۱۹٦۱] ، ۱۸مخ.

[۲۱] همدغه اثر، ۹ مخ.

[۲۲] حکيمزے، وکيل. د بر سوات تاريخ نسلي سياسي او سماجي جوړښت، لاهور، عکاظ پرنټرز، ۲۰۰۷ ، ۱۹ مخ.

[۲۳] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱٥-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, Second Impression ۲۰۰۹, p. ۱٤.

ترجمه: په دېرشم تاريخ د يوسفزو سردار ملک شاه منصور له څو نورو سردارانو سره په خدمت کې حاضر شو. دوی ته‌ولو ته شاهي لباس ورکړل شو او په ډېر قدر او عزت سره رخصت کړل شول او هغوی په دې خبره پوهه کړل شول چې د الوهيه بالا هېڅ يو تن ته به د سوات په معاملاتو کې د دخل اجازت نه وي.

کوم خلک چې زړو سواتيانو ته پښتانه نه وايي، نو هغوی د ثبوت په طور د تواريخ حافظ رحمت خاني دا بيان وړاندې کوي:

در آن وقت سلاطين سوات وغيره مردم جهانگير به زبان گبری
می گفتند ورعا يائی سوات زبان يا دری می گفتند و درآن وقت اہل
سوات به ہمیں دو زبان تکلم می کردند."[۵۷]

ترجمه: په هغه وخت کې د سوات سلطانانو او نورو جهانګيري خلکو په ګبري ژبه کې خبرې کولې او عامو خلکو به په دري ژبه خبرې کولې او په هغه وخت کې د سوات خلک په دوه ژبو پوهېدل.

خو کله چې يوسفزو پر سوات حمله وکړه او کريمداد ابن عثمان الياس زي ابازي ميرهندا د سلطان په صف کې وليد، نو په فارسۍ يې ورته نعره وکړه، چې "ای مير هندا! اگر مرد هستي وخيال جنگ داري بيا که من حاضرم" او تواريخ حافظ رحمت خاني مخکې ليکي۔ "ودرآن وقت مردم يوسف زي از کابل تازه امد بودند۔ فارسي خوب مي گفتند۔"[۵۸]

نو له دې نه پته لګي چې د دغو زړو سواتيانو دري يا فارسي ژبه ويل څه نا اشنا خبره نه وه، ځکه چې دوی له افغانستان څخه راغلي وو چرته چې له پښتو سره سره دري ژبه هم ويل کېده. لکه څنګه چې د تواريخ حافظ رحمت خاني له پاسني بيان څخه ښکاره ده، چې يوسفزي چې اول اول له کابل نه راغلي وو، نو فارسي به يې ويله. مېجر راورټي زړو سواتيانو (ګبري، متراوي، ممیالي) ته تاجک وايي او د دوي د ژبو په باره کې داسې ليکي:

These Tajiks spoke two languages or dialects, the Gibari
and the Dari, the former being spoken by the tribe of that name
and the latter by the other two tribes of Mutrawi and Mumiali.[۵۹]

ترجمه: دې تاجکو به دوه ژبې ويلې، ګبري او دري. په دې کې به ګبري ژبه ګبريانو ويله او دري ژبه به متراويو او ممياليو ويله، لکه څنګه چې مخکې ذکر شو چې زړو سواتيانو به يا دري (دري) او ګبري ژبې ويلې. د ګبري ژبې په باره کې محمد اختر داسې ليکي:

گبری لہجہ گبر کو بھی کہتی ہیں اور یہ او ستا اور ژند کی زبان ہی۔ ژند پہلوی میں لکھی گئی تھی چونکہ سواتی ذوالقرنین کی اولاد سی ہونی کی ساتھ ساتھ زردشت کی مذہب کی بھی قائل تھی اس لئی انہوں نی اپنی مدنیت کی ساتھ ساتھ اپنی زبان کو بھی برقرار رکھا ۔جو قدیم بولیاں (Dialects) بدخشان، واخان، کنٹر وغیرہ میں بولی جاتی ہیں جن کو بیلبو (Bellew) نی پہلوی زبان سی مشتق قرار دیا ہی دراصل یہی گبری لہجہ ہی جس کی ترقی یافتہ شکل دری ہی۔[٦٠]

ترجمه: گبري لهجه گبر ته هم وایي او دا د اوستا او ژند ژبه ده. ژند په پهلوي کې هم لیکل شوې وه، چونکې سواتیان د ذوالقرنېن له اولاد سره سره د زرتشت د اولاد کېدو هم قاېل وو، نو دغه وجه ده چې دوی له خپل ټولنیز ژوند سره سره خپله ژبه هم باقي وساتله. کومې زړې ژبې یا لهجې چې په بدخشان، واخان، کونړ او نورو سیمو کې ویل کېدې، کومې چې د بیلیو د خیال مطابق له پهلوي ژبې څخه راوتي په اصل کې دا گبري لهجه ده چې د هغې ترقي یافته شکل دري دی.

## نتیجه

د دې بحث نچوړ دا دی چې د محمود غزنوي له لښکر سره چې کومې قبیلې راغلې وې د هغوی تعلق که له هر نسل سره و، خو کله چې دوی پښتو ژبه ویله او ټول رواجونه یې د پښتنو په شان دي او له پښتنو سره ډېر گډراگډ دي، نو ځکه په پښتنو حساب دي[٦١] او له دې نه دا پته ولگېده چې د یوولسمې عیسوي صدۍ په شروع کې سوات ته پښتانه راغلي او دلته د پښتو ژبې شروع شوې ده.

## د پښتو ژبې ترقي

د سوات د پښتو ادب د وړومبي دور تاریخي شالید ته که مونږ وگورو، نو صرف سوات د مغلو له مستقیمې قبضې نه ازاد و او د براعظم گوټي او نورې پښتونخوا په زیاتو برخو مغل قابض وو او د هغوی ټوله توجه فارسۍ طرف ته وه او دغه وجه وه چې د فارسۍ اثرات په سوات هم ډېر زور شوي وو، خو بیا هم د دې سیمې لیکوالو له پښتو ژبې سره مینه لرلې او له پښتو ژبې سره د هغوی د مینې دا اظهار د هغوی په کتابونو کې په نظر راځي او لوی

ثبوت يې دا دی چې هغوی مونږ ته د پښتو دا قيمتي ادبي سرمايه پرېښې ده. له دې نه پته لګي چې د هغه وخت ليکوالانو د پښتو ژبې ضرورت او اهميت محسوس کړی و او د دې ژبې د ترقۍ لپاره يې شعوري کوښښونه کول. د دې ليکوالانو له کتابونو نه دا ښکاره ده، چې هغوی پښتو ژبې ته څومره ارزښت ورکړی دی. په دې اړه به اول مونږ له مخزن نه هغه حوالې واخلو په کومو کې چې د پښتو ژبې د ضرورت، اهميت او له دې ژبې سره د مينې ذکر شوی دی.

١. په خوږوه افغاني ژبه هم د نظم په جوړونه.[٦٢]
٢. امالي کتاب يې روغ کړ- ته په دا بيان باور کړه چې په لفظ د افغاني دی.[٦٣]
٣. اوس د زړه په غوږو واوره دا بيان چې افغانې دی- عربي يې په پښتو کړ.[٦٤]
٤. دا کتاب مې عربي و- رحم اوکړه ای څښتنه په هغه کس چې يې پښتو کړ.[٦٥]
٥. دروېزه چې اجتهاد په علم اوکړه ـ عربي يې پښتنو لره پښتو کړه ـ نور غم غرض يې نه وه مګر دا چې په نېکانو کې ياديږي.[٦٦]
٦. دا کتاب مې عربي وه ـ د نبي صفت کړی محمد بوصيري دی ـ فقير څني پښتو کړ.[٦٧]
٧. دروېزه چې عقائد په پښتو ووې شفقت يې وه په لوئی په هلک په ازاد په بنده و پښتنو.[٦٨]
٨. عقيده د امام محمد شامي په عربۍ وه ـ دروېزه بنده پښتو کړه ـ بل هر مومن دې ايزده کړي چې ايمان يې پرې قوي شي له کماله.[٦٩]
٩. دروېزه بيان پښتو کړه له کتابه له حديثه بل هر چې مومنان دي په سينه او په ټټريې کيږدينه.[٧٠]
١٠. دروېزه کتاب پښتو کړ- بل واړه افغانان دې يې هم ياد کا چې فرقې د ګمراهانو دوي زده کا هم ايمان له دوي وژغوري.[٧١]
١١. دا بيان که افغانې دی په دغه رنګ وئېلی عبدالله يافعي دی ـ په رساله مکيه کې يې وغواړه که باور دې په پښتو ژبه نه کيږي.[٧٢]
١٢. دروېزه بيان پښتو کړ، په فارس په عرب کې عالمان دي خپل قام وته په خپله ژبه وائي- ولې کم څوک پيدا شوي له افغانانو.[٧٣]
١٣. دروېزه چې عربي پښتو کوينه دا يې واړه شفقت پر افغانان دی ـ هر چې دا بيان په ياد کا افغانانو لره دا بيان تمام دی.[٧٤]
١٤. دا بيان يې دی په شرح مختصر کې په فارسۍ ژبه وئيلی ـ دي فقير څنې پښتو کړه ـ

بله غاړه شي د دې عام افغانانو ـ خدائی په هره ژبه بوله عربي وي که فارسي وي که هندي که افغاني ـ په هغه ژبه يې بوله چې دې زده وي دا اقوال د امامانو۔ اوس اکثر عالم دا وايي چې قرآن په عربي دی په ناحقه فرض واجب څوک پښتو کوينه، دوي په دا وينا لغزيږي نه پوهيږي ـ دغه خوي د جاهلانو ـ درويزه چې په پښتو ژبه بيان کا غم يې د بوهله و افغانان دی ـ هر چې فرض او واجب زده کا دوي به نه شي د منکرو کافرانو ـ دا فقير څه له پيرانو منکر نه دی ـ ده دی لاس ورلگولی که ازاد وي که بنده وي چې سني وي پر جمله مسلمانانو.[٧٥]

۱۵. درويزه چې څه بيان کا واړه دين د پاک نبي بيانوينه ـ پښتانه په بله ژبه نه پوهيږي ـ ځکه دی يې په پښتو ژبه وروښيينه ـ واړه دين د پاک نبي بيانومه ـ و پوهيږئ مومنانو، د دې پاک نبي له دينه په دا خپله ژبه پوهه شئ افغانانو.[٧٦]

د اخون درويزه له مخزن نه چې کومې بره ذکر شوې حوالې اخستل شوي، د دې بار بار ذکر نه د پښتو ژبې په هغه وخت کې د اهميت او ضرورت او ترقۍ اندازه لگېدلی شي. هغه پښتو ژبه کله کله په افغاني نوم هم ياده کړې ده. پښتانه په عربي يا فارسي نه پوهېدل ځکه هغوی ته له عربي او فارسي نه د عقايدو او د ايمانياتو بنيادي خبرې پښتو ته ترجمه کول ضروري وو. د اخون درويزه له پښتنو سره ډېره مينه وه چې هغه د فارسي او عربي کتابونه د دوی لپاره ترجمه کړل او د دې مينې برملا اظهار يې کړی دی. يوه خبره دا هم په ډاگه شوه چې په هغه وخت کې په پښتو کې په کتابونه د خلکو اعتبار کم و، ځکه خو اخون درويزه وايي چې که په پښتو دې اعتبار نه وي، نو په بله ژبه کې يې وگوره او اصل ماخذ طرف ته رجوع وکړه. له دې خبرې نه د اخون درويزه د ترجمې د فن او مهارت اندازه هم لگي ځکه خو هغه دومره په اعتماد سره وايي چې که څه شک دې وي، نو اصل ماخذ ته رجوع کولی شې.

اخون درويزه ته دا احساس و لکه څنگ چې د فارسي او عربي عالمان خپلو خلکو ته په خپله ژبه تعليم ورکوي دغه شان مونږ ته هم پښتنو ته په پښتو کې تعليم ورکول پکار دي.

اخون کريمداد[٧] هم په خپله الف نامه کې ځای پر ځای د پښتو ژبې ذکر کړی دی:

---

[٧] ميا کريم داد د اخون درويزه مشر زوی دی. ميا کريم داد د تاريخ او ادب په کتابونو کې په مختلفو نومونو ياد شوی، لکه اخون کريم داد، کريم داد شهيد، عبدالکريم او شهيد بابا. (رحيم، رحيم شاه، د کانجو ميا کريم داد، مشموله، مياشتيزه پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، مخ: ۲۲) ـ خلاصة البحر نومې کتاب کې ورته "محقق افغان" ويلي شوي دي ـ (حبيبي، عبدالحی، پښتانهٔ شعراء (اوله حصه)، پېښور،

د پـــــــيرۍ شـــــرطــــــــــــــونه ډېـــــــر دي
پــــــه دا افغــــــاني گفتــــــار كــــــې نــــــه ځــــــائيږي[77]

كـــــــريمداده تـــــه څـــــه بـــــې بــــــاطنو نــــــه يــــــې
چــــــې پــــــه پښـــــتو ژبــــــه دې پوهــــــه خلقــــــه كــــــا
هــــر څـــــوک فاتحـــه پســــې و كــــانې د هغــــې ســــاعت دپــــاره
كــــه پــــه ورســــتې ســــاه وم قبولــــه غــــــــر غــــــــړه كــــا[78]

او عبدالحليم هم د پښتو ژبې ذكر كوي:

واورئ يــــــــارانو دا بيــــــــان يــــــــې پــــــــه فارســــــــې وه
پــــــه پښــــــتو ژبــــــه د حلــــــيم د خلــــــې گفتــــــار شي[79]

په فوائد شريعت كې اخون قاسم پاپين خېل د پيربابا، اخون درويزه بابا او اخون كريم داد په باره كې داسې ليكي:"څه كامل يې بركت شه ـ عالم زيات اهل سنت شه ـ په پښتو يې دين بيان كړه ـ گوښې گوښې يې عيان كړه ـ د پښتون عذر يې ورک كۀ."[80]

دوست محمد خان دوستي هم له فارسۍ نه د پښتو د ترجمې په باره كې داسې ليكي:

دا رنــــــگ نقــــــل پــــــه فارســــــې و اى صــــــاحبه
دوســــــت محمــــــد تــــــرې رابهــــــر كــــــړه عجائبــــــه
كــــــه څــــــوک وكانــــــدي پــــــه دا رنگــــــه پوښــــــتنه
څــــــه غــــــرض و چــــــې بهــــــردې كــــــړه ښــــــادمنه
زه دوســــــــــتي وركــــــــــوم دا ځــــــــــواب اى دلــــــــــه
چــــــې خــــــبر تــــــرې افغانــــــان شي د حاصــــــله[81]

بل ځاى كې داسې وايي :

اوس شروع پــــــه حــــــديثونو ښــــــه كــــــره هــــــم
پــــــه پښــــــتو ژبــــــه كــــــــــوم معنــــــو سره هــــــم

يونيورستي بک ايجنسي، مخ: ۵۸) ـ كريم داد د بونېر په علاقه سلارزي كې پيدا شوى دى.(رحيم، رحيم شاه، غټه خزانه (ناچاپه)، مخ: ۴ ) ـ د ده د پېدايش نېټه ۹٦۵ هـ بمطابق ۱۵۵۷ عيسوي ښودل شوې ده. (رحيم، رحيم شاه، د كانجو ميا كريم داد، مشموله، مياشتيزه پښتو، پېښور، پښتو اكيډمي پېښور يونيورستي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، مخ: ۲۲) رحيم شاه رحيم په خپل ناچاپه كتاب "غټه خزانه" كښې د ده د پېدايش نېټه ۹۷۰ هـ بمطابق ۱۵٦۲ عيسوي ليكلې ده.( رحيم، رحيم شاه، غټه خزانه (ناچاپه)، مخ: ۴)

معنې وي د دې حديثو فارسي ژبه
افغانان نه وو خبردار هېڅ له مطلبه
زه پښتو ورته ليکم دا رنگ بيان
چې خبر شي په کل حال يې افغان[۸۲]

دا حديث ويلى دى دوست د ودود
زه بيان درته پښتو کوم فزود[۸۳]

در خلاصة الحقائق کې دي راوړي
ما په دا رنگه دي تاته پښتو کړي[۸۴]

چې سودا مې ځان له جوړه کړه کامله
فارسي معنا مې زر پښتوته راوسته
له فارسۍ نه په پښتو شوله اسانه
که پرې عمل کړئ په اخر به شئ شادانه[۸۵]
له استاد مې اورېدل دى بل تقرير
په پښتو ژبه مې کړى دى تحرير[۸۶]

پېغمبر دا هسې شان دي فرمايلي
غوږ پرې کېږدئ ما پښتو درته ليکلي[۸۷]

دا بيان په فارسۍ ژبه و مشکل
هر افغان په دې کې و بې قال وقيل
چې دوستي بيا موند توفيق له پاکه ربه
له فارسۍ نه يې کړه بهر په پښتو ژبه
له فارسۍ نه يې په پښتو کړ ډېر اسان
کړي به عمل پرې چې څوک وي ښه مسلمان[۸۸]

د دوست محمد خان دوستي له دې شعرونو نه هم د پښتو ژبې ضرورت او اهميت په ډاګه شو او پته ولګېده چې له فارسي او عربي نه ترجمې څکه کېدې، چې پښتانه په نورو ژبو نه پوهېدل، خو لکه څنګه چې وړاندې د تواريخ حافظ رحمت خاني په حواله ذکر شول، چې يوسفزي چې اول اول له کابل نه راغلي وو، نو فارسي به يې ويله، نو دلته سوال دا پيدا کېږي چې دوی په فارسي پوهېدل، نو بيا له فارسي نه پښتو ته د ترجمو ضرورت ولې پېښ شو؟ دلته دوه خبرې امکان لري، يو دا چې کېدی شي دوی د علمي خبرو صحيح وضاحت باندې په فارسی کې نه پوهېدل، دويمه دا خبره هم کېدی شي چې ټول يوسفزي به په فارسي نه پوهېدل، خو لږ لږ به پوهېدل، نو څکه له فارسي نه کتابونه پښتو ته ترجمه کېدل.

## په سوات کې د پښتو ادب ارتقاء

سوات ته د پښتو او پښتنو د راتګ له بحث نه پته ولګېده چې سوات ته پښتو ژبه د يوولسمې صدۍ په شروع کې د پښتنو له راتګ سره راغلې ده. اوس به دا وګورو چې د پښتو تحريري ادب په سوات کې له کوم وخت نه په نظر راځي، په مجموعي توګه خو د سوات علمي او ادبي روايت دلته له موجودو ډبرليکونو او لرغونو تاريخونونه څخه معلومېږي. په دې حواله "د سوات نامې سريزه" کې علامه عبدالحی حبيبي ليکلي، چې د سوات په بريکوټ کې په ۱۸۹۷م کې يو ډبرليک په سنسکرت او ديوناګري خط کې ليکلی په لاس راغلی دی. دا ډبرليک اوس د لاهور په ميوزيم کې دی. په دې ډبرليک يې داسې ليکلي دي:"د ستر حکمدار او تر ګردو شاهانو غټ لوی باچا سري جيه پاله[۸] ديوه په باچاهۍ کې." [۸۹] په سوات کې د دې ډول ډبرليکونو په باره کې محمد پروېش شاهين ليکي چې:"دغه ډبرليکونه د سرحد انګرېز ګورنر ډين فيرنګي په منظم ډول په ډېر قيمت د عبدالمنان نومي سړي په پوهه او مشرۍ کې له دې ځايونونه وويستل او په ډېر لوی شمېر کې يې د فيرنګيانو وطن ته يوړل."[۹۰] په زړو تاريخونو کې د دې خاورې د علمي او ادبي

---

[۸] حبيبي ليکي چې دا جيه پال يا جېپال هغه کابلشاه دی، چې د پلار نوم يې بهيم ديوه و او د ۳۰۰۰ هجري په شاو خوا کې يې باچاهي کوله. جېپال په ۳۴۹ هجري بمطابق ۹۶۰م کال کې باچا شو او د العتبي په قول په ۳۹۳ ق يې ځان وسوځوه. دغې کورنۍ د غزني له باچا امير سبکتګين سره ډغرې ووهلې او کله چې له کابل نه بې کوره شول، نو بيا يې د اباسين په غاړه په هند کې دويم پايتخت جوړ کړ او له لغمانه تر پکلۍ پورې د سوات په شمول د دوی حکومت و. (حبيبي، د سواتنامې سريزه، مخ: ۴)

اهمیت په باره کې پروېش شاهین وایي چې"د دې خاورې علمي او تعلیمي حیثیت د تبت او چین د زایرینو له سفرنامو نه په اسانه ظاهرېږي"[۹۱]

## صراح

کله چې مونږ په سوات کې د سوات علمي، تحریري او ادبي روایت ګورو، نو اول چې د کوم کتاب ذکر د سوات او یوسفزو پښتنو په حواله راځي هغه "صراح" دی. مېجر راورټي د خپلې پښتو ډکشنرۍ په دیباچه کې چې کله په ۱۴۱۷م کې د شېخ ملي د کتاب ذکر کوي نو بیا ورپسې داسې لیکي:

> It must not for a moment be inferred that previous to this there was no Pushto Literature. On the contrary, Akhund Darwezah mentions in his work entitled "Tazkirat-ul-Abrar",[Tazkirat-ul-Abrar wal Ashrar] written in Persian, that in his time there was a celebrated book entitled صراح "the pure" which had been in the possession of the yusufzis for some centuries past and was ever held in great veneration by the tribe.[۹۲]

افضل خان خټک په تاریخ مرصع کې د اخون دروېزه په حواله وایي چې 'اکبر باچا د هندوستان نه کشمیر روان شه د یوسفزي ملاحظه یې په خاطر کې وه ـ په دې وخت کې میا عیسي[۹] د یوسفزو سردارانو ته ولیکل چې که تاسو ما له د ملا شاه خاني د کتب خانې نه صراح کتاب راواستوئ نو زه به ستاسو دا ملک د اکبر باچا نه خلاص کړم.[۹۳]

بل اهم کتاب د شېخ ملي دفتر دی.

## د شېخ ملي دفتر

له صراح نه علاوه چې د کوم کتاب ذکر د سوات په حواله ټولو تاریخونو کړی دی هغه "د شېخ ملي دفتر" دی. د شېخ ملي دفتر او د پښتو د ادبي روایت په باره کې رابرټ پېنزل داسې لیکي:

[۹] شاه عیسي (میا عیسي) د سند د بکوله ساداتو څخه یو زاهد و، چې په اټک کې اوسېده. ( د خوشحال بابا کلیات، سمونه، مقدمه، حاشیې،تشریحات او فرهنګ د پروفېسر ډاکټر یارمحمد مغموم خټک، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۲۰۱٦، مخ: ۱۳۴۳

The first use of Pashto as a literary language is believed to have been in the fifteenth century when Shekh [Shaikh] Mali wrote his account of the conquest of Swat.[٩٤]

خوشحال خان خټک چې کله سوات ته راغلی و، نو هغه هم د دې کتاب ذکر کړی دی، ځکه هغه په خپل کليات کې يو ځای کې داسې وايي:

دوه کـــاره دي پـــه ســـوات کـــې کـــه خفـــي دي کـــه جـــلي
مخـــــــزن د درويـــــزه دی يـــــا دفـــــتر د شـــــېخ مـــــلي[٩٥]

د خوشحال خان خټک دا شعر په Confidential, Gazetteer of North-West Frontier, from Bajaur and Indus Kohistan on the North to the Mari hills on the South په څلورم جلد ١٨٦٠ مخ کې داسې ليکل شوی دی:

پـــه ســـوات کـــې دي دادوه کفـــــــــــــره جـــلي
يـــو مخـــزن د درويـــزه دی بـــل دفـــتر د شـــېخ مـــلي

په جرمني کې د پښتو د شاعرانو د کلام د مجمع الاشعار[١٠] په نوم يوه قلمي نسخه ده د هغې د دويم جلد په ٢٣٢ مخ کې د "شعر معاند" تر سرخط لاندې دا شعر ورکړی دی:

پـه صـوات کـې دي دوه کفـره يـو خفـي دی بـل جـلي
يـــو مخـــزن د درويـــزه دی بـــل دفـــتر د شـــېخ مـــلي

له دې شعر نه وروسته يې په ٢٣٣ مخ ای "رد از اکبر اخوند زاده" تر سر خط لاندې يو کلام ورکړی دی چې اولني دوه شعرونه يې دا دي:

پـــه ســـوات کـــې دوه کتابـــه دي يـــو فـــرع بـــل اصـــلي
يـــو مخـــزن د درويـــزه دی بـــل قـــران نـــور جـــلي
څـــوک چـــې لـــه دې دواړو مخـــالف ځـــي پـــه دنيـــا کـــې
د قـــارون پـــه دود پـــرې ډک شـــو د دوزخ جـــور تـــلي

په همدغه مخ کې د اکبر اخوند زاده د يو بل کلام دا دوه شعرونه هم له دې موضوع سره تعلق لري:

---

[١٠] ديناخېل، ډاکټر محمد علي. په جرمني کې د پښتو يوه قلمي نسخه"مجمع الاشعار، مقاله مشموله شپږمياشتينۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي، پېښور پوهنتون، جلد: ۴۵، شمېره: ٦٥١ (جنوري، جون٢٠١٦)

پــــه ســــوات کـــــې دي دوه کفـــره يـــو خفـــي دی بـــل جـــلي
يــــو رســــوم باطلـــــه دي بـــــل دفـــــتر شــــېخ مــــلي
څـــوک چـــې مخـــالف ځـــي لـــه قرانـــه تـــرې توبـــه شـــه
لــــــــيس لمــــــــــن اعلــــــــــم الخلــــــــــف و لا لي
پـــير خـــو مـــې قـــران دی لـــه رســـومو مـــې توبـــه شـــه
مثـــل د لـــوی حـــوض دی چـــې تـــور تـــن کـــه صـــيقلي
ديـــن لـــه خدايـــه راغـــی پـــه قـــران کـــې رابيـــان شـــۀ
دا لـــــه حقـــــه دينـــــه نـــــه جـــــزي دي نـــــه کـــــلي

"دفتر شېخ ملي" د ګريرسن په خيال د سوات د پښتو وړومبی کتاب دی، خو هغه وايي چې په لاس نه دی راغلی، په دې اړه د هغه الفاظ دا دي:

Pashto has a fairly copious literature, partly original and partly translated. The first book written in the language is said to be a history of the conquests of Swat by the Yusufzais, but no copy of it is known to exist.[٩٦]

ترجمه: په پښتو کې ښه ډېر ادب موجود دی، په دې کې څه ترجمه شوی او څه اصلي دی. په دې ژبه کې ويلی شي چې وړومبی کتاب د يوسفزو د سوات د فتح کولو په باره کې دی، خو د دې کتاب يو نقل هم موجود نه دی. مېجر راورټي په ۱۸۵۸م کې سوات ته يو قندهاری د "دفتر شېخ ملي" په لټون پسې رالېږلی و، هغه ټول سوات وکتلو، خو دا کتاب ورته په لاس ورنغی، خو په واپسۍ کې ورته چا دومره خبره وکړه چې دا کتاب د شاکوټ له مياغلام محمد سره دی، خو د دغه کلي د امن و امان د خرابو حالاتو له وجې دی دغه کلي ته لاړ نه شو.[٩٧] د مېجر راورټي د ۱۸۵۸م له ليکل شوې مقالې خو دا پته ولګېده چې دا کتاب هغه په هغه وخت کې نه و موندلی، خو بيا وروسته د هغه د پښتو ډکشنرۍ د ديباچې له بيان نه داسې پته لګي چې دا کتاب هغه وروسته موندلی دی. د خپلې پښتو ډکشنرۍ په ديباچه کې په دې اړه هغه داسې ليکي:

Shaykh Mali, Yusufzi, in A.D ١٤١٧, wrote the "History of his tribe and their conquests in the Peshawar valley, and in the Samah or plain on the northern bank of the Landdaey sind or Kabul River." This is the earliest work I have been able to discover.[٩٨]

ترجمه: شېخ ملي یوسفزي په ۱۴۱۷م کې د خپلې قبیلې تاریخ او د هغوی په ذریعه د پېښور د وادۍ او د لنډي سیند یا د کابل سیند شمال طرف ته د سمې یا میداني علاقې د فتح کولو تاریخ ولیکله، دا په اولنو کتابونو کې دی د کوم چې زه د موندلو جوګه شوم.

نصرالله خان نصر وایي چې د "شېخ ملي دفتر نوموړي مستشرق مېجر راورټي موندلی او په ۱۸۵۵م کې يې د پښتو ګرامر په دیباچه کې د دې کتاب د کتابت تاریخ ۱۴۱۷م لیکلی دی.[99] عبدالاکبر خان د شېخ ملي د وېش او بندوبست تاریخ ۱۵۳۰م لیکلی دی.[100] د دفتر شېخ ملي د لیکلو کوم تاریخونه چې دې بره لیکوالانو ذکر کړي، نو له هغې نه دا پته لګي چې که دا یو داسې کتاب وي چې په هغه کې د قبضه کړی شوو زمکو د وېش او د حساب کتاب ذکر وي، نو دا کتاب به له لیکل شوي کال یا وخت نه وروسته لیکل شوی وي، ځکه چې په دې وخت کې یوسفزي په جنګونو او فتوحاتو کې لګیا وو او وېش لا نه و شوی.

## تاریخ خان کجو

یو بل مهم کتاب چې د هغه ذکر د سوات په حواله راځي هغه "تاریخ خان کجو" دی. د دې کتاب په باره کې مېجر راورټي لیکي چې دا کتاب خان کجو رانېزي[11] په ۱۴۹۴م کې لیکلی دی.[101] د دې کتاب په باره کې مېجر راورټي نور تفصیل داسې بیان کړی دی:

The history of the Yusufzis and the account of the conquest of Suwat, I have found in work in the Library of the India House; written however in a most strange manner in Pashto and Persian. The author was an Afghan; and he goes on to relate in Persian and then all at once breaks into Pushto and vice versa.[102]

---

[11] د کجو خان اصلي نوم خان احمد خان و. دی د خپل وخت د ټولو نه لوی ملک و، د سوات په خواو شا کې اوس هم رانیزي نومې یو قوم اباد دی. کجو خان د رانیزي له مشهور خېل ازي خېلو سره تعلق لري. ویېلی شي چې د دې کورنۍ په دغه علاقه کې ډېر نوم خور و. کجو خان له شېخ ملي نه پس په پښتنو کې ډېر یاد سړی و. د حیات افغاني مصنف لیکي چې خان کجو د شېر شاه معاصر و. ( رضا، محمد افضل، د پښتو د نثر تاریخ، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ١٩٩٦، مخ: ۱۱۸)

ترجمه: ما د یوسفزو او د سوات د فتح کولو تاریخ په انډیا هاوس کتابتون کې بیاموند. دا په یو عجیبه انداز کې په پښتو او فارسي کې لیکل شوی دی، د دې کتاب لیکوال یو افغان و او هغه په فارسي کې بیان کوي او بیا ناخاپي پښتو ته واوړي او دغه رنګ بیا فارسی ته.

دا کتاب چې په فارسي او پښتو ګډوډ لیکل شوی، په اصل کې د "تاریخ افاغنه" تلخیص دی چې د "تاریخ خان کجو" په نوم یادېږي. په دې باره کې محمد نواز طائر لیکي چې"د اصل مسودې، یعنې تواریخ آفاعنه د مصنف نوم خواجو ملیزی و. دغه مسوده لکه چې د تواریخ خان کجو په نوم هم شهرت لري. خواجو مورخ د خان کجو په مصاحبینو کې و او پخپله یوسفزی و، چې د خان کجو له وفات وروسته هم ژوندی و او دا کتاب چې د خان کجو د وفات ذکر هم لري داسې ښکاري لکه چې د هغه له وفات نه پس د هغه د یادګار په طور لیکل شوی او هغه ته منسوب کړی شوی وي.[١٠٣]موجوده وخت کې دا کتاب د تواریخ حافظ رحمت خاني په نوم د پیر سباک کلي پیر معظم شاه مرتب کړی دی. هغه لیکي چې حافظ رحمت خان ته دا کتاب د شاه جهان پور د نواب خان بهادر خان غوریاخېل داودزي له کتب خانې نه راستولی شوی و.[١٠٤] ددې کتاب وړومبی مولّف خواجو ملیزی دی او هغه دا کتاب د تواریخ آفاغنه په نوم تقریباً په ١٦٢٣م کې لیکلی دی.[١٠٥]

## مخزن الاسلام

د سوات په پښتو ادب کې وړومبی معلوم او موجود کتاب مخزن الاسلام دی. د مخزن دوباره ترتیب او تدوین د اخون درویزه اولاد په سوات کې کړی دی، دغه وجه ده چې د سوات پر پښتو ادب د دې کتاب ډېر ژور اثرات مرتّب شوي دي، ځکه د سوات په پښتو ادب کې دې کتاب ته ډېر اهمیت حاصل دی. د دې وجوهاتو په بنا د هغه وخت نقادانو او مورّخینو مخزن ته د سوات کتاب ویلی دی، لکه خوشحال خان خټک چې وایي:

کــــه ژونــــدی شي افلاطــــون ســــوات کــــې اونــــیسي ســــکون
اکوزیـــــو تــــه بیــــان کــــا کتابونــــــــــــه د فنـــــــــــون
هدایـــــــــه کفایـــــــــه دواړه پـــــه پښـــــتو کانـــــدي مـــــوزون
دوي بــه وایــي چــې دا څــه دي مخـــــزن ښـــــۀ دی د اخـــــون[١٠٦]

خوشحال خان خټک په يو بل ځای کې داسې وايي:

مخـــــزن د درويـــــزه د ميـــــانور شـــــيخي پـــــيري
الثالـــــث بـــــالخير د حمـــــــــــزه خـــــاني مـــــيري
دا دري تـــو كـــه ډېـــر قـــدر ډېـــر عـــزت لـــري پـــه ســـوات كـــې
و خـــدای وتـــه ښـــكاره دي ويـــل نـــه شـــــــي پـــه ځـــيري [١٠٧]

او د مخزن ذکر بل ځای داسې کوي:

دوه كـــاره دي پـــه ســـوات كـــې كـــه خفـــي دي جـــلي
مخـــــــزن د درويـــــزه دی يـــا دفـــتر د شـــېخ مـــلي [١٠٨]

د اخون درويزه د مخزن په باره کې مېجر راورټي داسې ليکي:

Akhund Darwezah, wrote his "Makhzan Pushto", in refutation of the tenets of the Roshanian sect of schismatics, promulgated by its founder Bayzid Ansari.[١٠٩]

ترجمه: اخون درويزه خپل د پښتو مخزن د روښاني فرقې د عقيدې په رد کې وليکه، کومه عقيده چې د دې ډلې باني بايزيد خوروله.

د مخزن الاسلام په باره کې گيئرسن داسې ليکي:

Most renowned work, an unparalleled treasury of invective, is the Makhzan-e-Islam, in which he attacked the heresies of Bayazed.[١١٠]

ترجمه: مخزن اسلام ډېر زيات مشهور کتاب دی چې د بدو ردو يوه بې مثاله خزانه ده په کوم کې چې د بايزيد انصاري په بدعت او الحاد حملې شوي دي.

خوشحال خان خټک په "سوات نامه" کې د مخزن په باره کې داسې وايي:

يـــــو كتـــاب دی درويـــزه سره جـــــوړ كـــــــــــړی
چـــې د ســـوات خلـــق يـــې لـــه علمـــه دی مـــوړ كـــړی
نـــا معقـــول مجهـــول بيـــان پكـــې بـــې ځايـــه
پكـــې بـــد د ســـيد وايـــه يزيـــد ســـــتا يـــه
دا احـــوال بـــه پـــه بـــل فصـــل كـــې ښـــكاره شي
پـــه مطلـــب نظـــر لـــــــرم چـــې درښـــكاره شي
نـــا گهانـــه چـــې زمـــــا پـــه نظـــر كېـــوت

په دا حرف په دا ویل مې نظر پرېوت
چې لعنت به په یزید هغه واینه
چې په رفض کې غره بې حده وینه[۱۱۱]

چا به وي چې دا اخون زمونږ امام دی
درست مخزن پرې نازل شوی په الهام دی
په مخزن باندې چې بد وایي کافردی
د کافر قتل په شرعه معتبر دی[۱۱۲]

دروېزه چې بیان کړی خپل کتاب دی
نوم ئې مخزن الا سرار کړی جناب دی
هر بیان یې ناموزون، مجهول، بېرنگه
خالي یا تول دانشه له فرهنگه[۱۱۳]

د اخون دروېزه او د هغه د کتاب مخزن په سوات کې د مقبولیت په باره کې خوشحال یو بل ځای کې داسې وایي:

د درست سوات د ملایانو دا رضا ده
چې قبول دې که دا کار فایده هم دا ده[۱۱٤]
یوسفزیه چې نیولی ملک د سوات دی
دا همه د دروېزه دعا دعوات دی[۱۱۵]

د مخزن د موضوعاتو ( Contents ) باره کې خوشحال داسې وایي:

قصیده د بوصیري ترجمه کړې
عربي یې تر پښتو مضحکه کړې
هر هر بېت د قصیدې چې در مرجان دی
په پښتو کې تر ور بشولا ارزان دی
معماد ازري ترجمه کړې
تصوّف یې و عالم وته نو مړې
ترجمه د شاه ناصر یو خوا شکاله

و عـــــالم تـــــه جـــــوړه کـــــــــړې لـــــه مقالـــــه
مســــئلې یــــې نظــــــــم کــــړې پــــه پښــــتو دي
درتــــه څــــه وایــــم چــــې څــــه دي؟ د لوســــتو دي؟
پــــه دا هســــــې شــــان کتــــاب یــــې مباهــــات دی
د جــــامي ترهفــــت اورنــــگ ورتــــه ناویــــات دی[116]

هـــــر ســــړی چــــې پــــه مخــــزن بانــــدې څــــه وائي
پــــه دنیــــا کــــې ترســــاعته بــــه څــــوک پــــائي[117]

درویــــزه نــــه مجتهــــــــد دی نــــه امــــــــام دی
دی هــــم خــــام تاســــو هــــم خــــام مخــــزن هــــم خــــام دی[118]

د مخزن ترتیب او تدوین چې په اخري ځل مصطفیٰ محمد کړی دی، نو په دې کې د کریم داد شهید، میامصطفی محمد او عبدالحلیم الف نامې او د کلام نورې نمونې ورکړل شوې دي. له دې نه وړاندې د مخزن ترتیب او تدوین په سوات کې د اخون درویزه زوی عبدالکریم کړی و. په دې باره کې سیدتقویم الحق کاکا خېل لیکلي، چې د هغه درې ډېر مشهور کتابونه مخزن الاسلام، ارشاد الطالبین او تذکرة الابرار والاشرار د ۱۰۱۲هـ (۱۶۰۳م) کال او ۱۰۲۱هـ (۱۶۱۲م) کال تر مینځ لیکل شوي دي. د ارشاد المریدین متعلق هم دغه اندازه ده. دا ټول کتابونه د هغه مشر زوی عبدالکریم چې په کریمداد هم پېژندی شي دوباره مرتب کړي او عام کړي او په هر یوه کې یې څه نه څه اضافه هم کړې ده.[119] ډورن په خپل انتخاب کې د اخون درویزه د "مخزن" څه حصه ورکړې او هغه دا هم ویلي، چې له هغه سره چې د مخزن کومه قلمي نسخه ده هغه د اخوند درویزه زوی عبدالکریم په ۱۰۴۱هـ (۱۶۰۵م) کې لیکلې ده".[120] مخزن په ټوله پښتونخوا په ځانګړي ډول د سوات په سیمه کې اهمیت حاصل کړی و.[121] تقویم الحق کاکا خېل بل ځای د کریم داد په باره کې لیکي چې عبدالکریم (کریم داد) د اخوند صاحب مشر ځوی و او د هغه ټول کتابونه یې مرتب کړي او خواره کړي دي.[122] مخزن الاسلام اخري ځل مصطفي محمد د۱۱۱۲هـ د محرم په ۱۲مه (۱۷۰۰م) کال کې مرتب کړی او د کریم داد او عبدالحلیم الف نامې او څه عبارتونه یې ور زیات کړي دي. وروسته همدغه نسخه خلکو

نقل کړې او طباعت ته راغلې ده. مصطفی محمد د میا نور محمد زوی او د کريم داد لمسی و[۱۲۳] د مخزن الاسلام اخري ځل کتابت او ترتيب په اسلام پور (سوات) کې شوی دی[۱۲۴] د مخزن دوه حصې دي، يوه علمي او بله ادبي، دا رنګ د ده علمي مقام جدا دی او ادبي مقام جدا.[۱۲۵]د مخزن د اسلوب او موضوعاتو په باره کې سيد تقويم الحق کاکاخېل ليکي چې مخزن الاسلام د پښتو يو او يوائينی درسي کتاب دی. تر ډېرې مودې غر په سمه د پښتونخوا په هر کور او هر جماعت کې دا کتاب لوستل کېده. د دې الف نامې به ملايانو په خطبو، مشرانو په وظيفو او ځوانانو په حجرو کې ويلې او د دې په مسئلو به قاضيانو فيصلې ورکولې. د مخزن ژبه درنه ده او مضامين يې ګران دي. وروسته په پښتو کې ډېر اسان او خواږه علمي کتابونه وليکل شول خو کوم قبوليت چې خدای پاک مخزن ته ورکړی و هغوی ته نصيب نه شو او کوم اعتبار چې پښتنو په مخزن کړی و، په هغو کتابونو يې ونکړی شو[۱۲۶]مخزن په مسجع او مقفٰي نثر کې ليکل شوی دی.

د هغه وخت يو بل مهم کتاب فوائدالشريعت و. مخزن او فوائدالشريعت دواړه درسي کتابونه وو. [۱۲۷] اخون قاسم پاپين خېل (پيدائش۱٦۳۰م) خپل کتاب فوائد شريعت په ۱۰۷٦ هـ کې ليکلی دی.[۱۲۸]د مخزن الاسلام په شان فوائد شريعت هم په مسجع او مقفٰي نثر کې ليکل شوی دی.

د دغه وخت په مهمو شخصياتو کې يو پير بابا هم و. پير بابا هم يو کتاب ليکلی و، خو په لاس نه دی راغلی. په دې باره کې سيد عبدالجبار شاه ستهانوي داسې ليکي:

> میں نے غالباً ۱۸۹٤ء میں آپ کی ماذون اخوند جی صاحب کی اولاد اخوند خیلان تر بیلہ میں سے ایک ۸۰سالہ معمر بزرگ عالم کو عمداً جاکر دیکھتا تھا جن کا نام اصحاب الدین بابا تھا۔ میں نے اس سے اپنے اس مقصد کا ذکر کیا کہ آیا حضرت سید علی ترمذی قدس سرہ کی کوئی اپنی تصنیف آپ کی نظر سے گذری ہیبا نہیں اور آپ نے کسی سے سنا بھی ہے یا نہیں کہ حضرت کی کوئی اپنی تصنیف کتاب ہے یا نہیں ۔تو اس نے مجھ کو جواباً کہا کہ جب میں نو عمری میں طالب علم تھا اور پشاور کی مساجد میں جا بجا درسوں میں تعلیم حاصل کررہاتھا ان دنوں شہر پشاور کی نزدیک موضع چمکنی میں ایک متمول سوداگر رہتاتھا۔ اس کی پاس ایک کتاب سیدعلی ترمذی

علیہ الرحمتہ کی تصنیف اور آپ کی اپنی لکھی ہوئی میں نی دیکھی
تھی جو اس کی نزدیک تمام دولت ہی اور جائیداد سی زیادہ محبوب
متاع تھی وہ بطور تبرک اس کو اپنی سینی پر رکھ رات کو سویا کرتاتھا
اور کسی کو ہاتھ لگنی نہ دیا کرتاتھا۔[۱۲۹]

د دې ادبې روايت په لړۍ کې د اخوند میاداد (۱۵۹۰-۱٦٦۸ ) دیوان هم شامل دی.[۱۳۰] د اخوند عبدالغفور (سیدو بابا) په ادارت کې به له سوات نه د اسلام /الجهاد په نوم یو اخبار[۱۲] هم شائع کېده، چې د پښتو ادبي صفحات به پکې هم وو او د سیدو بابا د خپل یو تصنیف ذکر هم ځینو تاریخپوهانو کړی دی. وایي چې سیدو بابا په پښتو کې د مثنوي په څېر د مناجات یو کتاب لیکلی دی.[۱۳۱]نصر الله خان نصر لیکلي، چې دا کتاب لاچاپ شوی نه دی او د لندن په عجائب خانه کې يې قلمي نسخه پرته ده.[۱۳۲] د برټش میوزیم د چاپ کتابونو په یو فهرست کې د "مناجات صاحب صوات" تر سر خط لاندې په اتم مخ د یو چاپ کتاب ذکر موجود دی، چې په انګرېزۍ کې يې ورته لیکلي، چې دا یو نظم دی د صاحب سوات په مدح کې. د دې د چاپ کال يې ۱۸۸۳م لیکلی دی. په اتلسم مخ هم د "مناجات صاحب صوات" تر سرخط لاندې د یو چاپ کتاب ذکر موجود دی چې د چاپ کال يې ۱۸۸۴م لیک دی. دې کتاب ته يې هم لیکلي چې دا د عبدالغفور په مدح کې یو نظم دی.[۱۳۳] له دې نه دا پته لګي چې دا کتاب سیدو بابا نه دی لیکلی، بلکې د هغه په صفت او ستاینه کې مناجات لیکل شوی دی. د محمد اکبر (ملابابا) (۱۸٦۲- ۱۷۸۰) قلمي دیوان په برټش میوزیم لندن کې د مشرقي څانګې په کېټلاګ نمبر ۴۲۳۰ باندې محفوظ پروت دی. دا دیوان په ۱۸۸٦م کې یو مشهور مستشرق ډارمسټېټر په مینګوره کې د محمد اکبر د یو لمسي ډاک قاضي صیب نه وړی و او د ۱۸۹۱م کال د اپریل پر ۱۱مه له ډارمسټېټر نه د برټش میوزیم د کتاب خانې لپاره اخستل شوی دی.[۱۳٤] مېجر راورټي په ۱۸۵۸م کې یو قندهاری سوات ته د "دفتر شېخ ملي" په لټون پسې رالېږلی و، هغه چې له تاڼې نه د مانیار او اوډیګرام تر کلیو پورې کوم کتابونه لیدلي دي، د هغې په باره کې يې داسې لیکلي دي:

[۱۲] د دې اخبار مختلف نومونه ذکر شوي، لکه الجهاد، الاسلام، اسلام او نور. نور تفصیل په دې باب کې د صحافت د سر خط لاندې موجود دی.

I examined the whole of the Pashto books of the villages between this and Tarrnah [Thana], which were chiefly on theology; but at Waddigram I found three others—the poem of Yusuf and Zalikha by Abd-ul-kadir [Qadir] khan and the poems of Shahai Dali, and Adam and Durkhanai, by Sadar Khan his brother.[۱۳۵]

ترجمه: ما د دې کلي او د تاڼې په مینځ کې د پښتو ټول کتابونه وکتل. دا کتابونه زیاتره له مذهبي موضوعاتو سره متعلق وو، خو په اوډیګرام کې ما درې نور کتابونه پیدا کړل، په دې کې یو د عبدالقادر خان لیکلی د یوسف زلیخا منظوم داستان و او د شهی دلي قیصه وه او بل د عبدالقادر خان د ورور لیکلې د ادم خان درخانۍ قیصه وه.

په منګلور کلي کې چې هغه د پښتو کوم کتابونه ولیدل د هغې په باره کې داسې وايي:

I examined all the Pashto books in this village [Minglawar] which I could get hold of, but they were all on divinity, and not one with which you are not acquainted; such as Makhzan-ul-Islam,Fawa'id-ush-Sharri'ah, Jannat-i-Fardous, Durr-i-Majlais etc.[۱۳۶]

ترجمه: ما په دې کلي کې د پښتو د ټولو کتابونو جايزه واخسته، دا ما اخستای شول، خو دا ټول له مذهب سره متعلق وو او داسې یو کتاب پکې نه و، چې ته ورسره واقف نه وې، لکه مخزن الاسلام، فواید شریعت، جنت فردوس، درمجالس او نور.

مېجر راورټي چې د سوات په مختلفو کلیو کې د پښتو روماني داستانونه، ادبي کتابونه او نور مذهبي کتابونه ذکر کړي، نو له دې نه دا پته لګي چې دسوات خلک له پښتو ادب سره له اول نه ډېره مینه لري او د پښتو ادب په ترقۍ کې د سوات ډېر لاس دی.

## صحافت

په دې دور کې د باقاعده صحافت پوره پته نه لګي، البته په دې دور کې صرف د یو اخبار ذکر موجود دی او دا اخبار په مختلفو نومونو یاد شوی دی، په دې نومونو کې اسلام، الاسلام، الجهاد او نور نومونه شامل دي. وايي چې د دې اخبار بنیادي مقصد خلک د فیرنګیانو له ناکاره ارادو نه خبرول او هغوی جهاد ته تیارول وو. عمر عامر په خپل کتاب A History of Press in N.W.F.P کې د دې اخبار په باره کې لیکي، چې الحاج غلام غوث

صحرايي له ۱۸۵۷ کال نه مخکې د پښتو د يو اخبار حواله ورکړې ده، د دې اخبار نوم هغه "اسلام" ياد کړی دی. وايي چې دا اخبار ستر روحاني لارښود اخوند عبدالغفور(سيدو بابا) په ۱۸۵۴م کې شروع کړی و او د دې اخبار ايډيټر د هغه مريد عبدالغفار پشاوري و.[۱۳۷] اجمل ملک ليکلي، چې په پښتونخوا کې د پښتو صحافت شروع له الجهاد اخبار نه شوې، چې د سوات د عبدالغفور په ادارت کې به چاپ کېده.[۱۳۸] همايون هما ليکي چې دا يوه نيم ادبي جريده د "اسلام" په نوم په ۱۸۵۴م کې سيدو بابا شروع کړې وه.[۱۳۹] د دې جريدې اشاعت به په خفيه طريقه کېده او د دې ټول خرچ به سيدو بابا پخپله کولو.[۱٤۰] وايي چې دا اخبار سيدو بابا د فرنگيانو خلاف جاري کړی و.[۱٤۱] شمس الرّحمان شمس په خپل کتاب پوئټس اف مالاکنډ کې د دې اخبار په باره کې داسې ليکي:

> Al-Jihad, a Pashto daily which was to be supervised by Abdul Ghafoor, Wali of Swat, and edited by Abdul Ghaffar Peshawari of Toroo, Mardan district was the beginning of journalism in the area before partition. The paper was being printed on a spices called Halwa Press. The paper had great journalistic value.[۱٤۲]

عثمان شاه ليکي چې  د سيد احمد شهيد د جهاد د تحريک په دوران کې به د "الجهاد" په نوم د پښتو د يو مخ اخبار شائع کېدلو. د ضلع مردان د طورو کلي عبدالغفار پشاوري به دا اخبار مرتب کولو او د سوات عبدالغفور عرف سيدو بابا به د دې اخبار ادارت کولو.[۱٤۳] عبدالله جان عابد په خپل کتاب کې ليکي چې په ۱۸۵۴م کې حضرت عبدالغفور سيدو بابا يوه مياشتينۍ ديني او نيم ادبي رساله د "اسلام" په نوم ويستله.[۱٤٤] محمد پروېش شاهين ليکي چې په ۱۸٦۳م کې به له سيدو شريف نه د عبدالغفور په ادارت کې د الجهاد په نوم اخبار چاپ کېده.[۱٤٥]

له دې ټولو حوالو نه دا پته لگي چې دا اخبار په مختلفو نومونو ياد شوی دی، په دې نومونو کې الجهاد، اسلام، الاسلام نومونه مشهور دي. د دې اخبار د شروع کېدلو په نېټه کې هم اختلاف موجود دی، خو زياتو کتابونو ۱۸۵۴م ليکلی دی. د ژبې په باره کې هم مختلفې رايې دي ځوک وايې چې دا د فارسۍ اخبار و، خو د پښتو صفحه پکې موجوده وه او ځوک وايي چې دا د پښتو اخبار و. په ورکړل شوو حوالو کې دا خبره هم مخې ته راغله چې دا ورځپاڼه وه که هفته وار يا مياشتينی اخبار و. په دې ټولو خبرو کې اختلاف موجود دی او که د هغه وخت د خلکو تعليمي

شرح مونږ وګورو نو بيا به هم يو سوال پيدا کېږي چې ايا په هغه وخت کې دومره لوستونکي وو چې د هغوی لپاره د اخبار ضرورت پېښ شو؟ له دې ټولو متضادو بيانونو او پوښتنو نه اهمه خبره دا ده چې کومې حوالې په لاس راځي په هغوی کې يوه حواله هم داسې معتبره نشته چې دا اخبار چا ليدلی وي. د سوات پر صحافت باندې کار کوونکی يو څېړنکار ليکي چې ما د دې اخبار په لټون کې ډېرې کتاب خانې او د ارکائېوز ريکارډونه او فائلونه وکتل خو دا اخبار په لاس رانغی،[١٤٦] خو د دې ټولو خبرو باوجود چې دومره ذکر يې شوی او حوالې پرې موجودې دي، نو د دې اخبار د وجود نه انکار نه شي کېدی او دا امکان شته چې چرته نه چرته به يوه کاپي په لاس راشي.

## په ادب کې د چاپېريال عکس

د دې دور ځينې کتابونه داسې دي چې د چاپېريال پوره عکس پکې ښکاري او ځينې کتابونه د چاپېريال عکس ډېر تت تت لري. په دې اړه بدرالحکيم حکيمزی وايي چې :" د چاپېريال او ټولنې د څېرې را پېژندلو لپاره د دروېزه او کريم داد کلامونه په پوره معلوماتو سمبال دي او د ميا داد هغه بيخي تشباړی دی."[١٤٧] او بل ځای کې داسې ليکي:"دروېزه او کريم داد د خپلو شعري زېرونو په جولۍ کې ګڼ شمېر موضوع ګانې را نغښتي دي، ولې له بلې خوا ميا داد د عرفان او معرفت د حال او قال له تذکرو نه علاوه په کومه بله موضوع نه دی غږېدلی."[١٤٨]

## ادبي اسلوب او ژبه

په ادبي ژبه د نورو ژبو اثرات ډېر واضح او صفا ښکاري. په خصوصي توګه په پښتو کې د فارسي او عربي امېزش ډېر شوی دی. د اخوند دروېزه او د کريم داد الف نامې د هغه وخت د ادب غوره نمونې دي. د کريم داد الف نامه په علمي اعتبار سره ډېره درنه او ادبي اعتبار سره ډېره خوږه ده. د علم او ادب داسې مناسب او متناسب امېزش ډېر کم موندی شي. د دې اکثر اشعار د پښتو په ادبيات عاليه کې د شمېرلو قابل دي، خصوصاً کومو اشعارو کې چې د مينې او سوز د جذبې شدت او د خفيف بحر ترنم سره يو ځای شوی دی. [١٤٩]

## ادبي اصناف

په دې دور کې مهم ادبي اصناف چاربيته، بدله، غزل، مرثيه، قصيده، مناجات او نور د ذکر وړ دي.

## چار بيته

د سوات د پښتو ادب په اولني دور کې د چاربېتې صنف ډېره ترقي کړې وه او دا ترقي د شلمې پېړۍ تر اولو شلو کلونو پورې وه. رحيم شاه رحيم د دې دور د شاعر احمد دين طالب د چاربيتو په باره کې ليکي چې احمد دين چې څه وخت په سوات کې داخل شو هغه وخت په سوات کې د چار بيتې دور دوره وه او غزل ته چا خاص توجه نه ورکوله. احمد دين هم په لړه موده کې په دې فن کې دومره نوم پيدا کړ، چې د خپل وخت لوی استاذ وګڼل شو. [۱۵۰] د ديوان اکبر د اصنافو په باره کې محمد نواز طائر ليکي چې په دې کې غزلونه، قصيدې، چاربيتې، مناجات او معمې شاملې دي.[۱۵۱] د سوات شاعران دوه قسمونو کې وېشل شوي دي، يو د عوامي چاربيتي شاعران دي او بل کلاسيکي شاعران. [۱۵۲]

## بدله

دا هم د پښتو ادب يو زوړ او ولسي صنف دی. حسين په خپل ديوان کې د بدلې ذکر داسې کوي:

چې مې واوريده په غوږ د عشق بدله
په هېبت مې څهره واوښته په بله[۱۵۳]
اخون نفل د اشراق په مينه هېر کړه
لاس په غوږو دي ولاړ وائي بدلې [۱۵۴]

د محمد اکبر په دې شعر کې هم د "بدلې" لفظ راوړل شوی دی:

مطرب بدلې په سرود وايي سرود غږ وي
رسول د مينې پرې مېلمه وس يې غمژن له بولي[۱۵۵]

په مخزن کې د بدلې ذکر په دې لاندې جملو کې راغلی دی:

١. دا بدلې دي برحقې چې قران د طريقت دی.
٢. دوی عمر په بدلو هم په کفر ګمراهۍ کې تيروينه.
٣. دوی د ګمراهانو شعر د قرآن په ځای نيولی ـ دوی عمر په دا بيهوده خبرو په بدلو تېروينه.[۱۵۶]
٤. هم له بې هوده خبرو چې نور څوک به پرې وخاندي يا بهتان وي يا پېغور وي يا بدلې چې له زلفو وي له خاله.[۱۵۷]

د پښتو ادبپوهان بدله د مثنوي بدل شکل ګڼي، خو په مثنوي کې له عشقيه

مضامینو نه علاوه مذهبي موضوعات ډېر زیات دي، بلکي د مثنوي شروع هم له مذهبي موضوعاتو څخه شوې او بیا پکې وروسته د عشق و محبت رومانوي داستانونه هم لیکل شوي دي، خو دا خبره چې بدله د مثنوي بدل شکل دی، یا بدله او مثنوي یوشی دی، صحیح نه ده. د بدلې او د مثنوي هېئت که یو وي خو د موضوعاتو په لحاظ په بدله کې صرف او صرف عشقیه مضامین بیان شوي وي، لکه اخوند دروېزه چې وایي: "یا بدلې چې له زلفو وي له خاله". له دې نه پته لګي چې دا یو داسې صنف و، چې صرف د عشق و محبت مجازي خبرې پکې کېدلی شوې، ځکه د هغه وخت مذهبي خلکو لکه اخوند دروېزه او نورو ډېرو خلکو دې صنف ته په ښه نظر نه دي کتلي. د بدلې په باره کې له پورتنیو او نورو شعرونو نه هم دا پته لګي چې بدله صرف د عشقیه مضامینو یو صنف و.

## غزل

بدله او چاربیته د دغه وخت د ولسي شاعرۍ مهم توکي وو، خو لوستو شاعرانو د غزل په ترقۍ کې هم کردار لوبولی دی. اخون میاداد ځای پر ځای په خپل دیوان کې د غزل ذکر داسې کوي:

ماســـــتاله مینـــــــې محبتـــــــه غزلونـــــــه وویـــــــل
هغـــــــه بلبلـــــه د ســــحر شــــیرین زبانـــــه نـــــه ده[۱۵۸]

پـــــه زړه مــــې ســـــتا د مینــــې اور بلیــــږي چغــــې وهـــــم
او غزلونــــــه ســــــتا لــــــه مینــــــې محبــــــت کومـــــه[۱۵۹]

غزلــــــــــــــــونه د سلــــــــوک پــــــه پښــــــتو در پئــــــیلي
د میــــاداد ګــــوهر پــــــه خلقــــو کــــې پریشــــانه شــــوي[۱۶۰]

او میــــاداد چــــې دا غــــــزل کــــړه د ســــاقي لــــه پیــــالې وڅښــــه
کــــه د عشــــق لــــه پیــــالې وڅښــــې د ســــلوک پــــه لار بــــه ښــــیوزې[۱۶۱]
غزلونــــــه مــــــې د عشــــــق پــــــه خلقـــــــــو خـــــــواره شــــــول
نــــــا بــــــالغ بانــــــدې د عشــــــق قــــــدر قیمــــــت چــــــرې دی[۱۶۲]

حسین د خپل غزل تعریف داسې کوي:

د خــــــــتن نــــــــافې خوشــــــــبو یــــــــه شــــــــوې حســــــــېنه
پــــــــه دا لارې ســــــــتا غــــــــزل لا چــــــــې لــــــــــــونګ لاړ[۱۶۳]

**نظم**

د دې دور په پښتو ادب کې له نورو اصنافو سره سره د نظم صنف هم ډېر موندل کېږي. د دوست محمد خان دوستي د کتاب "گنجة الگوهري" د اصنافو په باره کې بدرالحکیم حکیمزی لیکي چې گنجة الگوهري سر تر پایه د نظم په اډانه ولاړ دی. د ده موضوع گانې هغه که دیني ښوونې مناجات، نورنامه یا حکایتونه دي، ټول د نظم په بڼه لیکل شوي دي. د یو ښه نظم لپاره ټول لوازمات په ټول کتاب کې په نظر راځي. د قصیدې، مثنوي او نورو توکو جوړښت یې له روایت سره سم پاللی او سنجولی دی."[١٦٤]

**مخمس او رباعي**

له نورو ادبي اصنافو نه علاوه د دې دور په شاعرۍ کې مخمس او رباعي هم په نظر راځي، لکه د حسین په دیوان کې دوه مخمسات او یو څو رباعیانې هم شاملې دي، نورې غزلې دي.

**مرثیه**

د سوات د پښتو ادب په موضوعي اصنافو کې مرثیې یا د ویر سندرې هم ډېرې لیدل کېږي. په مخزن کې هم ځای پر ځای د ویر د سندرو ذکر شوی دی، لکه دا شعرونه:

عزیـــــــزان بـــــــه دی د ویـــــــر ســـــــندرې وایـــــــي
کفـــن لـــره بـــه دې زیرمـــه د بښـــتي یـــا د چوتـــار کـــا[١٦٥]

ای کمبختـــــانو تاســـــــــو ویـــــر کـــــانېٔ د خپسرـــــــ
چـــې هیڅـــوک بـــه پـــاتې نـــه شي پـــه دې فـــاني نـــړۍ
یـــو پنـــد بـــه درتـــه وایـــم کـــــــه یـــې نغـــــــوږئ
دا دوه چـــارې مـــه کـــانېٔ یـــو د ویـــر بـــل د مشرـــکۍ
پـــــــه دا دوه اوازه خـــــــدای لعنـــــــت ویلـــــــی
یـــــــو د سرود بـــــــل د ویـــــــر پـــــــه خوشـــــــحالۍ[١٦٦]
سکـــــــه تـــا بـــه د لـــــــرگي د پاســـــــه وړینـــه
او عـــورتې خوینـــدې مینـــدې بـــه دې ویـــر کـــا پـــهٔ سرتـــورې[١٦٧]

د حافظ الپوري په دیوان کې هم مرثیې موجود دي، د میاکریم داد شهید په مرگ هغه داسې وایي:

يـــــو عـــــالم وې بـــــل شـــــهيد شـــــوې
عجيبـــــه در فـــــــــــريد شـــــوې
د کـــــانجو ميـــــا کـــــــريم داده
مـــــــانيولی لمـــــــــن ســـــتا ده[۱۶۸]

د مرثيې روايت په سوات کې ډېر مضبوط دی. په راتلونکو بابونو کې به هم د سوات د پښتو ادبي روايت په نورو دورونو کې يادونه وشي.

## نورنامه

د سوات د پښتو ادب په اول دور کې نورنامې هم ليکل شوي دي. دوست محمد خان دوستي د نورنامې فضيلتونه داسې بيانوي:

چـــې شروع مـــې نـــور نامـــه کـــړه ای يـــارانو
سر تـــر پايـــه مـــې پټـــې کـــــــــړله يودمـــه
هســـــې شـــــانته زه خوشـــحاله شـــوم کثـــير
لکـــه گـــل چـــې وي تـــازه پـــر لـــــه شـــبنمه
اوس پـــه دا رنـــگ خاصـــيت پـــه ښـــه ترتيـــب
پـــــه تصـــــديق سره د دې کتـــاب ليکمـــــــه
اول دا چـــې ځـــوک د مـــرگ پـــه تبـــه پريـــوځي
نـــور نامـــه ورکـــره وي پرتـــه محکمـــــــــه
چـــې ملائېکـــه ورکـــره ځـــي قـــبض دپـــاره
رښـــا وي د نـــور اسمـــــــانه سره سمـــــه
ملائېکـــه بـــه وائي چـــې زه نـــه پـــوهېږم خدايـــه
چـــې دا څـــه شـــغلې راخېـــژي لـــــه دې چمـــه
چـــې ســـتا نـــور دی کـــه نـــه بلـــه رښـــا ســـپينه
مـــا خـــبر کـــــړه ای د کـــل اشـــياء حکيمـــه
رب بـــه وايـــي زمـــا نـــور نـــه دی ملکـــه
دا رښـــا د نـــور نـــامې ده مکـــــــرمه
دا ســـړی کـــه اوس هـــر څـــو دی گنـــاه گـــار
نـــور د دې پـــه مـــخ گنـــاه يـــې ټـــول بخښـــمه

بـل دويـم داسـ‌ـــــي شـان دی خـــــــــاصيت
چــې نورنامــه سـاتي څـوک ځـان لـه ښـه همدمـه
کــه پــه لښــکر بانــدې روان شي جنــگ دپــاره
ســلامت بــه راشي کــــــور تــه روغ بــې غمــه
کـه پـه شـيبو گـــــولۍ وريـــږي بــې حسـابه
خــدائی بــه ئــې واږه جوســه وســاتي لــه خمــه
بـــل درېـــم خاصـــيت وايـــم داســـې وروره
کـــه څـــوک وايـــي نورنامـــه لـــه خپلـــه فمـــه
نـــور د دغـــه کـــس پـــه کـــــور کـــې تـــر قيامتـــه
هــيڅ جوســه بــه خــاورې نــه شي زيــات وکمــه[۱۶۹]

پـه دې شـعرونو کـې چـې د نورنـامې کـوم فضـيلتونه بيـان شـوي، لـه دې نـه د نورنـامو د مضـبوط روايـت پتـه لگـي. د دې فضـيلتونو پـه وجـه پـه سـوات کـې نورنـامې ليکلو ډېره ترقي کړې وه او په هر کور کې مختلف قسمه نورنامې به موجود وې.

## د الف نامو روايت

د سوات د اولني دور په پښتو ادب کې د الف نامو هم يو مظبوط روايت پاتې شوی دی. د دې روايت شروع د اخوند درويزه له الف نامې څخه شوې ده، بيا وروسته د اخوند کريم داد الف نامه هم ډېره مشهوره ده. د اخوند درويزه خپل کلام الف نامه ده ځکه مخزن د اکثرو نورو کتابونو ترجمه ده. دا الف نامه په نظم کې ليکل شوې ده. د هر حرف قطعه د بل نه جدا ده، داسې معلومېږي چې په بيت کې د يو شعر کمی يا زياتی په هغه زمانه کې څه عيب نه گڼل کېده، که دا عيب ترې وباسو نو د الف نامې اشعار د ښو ښو اشعارو سره څنگ په څنگ کېښوی شي. په دې الف نامه کې اخون درويزه خپل صوفيانه مسلک ته اشارې کړي او گڼې نازکې مسئلې يې چېړلي دي.[۱۷۰] د کريم داد الف نامه په علمي اعتبار سره ډېره درنه او ادبي اعتبار سره ډېره خوږه ده. د علم او ادب داسې مناسب او متناسب امېزش ډېر کم موندلی شي. د دې اکثر اشعار د پښتو په عالي ادبياتو کې د شمېرلو قابل دي، خصوصاً کومو اشعارو کې چې د مينې سوز او د جذبې شدت او د خفيف بحر ترنم سره يو ځای شوی دی.[۱۷۱]

## د ادب موضوعات

په اصل کې ادب د ټولنې عکاسي کوي. د خلکو ټولنيز ژوند ژواک په ادب کې په نظر راځي او دغه رنګ کومو خبرو ته چې په ټولنيز ژوند کې ډېر ارزښت ورکولی شي هغه په ادب کې هم بار بار راځي. په دې حواله که مونږ وګورو نو د سوات د پښتو ادب په دې دور کې د سماج له عکس سره سره غالبې موضوع ګانې مذهبي خبرې دي، ځکه مونږ د دې دور په ادب کې د پيغمبرانو او صحابه کرامو قيصې او نورې دينې مسئلې او موضوعات زيات وينو. مخزن او فوائدالشريعت خو په فضائلو او مسائلو ډېر بحثونه کړي دي. دغه رنګ ګنجة الګوهري او ديوان احمد دين طالب کې د پېغمبر پاک او د صحابه کرامو د ژوند واقعات بيان شوي، چې په هغې کې اکثر واقعات د حديث يا د اسلامي تاريخ په کتابونو کې نشته. تصوف هم د دې دور په ادب کې خپلې ځېلې مظبوطې کړې دي. د اخون درويزه او اخون کريم داد په الف نامو کې د تصوف باريکې مسئلې څېړل شوې دي،د اخون مياداد ديوان هم له تصوف نه ډک دی.

## بيت بازي او معمّې

د دې دور د پښتو ادب له مطالعې او تجزيې نه پته لګي چې په دغه وخت کې به زياتره ولسي شاعرانو له يو بل سره د شعر و شاعرۍ مقابلې هم کولې. رحيم شاه رحيم ليکي چې د بيت بازۍ او د شعر و شاعرۍ مقابلې به زياتره ولسي شاعرانو کولې.[۱۷۲] د دې بيت بازۍلپاره به اکثر عوامي شاعرانو د يو بل چاربېتې هم پټولې او په خپل کسر به يې ويلې. ولسي شاعر احمد دين طالب په يو شعر کې دې ادبي غلا ته داسې اشاره کړې ده:

احمـــــد دينـــــه ســـــتا اشـــــعار بـــــه خلقـــــو پـــــټ کـــــړه
خـــو پټيـــړي نـــه اوښـــان د چـــــــــا پـــه بـــده[۱۷۳]

او د بيت بازۍ دې مقابلو ته احمد دين طالب د شعر جنګ ويلی او د شاعرانه تعلي اظهار يې په دې شعر کې کړی دی:

چـــې لـــــــرمه حـــــــربه د شـــــعر جنـــګ کـــې
بـــل څـــوک نـــه يـــم احمـــد ديـــن طالـــب منيـــب يـــم[۱۷٤]

او بيا چا به چې پردې اشعار پټول هغوی ته يې داسې چېلنج هم ورکړی دی:

پـــه پـــردو چـــــــار بېتـــو کسرـــــ وايـــې چـــوره

گـــپ شـــــپيانو تـــــه د پکـــــې کـــــوې چـــــې شـــــېريم
پـــه مجلـــس کـــې بـــه ســـم نـــه شـــې ســـوال جـــواب کـــې
راشـــه ســـپينه بشـــــــــــــره اونيســـه افـــــــــتاب تـــه
کـــــه پـــــه غـــــورږ دې د طالـــــب د خلـــــې لغـــــات شي
چـــــې خجـــــل پـــــرې صومعـــــــــه د ســـــــومنات شي[۱۷۵]

عبدالعظيم صواتی اگر چې ولسي شاعر نه دی، خو هغه هم له شاعرانو سره د شعر و شاعرۍ د مقابلې په باره کې داسې وايي:

کـــــه ژونـــــدی شـــــوم د هجـــــــــــــــــران داوره بـــــچ
پـــرې بـــه نـــه ږدم شاعـــــــــران پـــه صـــوات پـــه چـــچ
خـــــدای دې ورک هغـــــه اشـــــعار کانـــــدې بـــــې يمنـــــه
چـــې بـــه کانـــدي مطـــــــــــــــربان وربانـــدې نـــچ[۱۷۶]

او دغه رنگ د شاعرانو د لاجوابه کولو لپاره به دوی معمې هم ويلې. د محمد اکبر يوه معمه دلته وړاندې کوو:

ماليــــــده لـــــــــې د چنـــــدڼ ونـــــه درازه
د بـــــاغوان پـــــه بـــــاغ ولاړه ده ښـــــېرازه
د دې ونـــې ځلـــور ښاښـــه گـــورې ځـــانگې
د دې بـــاغ پـــه همـــــه ونـــو کـــې ممتـــازه
د دې بـــاغ يـــې تيرســـو ديـــارلس خـــدمت گـــار وي
زيـــات وکـــــــم ورپکـــې شـــته دی لـــه اغـــازه
پـــه دا بـــاغ کـــې يـــو صـــندوق د دې بـــاغوان دی
دا قـــدرت ديـــه قـــــــــــادره بـــې نيـــازه
د دې بـــاغ باغـــــوان خـــبر پـــه دا صـــندوق دی
چـــې درســـت ډک دی لـــه ځـــو خاصـــه لـــه ځـــورازه
و خاصـــانو تـــه يـــې حـــال د صـــندوق اووې
در مرجـــان ورپکـــې شـــته هـــوره لـــه پيـــازه
هـــر يـــو تـــو کـــی يـــې خـــالي لـــه نفعـــې نـــه دی
تمـــامـــــي يـــوه غنچـــه ده ســـپړدې بـــازه

د چنـــدن پـــه خوشـــبو یـــې تمـــامي پـــردې
د صـــــورت نقشـــــه یـــــې ده نـــــادره ســـــازه
د چنـــــــدن هغـــــــه ښـــــــاخونه ځلـــــــور واړه
پـــه ځلـــور جـــو یـــه لـــوئیږي پـــر طنـــازه
بـــاز همائـــې شـــهباز کـــه ناســـته پـــه دا ونـــه
نـــه خفـــاش کارغـــه ټـــپس لـــــــه غلیـــوازه
ښـــاماران تـــرې جـــــارو تـــلي پـــېچ در پـــېچ دي
ځـــای پـــرې نشـــته د سوســـمار غونـــدې بـــېلمازه
دغـــه درې جویـــه ولـــې پـــه درې طـــرف دي
ځلـــــورم دی لـــــــوی دریـــــاب در و درازه
دا دریـــــاب د غـــــره لـــــه وېخـــــه دی وتلـــــې
دا خـــبره خـالـــــي نـــه ده لـــه مجـــــــازه
دا تحقیـــــــق زده د ریښـــــــتونو سر پرېکـــــــړو
سر پـــه دا دریـــاب غوټـــه لـــــره ســـــربازه
چـــې پـــه تشـــه دعـــــوه سر وهـــــې لـــه کـــانړو
لـــه نیـــاز منـــودې غـــرض نشـــته بـــې نیـــازه
کـــه د سر پـــه لېکـــه نـــه یـــې جـــان لـــه ورشـــه
پـــه کـــــــوتره بانـــدې سربائېلـــه شـــهبازه
دا بیـــان مشـــکله چـــــــار ده یـــو گـــــــرانه
درســـت جهـــان یـــې سر ســـین دی لـــه انگـــازه
کـــه معنٰـــې یـــې واکـــبرو تـــه چـــــــــا اووې
سرفـــراز دي شي دا یـــم د شـــاه لـــــــه رازه[177]

غالباً چې په دې معمه کې د ځینو الفاظو مطالب دا کېدی شي باغوان الله تعالیٰ، باغ دین اسلام ، د چندن ونه حضرت محمد، ځلور ښاخونه ځلور خلیفه گان، خدمتگار د غزوه بدر۳۱۳ مجاهدین، او نور صحابه کرام، صندوق قرآن کریم ـ ځلور جویه د فقهې ځلور مسلکونه، ښاماران علمائی دین او اهل شریعت ، رښتونې سر پرېکړي عاشقان د دین متین شهدائی عظام. [178]

د سوات یو بل شاعر خیري په یوه موقعه دا معمه ویلې وه:

ځلـــور مـــــې خالـــه ایښـــــي پینځــــه ټیکــــي ګرځـــوم
شـــپږ بـــه ګلونـــه بـــه وربـــل ورتـــه قطـــار کـــــړمه
مـــــــوذي بـــــــــه خـــــــوار کړمـــــــــــه [۱۷۹]

وایي چې خیري وړاندې لا نور شعرونه ویلي نه وو، چې په هغه محفل کې ناست یو مولانا پرې اعتراض وکړ، ورته یې وویل چې دا څه په خرافاتو اخته یې. د دې په ځای د خدای رسول صفت او ثنا ولې نه وایې. خیري په جواب کې ورته وویل چې په دې کې یوه خبره هم د شرعې خلاف نشته دا خو ما دین بیان کړ، خو ته پرې نه پوهېږې. خیري وضاحت وکړ چې د ځلور خاله نه مراد ځلور مذهبونه دي. پینځه ټیکي پینځه مونځونه دي. شپږ ګلونه شپږ کلمو ته اشاره ده او د موذي نه مراد شیطان دی.[۱۸۰]د احمد دین طالب معمې هم ډېرې مشهورې دي، خو جواب معلومول یې کافي ګران دي،لکه دا معمې:

درســـــته ورځـــې بـــــې لفظــــــي کلمـــــــــــــې وائي
کـــــه شاعــــر یـــــې نــــوم یـــــې او ښــــایه فــــي الحـــــال
راتـــــه دوو کســــــانو اووې دلـــــــــــــــــــــربا یـــــې
زمـــــونږ دوه ښــــځې راضــــې کـــــړه اوکــــــــړه خیــــال
ښـــځو و وې مـــــونږ یــــې میانـــــدې یـــــو نېـــک رائــــې
دغـــــه دواړه دي ځـــــامــــــــن زمـــــــونږه خیـــــال
تاســـــــف د احمــــــــد دیـــــــن طالـــــب ســـــبق دی
د ګبـــــین نــــــه دې شـــــیرین د مـــــخ عـــــرق دی
د ســــــــپلم پــــــــه پـــــــاښو پرېوتـــــــل ګردونــــــه
د نباتونــــــــه دې عــــــــدم کـــــــړل قندونـــــــــه[۱۸۱]

او په یوې بلې چاربیته کې داسې وایي:

طالب احمد دین وایي جواب راکړه که شاعر یې
خبره ده باریکـــــه
ځامن دوه خاوندان د خپلې مور شو مسافر یې
په توره شپه تاریکه. [۱۸۲]

د معمو یا اړونو فوکلوري روایت هم ډېر زوړ دی. په پښتنه ټولنه کې ماشومان هم دا شان منظوم او منثور اړونه یا معمې وایي.

# روښاني مکتب او د سوات پښتو ادب

## روښاني فکر

بایزید انصاري چې په پیرروښان مشهور و د روښاني تحریک مشر و. له کاڼي ګرم نه تر سوات باجوړ پورې د هغه مریدان موجود وو.[۱۸۳] بایزید انصاري د وحدت الوجود د نظریې قایل و. د پیر روښان سوچ او فکر او د هغه د تصوف فلسفه یو بېل مکتب دی چې په روښاني مکتب یادېږي. په دې مکتب کې ډېر د اوچتې پایې شاعران او ادیبان تېر شوي، لکه مرزا خان انصاري، ارزاني خویشکی، دولت لواڼی او نور. پیر روښان په دې خبره زور ورکولو چې بیعت صرف له کامل پیر نه پکار دی. د کامل پیر په لاس د بیعت تاکید د پیر روښان مرید ارزاني هم کړی دی، لکه چې وایې:

راشه فهم پر مولا کړه
که میري وړې له امیره
نن مقصود پر تا حرام دی
څو ور نه یشې تر پیره
دا کامل د حق وزیر دی
باد شاه نه وي بې وزیره[۱۸٤]

او بیا په بل ځای کې داسې لیکي:

ته کامل لره وردرومه
د کامل مونده ده کمه
د کامل په صحبت اوسه
تا به خلاص کاندي له غمه
ده څخه اب حیات دی
هم دی جام لري له جمه
د ده دل لوح محفوظ دی
خوله یې نون دی له قلمه[۱۸۵]

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول چې پیر روښان د وحدت الوجود د نظریې قایل و او همدغه وجه ده، پر ده چې کوم اعتراضات شوي، یو پکې دا هم دی. په دې باره کې

عبدالقدوس قاسمي ليکي چې:

بايزيد د خپل مسلک ووم مقام وحدت بيانوي او دا هاغه مقام يادوي چې بنده خپله هستي ورکه کړي او د خدای په هستۍ کې مدغم شي. دا خبره د بايزيد څه نوې نه ده، د وحدت الوجود قايل متصوفين په اسلام کې د پخوا راسي موجود وو.[۱۸۶]

بيا مخکې حافظ عبدالقدوس قاسمي د پير روښان د وحدت الوجود په باره کې داسې ليکي:

په کوم دور کې چې بايزيد وخت تېر کړی و، په دې دور کې په هند کې د وحدت الوجود فلسفه د هند په مسلمانانو صوفيانو کې ډېره مقبوله وه، خو د دې فلسفې تميز د هندوانو د ويدانت فلسفې نه کول مشکل وو او حقيقت دا دی چې دا فلسفه د اسلام خپله فلسفه نۀ ده؛ ځکه د بايزيد نه څه موده پس د جهانګير په دور کې مجدد الف ثاني شيخ احمد سرهندي د دې فلسفې ترديد وکړ او په کلکه سره يې ووې چې دا فلسفه له اسلام سره سمون نه خوري. مجدد صاحب د وحدت الوجود په مقابله کې د وحدت الشهود فلسفه بيان کړه.[۱۸۷]

د پير روښان د تصوف د سلسلې مطابق که يو طرف ته کامل پير وي نو بل طرف ته ناقص پير وي. د پير روښان په مسلک کې له ناقص پير نه د بېعت نه اخستلو سخت تاکيد شوی دی. ارزاني هم په خپله شاعرۍ کې له ناقص پير نه د ځان ساتلو وينا کړې ده.

ای زمـــــا د ديـــــن شـــــجاعه
نـــــن ګټـــــه د ديـــــن متاعـــــه
د نـــــاقص پـــــس روي مـــــه کـــــړه
د کامـــــل شـــــه پـــــه اطاعـــــه[۱۸۸]

او بيا بل ځای کې داسې وايي:

دا وينـــــا ده لـــــه مخلصـــــه
پرهېـــــز اوکـــــړه لـــــه حرصـــــه
د کامـــــل پـــــه امـــــر چـــــار کـــــړه
لـــــرې اوســـــه لـــــه ناقصـــــه
نـــــاقص د ديـــــن غلګـــــی دی
څـــــه فايـــــده د ديـــــن لـــــه لصـــــه[۱۸۹]

د ځینو تصوفي، مذهبي، سیاسي او نظریاتي اختلافونو له وجې د بایزید مخالفین را مینځ ته شول او د بایزید د تحریک په مقابله کې یو بل تحریک هم شروع شو.

## سوات ته د روښاني فکر راتګ

د بایزید د حلقه اثر په باره کې نصرالله خان لیکي چې د اکبر بادشاه د حکومت په زمانه کې بایزید انصاري چې په پیر روښان او پیر تاریک مشهور و، په وزیرستان، تیراه، پېښور، دیر، باجوړ او سوات کې په مذهبي او سیاسي رنګ کې اقتدار حاصل کړ او د خپلو مریدانو او عقیدت مندانو یې باقاعده مسلح لښکر جوړ کړ.[۱۹۰] دا هم ویل کېږي چې بایزید او اخوند درویزه په سوات کې هم مناظرې کړې دي، لکه عبدالغفور قاسمي چې لیکلي، چې یو وخت کې اخوند درویزه له سوات نه بهر و، نو بایزید سوات ته راغی او اخونددرویزه هم په ده پسې سوات ته راغی. بایزید وویل چې ما ته خپل کرامات ظاهر کړه او دا یې ورته وویل چې صبا د کاټیلۍ [مینګورې سره خوا کې د یو ځای نوم دی] په خوا کې د اوبو چینه به یا ته راوباسې او یا زه او بیا یې د شپې په شګو کې مشکونه پټ کړل او چې صبا یې هغه مشکونه په یو شل ووهل او اوبه ترې راووتې، نو د بایزید مریدان ډېر زیات خوشحال شول. اخون درویزه خلک د ده له مکر نه خبر کړل او بیا یې دوه رکعته نفل وکړل او د صفا اوبو یوه چینه الله پاک پیدا کړه. د بایزید د مکر نه چې خلک خبر شول نو دی بیا د سوات نه پېښور ته راغی.[۱۹۱]

سوات ته د پیر روښان د اثراتو راخورېدو په باره کې محمد اصف خان لیکي چې کله په ۱۵۸۵م کې د اکبر فوځ د راجه مان سنګ په مشرۍ کې کابل ته روان وو، نو په دې فوج له یو طرف نه یوسفزو او له بل طرف نه د پیر روښان لښکرو حمله وکړه او د شاهي فوځ اته زره فوځیان مړه شول. په دغه وخت کې اکبر باچا د پیر روښان خلاف د کاروایۍ فیصله وکړه. په همدغه زمانه کې د سوات او بونېر علاقې د پیر روښان تر اثر لاندې وې، نو ځکه اکبر دا اراده وکړه چې اوس د تورې په زور دا علاقې اخستل پکار دي.[۱۹۲] امپیریل ګزیټیر هم په یوسفزو کې د روښانیانو له لاسه د اړې ګړې ذکر کړی دی. یوسفزو چې سوات قبضه کړ، نو بیا دلته امن و امان راغی او ټولو خلکو د امن او خوشحالۍ ژوند تېرولو، خو یو ځل بیا هغه وخت شخړې او مسئلې پېښې شوې کله چې روښاني تحریک دلته اثر پیدا کړ. په دې باره کېImperial Gazetteerداسې لیکي:

Such degree of peace as obtains amongst independent pathan tribes was enjoyed by the Yusfazai and their neighbours, until a fruitful cause of dissension arose in Dir in the person of a religious reformer named Bazid, Called by his adherents the Pir-i-Roshan, Whose chief opponent was Akhund Darweza Baba, the historian of the Yusfazai.[۱۹۳]

ډاکټر سلطان روم په دې حواله د عبدلالاکبرخان اکبر، نصرالله خان نصر، عبدالغفور قاسمي، محمد اصف خان او د امپیریل گزیټیر له وینا سره اتفاق نه کوي او دا نه مني چې په سوات کې د روښانیانو دومره ډېر اثرات وو چې د هغوی د اثر ختمولو لپاره مغلو پر سوات لښکرې وکړې. هغه خپل دریځ داسې وړاندې کوي:

The contention and belief that Akbar's forces proceeded to Swat against the Roshniyahs seems to have no relevance. Neither Bayazid Ansari nor, afterwards, the Roshniyahs, gained support in Swat.[۱۹٤]

ترجمه: دا خیال چې د اکبر باچا فوځ د روښانیانو خلاف سوات ته راغلی و، له یو بل سره څه تعلق نه لري. بایزید انصاري او له هغه پس  نورو روښانیانو په سوات کې هېڅ قسمه حمایت حاصل نه کړی شو.

کله چې مونږ د دې ټولو حوالو جایزه واخلو نو مونږ دا قیاس کولای شو چې که په سوات کې د روښانیانو اثرات دومره زیات نه وو چې مغلو د هغې له وجې دلته خپل لښکر راولېږه، خو د روښانیانو لوی مخالفین چې د سوات او خواو شا نه وو، نو ضرور به دلته د هغه څه نه څه اثر و.

## د اخوند درویزه له پیر روښان سره  مخالفت

د پیر روښان زیات مخالفت به له سوات نه کېده. د ده لوی معارض او مخالف اخون درویزه و. اخوند درویزه له سوات نه د پیر روښان خلاف تحریک شروع کړ او په دې سلسله کې یې د پیر روښان د خیرالبیان د اثر ختمولو لپاره مخزن الاسلام ولیکلو او په دې طریقه یې د سوات خلک متاثره کړل.[۱۹۵] په هغه وخت کې په سوات او گېر چاپېره نورو علاقو کې د مختلفو خلکو د اثراتو په باره کې محمد عبدالقدوس قاسمي د خیر البیان په مقدمه کې داسې لیکي:

داسې معلومېږي چې پير بابا په بونېر کې و او اخوند درويزه صاحب به خپل اثر په سوات کې قايم کړی و. د شيخ عمر اثر رسوخ په سمه و، حمزه خان که د تاڼې د خانانو نيکه وي نو دی به ځکه د يوسفزو سره نه وي ملگری شوی چې هم به يې خپل زور ليدو او هم به د اخوند درويزه صاحب د تبليغ په وجه د روشانيانو د گمراهی قابل و.[۱۹۶]

محمد اصف خان په سوات کې د اخوند درويزه د اثراتو په باره کې ليکي چې د يو مذهبي عالم په حيث اخوند درويزه په سوات کې ډېر کار کړی دی. د ديني مدرسو طالبانو ته چې په سوات او نورو علاقو کې خلک ډوډۍ ورکوي دا طريقه اخوند درويزه متعارف کړې وه.[۱۹۷] اخون درويزه د سيد علي ترمذي (پير بابا) شاگرد و، په تذکرة الابرار و الاشرار او په مخزن الاسلام کې يې بايزيد انصاري د پير روښان پر ځای په پير تاريک ياد کړی دی. د درويزه استاد حاجي ملا محمد زنگي د پير روښان نوم په پير تاريک بدل کړ. [۱۹۸] په دې باره کې زيب سر داسې وايي:

ده تـــــــه پـــــــير تاريـــــــک ويلـــــــی پښـــــــتنو وه
پښـــــــتانه ده ډېـــــــر وژلي پـــــــه کينـــــــو وو
دی اکـــــــبر او پښـــــــتنو لـــــــره افـــــــت وه
دهـــــــر يـــــــو علتـــــــه جـــــــوړ د ده صـــــــورت وه[۱۹۹]

سيف الرحمان مسعود ليکي چې په بايزيد انصاري باندې د پير تاريک نوم په شهباز گړه کې ايښودل شوی و، خو تر اگرې پورې يې انگازې وکړې.[۲۰۰] اخوند درويزه د پير پير روښان په باره کې دومره زيات نفرت لرلو چې د دوی قتل کولو ته يې هم روا ويلي وو، لکه چې وايي:

اوس زمونږ په زمانه کې لکه دا کوک تاريک پېدا شۀ. دا خبرې يې انشاء کړې ولې ډېر افغانان يې وياسته له دينه. د دوي خون دی مباح شوی. نبي هسې دي وئېلي چې په مرگ يې سرفه مه کاڼۍ امته هر چې زما دين بدلوينه.[۲۰۱]

اخوند درويزه دا هم وايي چې په دې زمانه کې هر قسمه گمراهان پيدا شوي، خو پير تاريک په دې ټولو کې زيات دی[۲۰۲] او دا ورته هم وايي چې دی له خدايي د لارې غل دی.[۲۰۳] وايي چې ده ځان ته پير روښان لقب کېښودو او ما د خپل استاذ په حکم ده ته پير تاريک نوم ورکړو. وايي چې د ده د لاسه ډېر خلق دوزخيان شو چې زيات پکې افغانان

دي.[۲۰۴] د اخون درویزه او پیر بابا په هشتنگر کې د پیر روښان سره یوه مناظره اوشوه.[۲۰۵] د اخوند درویزه او پیر روښان شخړې ته چا سیاسي شخړه ویلي ده او چا ورته مذهبي. په دې اړه سیف الرحمان مسعود دا خیال لري چې دا په مکمله توگه یوه سیاسي مسئله وه او اخوند درویزه د مغلو په سازش د پیر روښان خلاف لگیا و. په دې اړه نور هغه داسې لیکي:

لنډه دا چې څه چې مغولو لیکلي دي اخوند درویزه وئیلي دي او څه چې اخوند درویزه وئیلي دي مغولو لیکلي دي دغه ځکه چې اخوند درویزه د پیر بابا او پیر بابا د مغولو ترجماني کوله او بایده هم داسې وو ځکه چې اکبر باچا د تیمور نمسی او پیر بابا یې خوربې وۀ چې دا دواړه تیموریان کیږي او دا دواړه د یوې گوتې غمي وو.[۲۰۶]

سیف الرحمان مسعود لیکي چې بایزید یو سیاسي عمل ته لاس اچولی و، کوم چې د ازادۍ انقلاب و او د سیاسي عمل عکس العمل هم سیاسي وي. له دې نه هغه دا ثابتول غواړي چې له بایزید سره د اخوند درویزه جنگ مذهبي نه، بلکې سیاسي و او دی دا هم وایي چې د پیر بابا او اخوند درویزه بابا د عکس العمل منطقي نتیجه هم دا وه چې د مغولو د حکومت د قائمولو لپاره یې کار او انتظار کولو او دا کوښښ یې کولو چې روهستان او په خصوصي توگه سوات او بونېر د مغولو په لاس کېږدي ځکه چې د مخکې نه دلته کې د بابر درې واړه حملې بې اثره شوې وې.[۲۰۷] تقویم الحق کاکا خېل د مخزن په مقدمه کې لیکلي، چې د اخوند درویزه له مغلو سره څه تعلق نه و، ځکه چې کله مغلو پر سوات او بونېر حملې کولې، نو هغوی اخوند درویزه نه پېژنده. د دې خبرې په جواب کې سېف الرحمان مسعود داسې لیکي:

حقیقت دا دی چې هر کله چې نوبت دې ته راورسېدلو چې د اکبر لښکرې دلته راشي او سوات او بونېر په زور او د فوځ په درنو تلفاتو لاندې کړي نو اخوند درویزه به خود هم مغولو نۀ پېژندۀ ځکه چې دۀ او پیر یې د درې څلوېښتو کالو په موده کې دلته د مغولو د حکومت د قیام د پاره لاره هواره نۀ کړې شوه خو که اخوند درویزه یې پېژندلو هم نو په ده یې هم لکه د زېن خان کوکه او حکیم ابوالفتح په شان سترگې پټې کړې.[۲۰۸]

کوم وخت کې چې اخوند درویزه له سوات نه بهر و، نو په دغه وخت کې پیر روښان سوات ته راغی.[۲۰۹] لکه زېب سر چې وایي:

د اخونـــــه بازيـــــد تنـــــګ شــــو بــــې حســــابه
پـــــه تېښـــــته ســـــوات تــــه راغـــــی ای احبابــــه
دلتـــــه هـــــم بازيـــــد پېــــدا شـــــهرت عظـــــيم کــــړه
پښــــــتنو د بازيـــــــد ډېـــــــر ادب تعظــــــيم کــــــړه
د هــــــر ځــــــای خلــــق راتلـــــه د بازيــــد لــــور تــــه
د بازيــــــد نــــــوم مشـــــهور شــــــه ښـــــکته پورتــــــه
ده پـــه ســـوات کـــې هـــم ښـــکاره کـــړې خپلـــې نخښـــې
د بـــــدعت نخښــــې يــــې خلقـــــو کړلــــې خوښـــــې
اخونـــــد خـــــبر د ده پـــــه دې احــــــوال شــــــۀ
چـــــې ســـــوات د تـــــاريکي پـــــه لاس پـــــاېمال شـــــه
اخونـــد هـــــم پـــــه ســـــوات کــــې کېښـــوده قـــــدم
شـــــــه اخونـــــــد د بازيـــــــد د پـــــــاره غـــــــم
د ســــــوات خلــــــق دوه فرقــــــې شـــــو سر تــــــر سره
يـــــــو اخونـــــــد او بـــــــل بازيـــــــد ای بـــــــرادره[٢١٠]

له اخوند دروېزه نه علاوه د هغه ورور ملا اصغر هم د پير روښان خلاف مبارزه کې پېش پېش و. په دې اړه هغه داسې ليکي:

واورئ يـــــارانو نبــــي ناســـــت پـــــر جماعـــــت وه
جبرائيـــل وه پـــرې راغلـــی لـــه ښـــه خدايـــه پـــرې رحمـــت وه
ده وې دا دی جبراېيــــل راغـــــی يـــــارانو لـــــه خدايـــــه
چــې زمــا پونســو کالــه تېــر شي امــت مــې بــه شي دري اويــا ځايــه
ګمراهــان پــه رنګــا رنــګ دي دا تاريــک پــه ګمراهــۍ کــې ډېــر قــوي دی
خپـــل دليـــل يـــې جبراېيـــل کـــړ عکـــس مـــن هغـــه د نبـــي دی
ای د ښــــه خــــدای بنــــدګانو د نبــــي د ديـــــن رهـــــبرو
دا تاريــک قلپــه ټنګــه شــوه پــرې د پاســه چــاپ يــې وواهــه د زرو
دا تاريـــــک چـــــې مـــــونځ کــــا اودس نــــه کــــا
دغـــه بـــه يـــې هـــم نـــه کـــړ ځکـــه دا خلـــق پـــرې بـــاور نـــه کـــا
تاريکـــــــــه چـــــــــار دې شــــــــــيطاني ده

لــــوی نقصـــان دې دغـــه چـــې لـــه عالمـــانو دې دښـــمني ده
ای خوکـــه ملعونـــه لـــه عالمـــانو دښـــمني مـــه کـــړه
جلـب د عالمـانو اونیسـه عالمـان بـه دې پـه روغـه لار رسـیده کـا
دا تاریـــــــک یـــــــو لعنتـــــــــي دی او ملعـــــــــون دی
لـــه دیـــداره یـــې منکـــر دی پـــه ناحقـــه یـــې ژونـــدون دی
خـــود روي کـــړې مـــه کـــړه پـــه غضـــب بـــه گرفتـــار شـــې
ای تاریکـــــــه نـــــــا تمامـــــــــه ملعونـــــــــه
غـــوچ څـــه ســـحر دې وکـــړ چـــې مریـــدي دې کـــړي نجونـــه[۲۱۱]

پروفیسر ډاکټر یار محمد مغموم د بایزید انصاري او د اخون درویزه د اختلافاتو په باره کې لیکي چې اخون درویزه د بایزید انصاري معاصر او د هغه سخت مخالف و. که څه هم بایزید (پیر روښان ) د خپلې غیر معمولي صوفیانه عقیدې په وجه له مخکې نه نوم خور کړی و، خو د اخون درویزه د مخالفت په وجه د هغه په ادبي ، مذهبي او سیاسي شهرت کې نوره هم اضافه وشوه. پیر روښان چې د خپل غیر معمولي شخصیت او عقایدو په بنیاد په معاشره کې کوم اثر خور کړی وه اخون درویزه د دغه اثر د ختمولو د پاره خپلې ټولې مذهبي او سیاسي تجربې وازمایلې ـ اخون درویزه د اسلامي فقهې په حقله د علم لرلو او د خپل غېر متنازعه شخصیت په وجه د راسخې عقیدې لرونکیو تر مینځه د عزت مقام لرلو ـ نو ځکه د بایزید د عقایدو د غندلو د پاره دهٔ یوه ډله پیدا کړې وه .[۲۱۲]

## له اخوند درویزه وروسته په سوات کې د روښانیانو خلاف رد عمل

لکه څنگه چې پښتو ادب ته په مجموعي توگه د روښاني او درویزه مکتب شخړې فایده رسولې ده دغه رنگې په سوات کې د پښتو ادب په وده کې د دې تحریک هم لاس دی. اخون درویزه چې کله د خیرالبیان په جواب کې مخزن الاسلام ولیکه، نو دې کتاب په ټوله پښتونخوا او په خصوصي توگه په سوات کې د یو معتبر علمي او درسي کتاب ځای بیاموند او د سوات خلکو له دې کتاب سره ډېره مینه لرله او د درویزه مکتب په نوم باندې دلته ډېر لیکوالان او شاعران پیدا شول. په درویزه مکتب کې د اخوند درویزه اولاد او اخوند قاسم پاپین خېل او نور شامل وو. له مخزن الاسلام سره چې د خلکو کومه مینه وه هغه د خوشحال خان خټک له دې شعرونو څخه څرگندېږي:

کـــــــه ژونــــــــدی شي افلاطـــــــــون
ســـــــوات کـــــــې اونیسيـــــــ ســــــکون
اکوزیـــــــــو تــــــــه بیـــــــان کـــــــا
کتابونـــــــــــــــــــــه د فنــــــــــــــــــون
هدایــــــــــــــــــه کفایــــــــــــــــه دواړه
پـــــــه پښـــــــــتو کانــــــــدي مـــــــوزون
دوی بــــــه وایـــــــي چـــــــې دا ثـــــــه دي
مخـــــــزن ښـــــــۀ دی د اخــــــــون[213]

او په یو بل ځای کې خوشحال خان خټک داسې وایي:

مخـــــرن د درویـــــزه د میـــــا نـــــور شـــــیخي پـــــیري
الثالـــــث بـــــا الخیـــــر د حمـــــزه خـــــاني مـــــیري
دا درې توکـــه ډېـــر قـــدر ډېـــر عـــزت لـــري پـــه ســـوات کـــې
و خـــــدای وتـــه ښـــکاره دي ویـــل نـــه شي پـــه ځـــیري[214]

او په  بل ځای کې داسې وایي:

دوه کـــاره دي پـــه ســـوات کـــې کـــه خفـــي دي کـــه جـــلي
مخـــــزن د درویـــــزه دی یـــــا دفـــــتر د شـــــیخ مـــــلي [215]

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول، چې د بایزید روښان مخالفت له سوات نه شروع شوی و، نو همدغه وجه ده چې د اخوند درویزه او د هغه له اولاد وروسته هم د سوات په تاریخ کې پیر روښان په ښه نوم نه دی یاد شوی. عبدالغفور قاسمي په تاریخ ریاست سوات کې د پیر روښان په باره کې لیکلي چې د کانیې ګرم په ارمړو کې عبدالله نومې یو سړی و. د هغه ځوی بازید چې بیا په تاریکي مشهور شو یو ځل د اسونو د سوداګرۍ لپاره سمرقند ته تلی و، اسونه یې واخستل او بیا هندوستان ته راغی او له ملا سلیمان کالنجري نه یې طریقه وکړه او د هغه د تناسخ د عقایدو قایل شو او بیا یې د هغه د فاسدې عقیدې تبلیغ شروع کړ.[216]

قاسمي په بل ځای کې د ده په باره کې داسې لیکي:

غرض دا چې د شریعت په مخالفت او د اسلام د احکامو په توهین کې د پوره حصه اخستې وه. مریدان یې هم ښه ازاد شو او اعلانیه فسق و فجور د ده په

مریدانو کې شروع شو.[۲۱۷]

یو بل ځای کې داسې لیکي:

حضرت اخوند درویزه چې په دغه زمانه کې یو زبردست عالم باعمل وه. مېدان ته راغی پیر تاریک پر شه، اخوند درویزه ورته ډېر نصیحت وکړ لېکن په دي مردود باندې هیڅ اثر او نه شه. ده ځانله د شوکمارو، لونډانو او بدمعاشانو یوه زبردسته ډله پېدا کړه او د هشتنگر نه سوات ته راغی.[۲۱۸]

بل ځای داسې لیکي:

د ده نه پس د ده ځامنو هم څه بلوې کړې وې، لیکن هغوی هم د پښتنو د لاسه تباه شو. د اخوند درویزه برکت وه چې دا ناپاک جماعت تباه شو او د هغوی عقاید اخوند صاحب د خلکو د زړونو نه وویستل.[۲۱۹]

د پیر روښان د ځامنو په باره کې اخوند درویزه لیکي چې:" د تاریک پینځه ځامن وو شېخ عمر، نورالدین، خیرالدین، کمال الدین، جلال الدین او بیا مخکې لیکي چې کله پیر تاریک په دوزخ شو یعنې مړ شو، نو شیخ عمر په جهان غږ وکړ چې زه بادشاه شوم.[۲۲۰]

احمد دین طالب چې پینځه دېرش کاله یې په سوات کې تېر کړي وو او د شاعرۍ زیاته برخه یې له سوات سره تعلق لري هغه پیر تاریک او د هغه مریدان په یو شعر کې داسې یادوي:

پــــه دا څـــــه کــــه پـــــه خلــــه نــــرم لکــــــه مــــــوم وي

پــــــــه زړه ســــــــخت وي هـــــــر مریـــــــد د تـــــــاریکي[۲۲۱]

د پیر روښان (بایزید انصاري) په باره کې حلیم سرحدي لیکي چې د هغه مذهبي عقیده د وخت علماء حق له شرعې خلاف گڼله او بیا وړاندې لیکي چې بایزید که په حقه وی، نو دوی به کامیاب شوي وو، ځکه چې حق چرته هم نه ناکامه کېږي. پیر بابا او د هغه مرید اخون درویزه د تاریکي خلاف ملا وتړله او د مناظرو او معارضو نه خبره تر تورې ورسېده. بایزید شکست وخوړه او د یوسفزو د سیمې نه د روښاني تحریک ځېلې اوختې.[۲۲۲]په موزیر نامه کې زېب سر د پیر تاریک په باره کې لیکي چې ابتداء کې هغه برزگي دیانت او امانت اختیار کړه او همېشه به په مزکه رو رو او پیاده گرځېده، چې مېرۍ ازار نه شي او بیا چې د دولت او طاقت خاوند شه نو د مسلمانو په سینو او سرونو ئی اسونه زغلول شروع کړه.[۲۲۳]بایزید سوات ته راغلی و او دلته یې هم ډېر مقبولیت حاصل کړی و،

خو بیا چې اخون خبر شو، نو له دې ځای نه بیا هغه لاړه، لکه چې زېب سر وایي:

او اخـــــون اوکـــــړه اعـــــلان چـــــې زه گـــــواه یـــــم
د بایزیـــــد پـــــه حـــــال خـــــبر زه خـــــوا مخـــــواه یـــــم
بایزیـــــد تـــــه بـــــه هـــــر چاروشـــــن ضـــــمیر وې
جـــــاهلانو بـــــه هـــــم ده تـــــه پـــــیر کبـــــیر وې
اخـــــون خـــــوښ کـــــړه تـــــاریکي[۱۳] د بایزیـــــد نـــــام
د دې نـــــوم وشـــــه شـــــهرت پـــــه خـــــاص و عـــــام
لـــــه اخونـــــه بایزیـــــد تنـــــگ شـــــه بـــــې حســـــابه
او پـــــه تېختـــــه ســـــوات تـــــه راغـــــی ای احبابـــــه
دلتـــــه هـــــم بایزیـــــد پېـــــدا شـــــهرت عظـــــیم کـــــړۀ
پښـــــتنو د بایزیـــــد ډېـــــرادب تعظـــــیم کـــــړه
لـــــه هـــــر ځـــــایی خلـــــق راتلـــــه د بایزیـــــد کـــــور تـــــه
د بایزیـــــد نـــــوم مشـــــهور شـــــه ښـــــکته پورتـــــه
ده پـــــه ســـــوات کـــــې هـــــم ښـــــکاره کـــــړې خپلـــــې نخښـــــې
دبـــــدعت نخښـــــې یـــــې خلقـــــو کړلـــــې خوښـــــې
اخـــــون خـــــبر دده پـــــه دې احـــــوال شـــــه
چـــــې ســـــوات د تـــــاریکي پـــــه لاس پـــــایمال شـــــه
اخـــــون هـــــم پـــــه ســـــوات کـــــې کېښـــــوده قـــــدم
شـــــه اخـــــون هـــــم دبـــــایز یـــــد د پـــــاره غـــــم[۲۲۴]

د سـوات د پښـتو ادبي تـاریخ د نولسـمې او شـلمې پېـړۍ لـه دې حوالـو نـه پتـه لگـي چـې تـر دغـه وخـت پـورې د بایزیـد خـلاف د خلکـو او لیکوالانـو پـه زړه کـې نفـرت موجـود و. کـه پـه دې مـونږه قیـاس وکـړو نـو پتـه لگـي چـې د اخونـد درویـزه او بایزید انصاري په ژوندانه به د سوات د خلکو د بایزید په باره کې ډېر نفرت و.

---

[۱۳] د اخوند درویزه استاذ حاجي الحرمېن ملا محمد چې په ملا زنگي پاپیني مشهور و، د پیر روښان نوم پیر تاریک کېښودو ـ( قاسمي، محمد عبدالقدوس، (مقدمه) خېر البیان تصنیف د بایزید انصاري، پېښور، پښتو اکیډمي، ۱۹٦۷، مخ: ۲۷)

## په سوات کې د پیر روښان په باره کې د سوچ بدلون

له دې تاریخي حوالو پته لګي چې د اخوند درویزه له زمانې راواخله او د ریاست سوات تر دور پورې په تاریخونو کې د پیر روښان په باره کې سپکې سپورې لیکل شوي، خو د وخت له تېرېدو سره بیا د سوات د خلکو په سوچ کې هم بدلون راغلی دی، لکه د سوات یو شاعر د "پیر روښان" د سرخط لاندې په یو نظم کې داسې لیکي:

د شر پـــــه لاره کـــــې چـــــې مـــــړ شي دا شـــــهید وي د دوی
چـــــې وروښـــــه وژني نـــــو هغـــــوي تـــــه یـــــې غازیـــــان وویـــــل
د محنـــــت کشـــــو هنرمنـــــدو نـــــوم پـــــه بـــــده اخـــــلي
دوي د وطـــــن دې غاصـــــبانو تـــــه نېکـــــان وویـــــل
خلقـــــه د کفـــــر د فتـــــوو بـــــاران پـــــرې اووروئ
روغـــــاني ځـــــان تـــــه د نـــــن دور پـــــیر روښـــــان وویـــــل[۲۲۵]

او یو بل ځای کې د "بایزید" د سرخط لاندې په یو نظم کې داسې لیکي:

دوی بـــــه ســـــبا د بایزیـــــد شـــــان قایـــــدان یـــــادېږي
نـــــن چـــــې پـــــرې مـــــونږه د الحـــــاد، کفـــــر حکمونـــــه کـــــوو
همـــــېش مـــــو کـــــړې دی افســـــوس د حـــــق شـــــناس پـــــه کـــــردار
وروســـــتو پـــــه هغـــــه افسوســـــونو افسوســـــونه کـــــوو
چـــــې نظـــــام نـــــه وي روغانیـــــه انتظـــــام بـــــه وي خـــــام
نـــــوې دنیـــــا تـــــه بـــــه زاړه حکایتونـــــه کـــــوو[۲۲۶]

د دې ټولو خبرو نتېجه دا راووته چې د روښاني مکتب خلاف تحریک له سوات نه اخوند درویزه شروع کړی و، نو همدغه وجه ده چې د شلمې پېړۍ تر اخره دغه د مخالفت جذبه د سوات په پښتو ادب او تاریخ کې په نظر راځي، البته په یویشتمه پېړۍ کې لږې ډېرې داسي حوالې په لاس راځي چې د پیر روښان په باره کې د خلکو سوچ او فکر کې بدلون راغلی دی.

## په فوکلور کې د تهذیب او ثقافت عکس

فوکلور یا ولسي ادب خو په حقیقت کې د زمان او د مکان له قید نه ازاد وي، خو بیا

هم په فوکلور کې د هر دور او هرې علاقې خپله برخه وي. په پښتو فوکلور کې له ټولو مشهور صنف پښتو ټپه ده. ډېرې ټپې داسې موجود دي چې په هغې کې د سوات د مخصوص تهذیب او ثقافت ذکر شوی دی. دلته د بېلګې په توګه یو څو ټپې ذکر کېږي، په کومو کې چې د سوات ذکر شوی یا د سوات د یوه کلي ذکر پکې شوی او یا له سوات سره د تعلق لرونکي یو بل څیز ذکر لري، لکه په سوات کې د پښتو په دور کې به ډېر قبایلي جنګونه کېدل، د دې جنګونو ذکر په دې ټپو کې شوی دی:

د پجي ګرام په پورې کس کې
په وینو سره شول د جوارو بمبلونه[227]
د پجي ګرام ملک ته وایه
ډېرې دې کونډې کړې نور مه اخله ازارونه[228]

د سوات خلک به د پیرانو، ولیانو او بابا ګانو قبرونو ته تلل، په دې کې به زیات خلک د پیر بابا قبر ته تلل او د خپلو مرادونو د ترسره کولو دعاګانې به یې ترې غوښتلې، لکه په دې ټپو کې یې چې ذکر شوی دی:

پورته زیارته رارسېږې
د سوات د سره په غرض راغلی یمه[229]
د پیر با با لارې دي سختې
د ګلو لختې زه پرې ستا د پاره ځمه[230]
راځه چې پیر بابا ته لاړ شو
ډېر زورور دی سوال په لارې قبلوینه[231]
راځه چې پیر بابا ته لاړ شو
سوال به پرې دواړه سره کړو چې قبول شینه[232]
جانانه ستا د زړه د پاره
پړی په غاړه د بونېر بابا له ځمه[233]

اصل کې خو سوګند یا قسم د الله پاک په نوم سره کېږي، خو له پیر بابا سره خلکو دومره عقیدت لره، چې د هغه په نوم به یې سوګندونه هم کول، لکه په دې ټپه کې:

خال خو دې ما وران کړی نه دی
په پیر بابا به درته اوخورم سوګندونه[234]

او په پیرانو کې د پیر بابا یو خپل مقام و. د پیر بابا په مقابله کې بل بابا یا پیر چا برداشت کولی هم نه شو، لکه چې وایي:

پیره بابا په ډاګ یې وله
په تا تېرېږي دېوانه بابا له ځینه[235]

زیارتونو ته به چې کله خلک تلل نو پراته‌ې، ډوډۍ یا نور څه څیزونه به یې په قبر کېښودل، لکه په دې ټپه کې چې ذکر شوي دي:

خلک زیارت له پراتې وړي
زه د اشنا د پاره غونډه ډوډۍ وړمه[236]

چې څوک به بیمار و، نو هغه به د خپل صحت د سوال کولو لپاره هم پیر بابا ته ته، لکه چې وایي:

ویشتلی ما ېې روغ به نه شې
که د بونېره پورې وکړې زیارتونه[237]

د سوات او د بونېر د خلکو حسن هم مشهور دی، لکه خوشحال خان خټک چې وایي:

د خوشحال خټک خو ښکلی مخ پکار دی
که د سوات که د پکلۍ که د بونېر وي

دغه شان په یوه ټپه کې راغلي دي:

د حسن ساری یې څوک نشته
که سوات بونېر ورپسې دواړه وغواړمه[238]

او یا لکه دا ټپه:

دا سوات د سرو ګلو چمن دی
نه ترې وتی شم نه مې زړه صبر کوینه[239]

او یا لکه دا ټپه:

د سوات بونېر ممانې راوړه
نورې ممانې ماله خوند نه راکوینه[240]

د سوات په لوړو دنګو غرونو کې داسې بانډې دي، چې هلته د ګرمۍ په موسم کې مال ساتونکي خلک ځي. د دغو خلکو د ښایست او د دې بانډو ذکر هم په پښتو ټپو کې موندل کېږي، لکه د سپین سر، درال او د سېدګۍ د بانډو ذکر چې په دې ټپو کې شوی دی:

يار مې په لوړو غرونو خيژي
د سر شمله يې د سپين سر شمال وهينه[۲۴۱]
ديدن د گټې په سر کېږده
زه د درال سېدگۍ له ځم در وا به پې خلمه[۲۴۲]
د يار مې څه خوږې قيصې دي
چې د درال د لارې مل مې وې مئېنه[۲۴۳]

له ټپو علاوه د ولسي ادب په نورو اصنافو کې هم د سوات د تهذيب او ثقافت عکس موندل کېږي، لکه څنگه چې په دې باب کې د تصوف تر سر خط لاندې په تفصيل سره ليکل شوي، چې په سوات کې د تصوف يو مضبوط روايت موجود و. دا دومره مضبوط روايت و چې په ولسي ادب کې هم د دې اثرات ښکارېږي، لکه عنايت الرحمان "د سوات پخوانۍ قيصې" نومې کتاب کې د سوات د مختلفو صوفيانو يعنې پير بابا، اخوند دروېزه بابا او سيدو بابا د پيرۍ او كراماتو متعلق ولسي قيصې ليكلي دي. "د يو ناڅاپه مېلمه" تر سرليک لاندې په يوه قيصه کې ليکي چې د شپې يو نا اشنا سړی سوات سيدو شريف ته د سيدو بابا کوټگۍ کې په خپل يو مخصوص کيفيت کې حاضر شو او بيا غائب شو. د مريدانو په تپوس سيدو بابا وويل چې دا د سهوان شريف شهباز قلندر و او هم په دغه وخت چې کله مريدانو له هغه سره د ملاقات او له هغه نه د دعا غوښتلو خواهش ظاهر کړ، نو سيدو بابا سترگې پټې کړې او ويې ويل چې هغه د اټک سره د اباسين نه پورې وتی دی.[۲۴٤] د پير بابا د يوه لمسي ميا افضل بابا متعلق په يوه بله قيصه کې ليکي چې هغه په هندوستان کې د يو توپ مخې ته په دې يقين سره ودرېده چې الله به زما حفاظت کوي او چې کله توپ وډزولی شه نو هغه د گولو په ځای اوبه وشيندلې او په دې خبره د هغه مريد وويل چې زما پير ته د غسل ضرورت و.[۲٤٥] او د پير بابا او اخوند دروېزه بابا په يو روايت کې ليکي چې اخوند دروېزه بابا د پير بابا نه د غوا په ښکر کې پټ شوی و او دغه رنگ پير بابا د هغه نه د زمکې په ترخ کې پټ شوی و.[۲٤٦]

له ټپو او ولسي کيسو علاوه ځينې متلونه داسې شته چې د سوات ذکر په څه نه څه حواله لري او دغه رنگ مونږ ترې د سوات د تهذيب او ثقافت اندازه لگولی شو، لکه د نمونې په توگه دلته يو څو متلونه وړاندې کوو:

ادۍ په سمه پرتوگ يې په سوات[۲٤۷]

بر سواتي ته چې خان ووی او بونېروال ته پاچا نو نیم مرض یې ښه شي.[248]

چې د سوات یې خوړ لکه شات یې[249]

چې د سوات یې ډک له فسات یې[250]

چې سوات خورې نو بد یې مه وایه[251]

د سوات اوبه په لارې ځي او خلک یې بې لارې ځي[252]

د سوات تبي کاڼی د سوات په پېټی. کې غورځنگ وهي[253]

د سوات خلک پردو غمونو وخوړل[254]

د سوات خلک په جر مست دي[255]

د سوات خلک زاړه شو خو په وریژو ماړه نه شو[256]

د سوات ژرندې او د بونېر کندې[257]

له سوات نه خو لېونی سپی هم نه وځي[258]

سوات تور دی خو موړ دی[259]

سوات دی د مزو، راځئ پرې ملېزو[260]

سوات موړ دی خو سپور دی، بونېر وږی دی خو غوړ دی[261]

یو څو نور متلونه هم دي چې د سوات په ټولنه کې ډېر مشهور دي، اگر که په هغو کې نېغ په نېغه د سوات ذکر نه دی شوی، خو د دې ټولنې خصوصیات پکې بیان شوي دي، لکه د نمونې په توگه دا متلونه:

چرگ خو یو مارغه دی چې چا ونیو د هغه دی[262]

خدای خبر دی چې تره کافر دی[263]

چې نن سپک شي سبا ورک شي[264]

غر ننگ وخوړ دامان قلنگ وخوړ[265]

نیستي پاکه بادشاهي ده، خو شته من یې له خونده خبر نه دي[266]

پیر نه الوځي مریدان یې الوځوي[267]

د ولسي ادب د مختلفو صنفونو له دې حوالو نه په اسانه اندازه لگېدلی شي چې د سوات په ولسي ادب کې د سوات تهذیب او ثقافت څومره خوندي او محفوظ پروت دی او دا په مختلفو اړخونو څېړنو ته اړتیا لري.

## شاعري او د عوامو عکس العمل

په شاعرۍ کې دوه قسمه جذبات زيات غالب وي، يا د حقيقي مينې جذبات وي او يا د مجازي. د مجازي مينې شاعري به عموماً ډمانو له ټنګ ټکور سره ويله، له دې وجې نه شاعري يو قسم ته ډمتوب ګڼل کېده او چونکې ډم ته په پښتنه معاشره کې په سپک نظر کتل کېږي، نو له دغې وجې نه به شاعرۍ ته هم په دروند نظر نه شو کتلی او ځکه به اکثرو شاعرانو پټه شاعري کوله. تواريخ حافظ رحمت خاني کې هم ذکر دي چې ډمانو به شاعري د سرود سره ويله.[۲۶۸] احمد دين طالب هم په خپلو شعرونو شرم محسوسوي:

قــــدردان کــــه مــــې هــــر څــــو د عشــــق ډېــــر دي
خــــو لــــرم زه احمــــد ديــــن پــــه خپــــل اشــــعار عــــار[۲۶۹]

عبدالعظيم صواتی هم دا خبره داسې کوي:

څــــوک بــــه څــــه زمــــا لــــه حالــــه خــــبر مــــومي
چــــې پــــه غــــلا لــــيکم لــــه خلقــــو خپــــل اشــــعار پــــټ
چــــې اګــــاه دې څــــوک پــــه ځــــان نــــه کــــړه هيڅکلــــه
افــــــــرين شــــه ای عظيمــــه ســــتا پــــه کارپــــټ[۲۷۰]

او په بل ځای کې داسې وايي:

پــــــه نامــــــه د شاعــــــرۍ زه شرمېدلــــــم
ځــــان مــــې نــــه ښــــکاره کــــا وه پــــه ســــپين ميــــدان[۲۷۱]

مخدوم تصدق احمد ليکي چې د غټو کورنو خلکو به په ګډا او موسيقۍ کې برخه نه اخسته .[۲۷۲]مطلب دا شو چې موسيقي يا ګډا نڅا د هر چا خوښه وه، خو د څه خاصو ټولنيزو قدغنونو له وجې به ځينو خلکو په دې کې نېغ په نېغه حصه نه اخسته.

## پر ادب د نورو ژبو اثرات

د سوات پر پښتو ادب زيات اثرات د فارسۍ او عربۍ دي. له دې علاوه د هندۍ او ګوجري [ګوجرو] ژبې اثرات هم لږ لږ شته. د دې دور په پښتو ادب د عربۍ او فارسۍ اثرات ډېر واضح دي. د فوائد شريعت متن سره له دې چې په پښتو کې دی خو د نولسو بابونو نومونه يې په فارسۍ کې ورکړي دي. د دې دور شاعرانو د فارسۍ عربۍ او پښتو ژبو په شريکه شاعري هم کړې ده. محمد اکبر يو غزل په پينځو ژبو کې ليکلی دی، د هغې په

باره کې محمد نواز طائر داسې لیکي:

> غالبا چې د سوات اکبر وړومبی پښتون شاعر دی چې هم په یو غزل کې یې د پینځو ژبو یعنې پښتو، عربي، فارسي، هندي او گوجري ژبو لغات ډېر په بې تکلفۍ سره استعمال کړي دي او نه یواځې دا چې په عربۍ او فارسۍ ژبه د عالمانه قدرت لرلو ثبوت یې ورکړی دی، بلکې دا یې هم ښکاره کړې ده چې په دغه سیمه د هندۍ او گوجرو ژبو کوم عام رواج وه د هغوی د زدکړې نه یې هم ځان غافل کړی نه وه . دغه شان یې هم د خپلې قادارالکلامۍ او عالمانه تبحر ثبوت پریښی دی او هم یې د ژبو په حقله د پښتون وگړي رواېتي روادرۍ مثال قایم کړی دی."[۲۷۳]

د سوات د پښتو ادب په وړومبي دور کې لکه څنگه چې وړاندې ذکر شو په پښتو ژبه او ادب د فارسۍ، عربۍ، هندۍ او یا د گوجرو ژبې اثرات وو، خو بیا په وروستنو دورونو کې د فارسۍ، عربۍ، هندۍ او گوجرو اثرات ډېر کم شوي یا ختم شوي دي او د دې پر ځای د انگرېزۍ او اردو اثرات په نظر راځي چې په دغه اثراتو به په خپلو متعلقه بابونو کې بحث کولی شي.

## تصوف

په پښتو ادب کې تصوف یوه زړه موضوع ده. په پښتو ژبه کې روښانیانو د تصوف لویه ذخیره پرېښودې ده،[۲۷٤] خو له روښانیانو علاوه د دروېزه مکتب صوفیان او ولیان هم موجود دي. د سوات په معلوم پښتو ادب کې د تصوف باریکې مسئلې او نکتې اخون دروېزه په مخزن الاسلام کې چېړلي دي. اخون دروېزه چې د سلوک په لار روان شه او پیربابا ورته د شرایطو د تلقین نه پس د ذکر تلقین شروع کړ، نو د کامل پیر په وجه یې په ډېر لږ وخت کې ډېر څه وموندل، نو بیا ورته پیر بابا وویل چې اوس د تصوف په علم کې هم کوښښ وکړه چې خپل ایمان او د ډېرو نورو مسلمانانو ایمانونه له زوال نه وساتې او کمزوري مسلمانان د تشبیهـ او تعطیل نه بچ کړې او دا یې ورته هم وویل چې نن صبا ډېر اهل هوا په دې علم کې فکر کوي.د دې علم په اشاراتو او عباراتو نه پوهېږي، نو د خدای په پېژندو کې غلط شي.[۲۷۵] ابراهیم[۱٤] د تصوف رازونو طرف ته داسې اشارې کړي دي:

[۱٤] ابراهیم د سوات د مشهور بزرگ پیر پرنده صیب په اولاد کې تېر شوی دی .د اخون دروېزه د سبک په پیروکارانو کې ښکلی لیکونکی دی .(افضل رضا، پټ ستوري، مخ: ۴۹۲)

چــــــې خــــــبر پـــــه اسرار نــــــه شي د هــــــو هــــــو
پــــه هغــــو ړیــــرو د هــــر چــــا شــــه تــــو تــــو
بــــــې افتابــــــه زره چــــا لیــــــدلې نــــــه ده
ښــــــکاره وي د نمــــــر پــــــه مــــخ سر یــــــو یــــــو[۲۷۶]

په مخزن الاسلام کې د اخون درویزه د صوفیانه مسلک مسئلې څېړل شوې دي، دا خبرې هغه زیات تر په خپلې الف نامه کې بیان کړې دي. هغه د طریقت لپاره شریعت ډېر لازم ګڼي. هغه د تصوف لپاره شریعت او د سلسلې تسلسل لازمې ګڼي، لکه چې وایي:

هــر چــې بــې پــیره پــیري کــا هــم مریــد مســتقیم نــه کــا
د ایمــان ســپینکی کــاروان یــې شــیاطینو دی وهلــی
هغــه پــیردې پــیري کانــدي چــې پــه شرع مســتقیم وي
هــــــم یــې اذن لاس پــه لاس لــــه نبــي رخــه راوړی[۲۷۷]

لـه اخونـد درویـزه وروسـته پـه سـوات کـې د تصـوف د مختلفـو سلسـلو منـونکي موجود وو او د خپلو پیرانو په سلسله به روان وو.

## په سوات کې د تصوف مروجې سلسلې

له چشتیه سلسلې علاوه دلته یوه بله سلسله نقشبندیه هم موجوده وه. د میا کریم داد زوی او د اخوند درویزه بابا نمسی میا نور محمد د خپل پیر شېخ ادم بنوري نه په لاهور کې په سلسله نقشبندیه کې بیعت کړی و.[۲۷۸] مصطفی محمد چې د میا کریم داد نمسی او د میا نور محمد زوی وه هم د نقشبندیه طریقې یو کامل پیر و.[۲۷۹] د مصطفی محمد د تصوف د عارفانه کلام څه نمونه دلته وړاندې کولی شي:

هــ هــر دم واصــل مسرــور شــه
د خپــل تــن ځینــي مســتور شــه
تــه دایــم ورتــه حضــور شــه
لــۀ هــر جملــه غفلتــه دور شــه
تــــه دایــــم شریعتــــي شــــه
په هر وخت کې یې محصور شه
کــه طلــب کــړې د مــولا کــړه
پــه طلــب کــې یــې چــور چــور شــه
طالبــــان بــــارداري ونــــې
پــــه دا ونــــو کــــې کجهــــور شــــه
د عمــــل ونــــه کــــړه نهالــــه
د عمــــل پــــه پــــاڼو ګــــور شــــه
د حــــق یــــاد دزړۀ صــــیقل دی
د اثبــات پــه مېــوه پــور شــه[۲۸۰]

میا محمد قاسم چې د میا عبدل کشر ورور و او د میامصطفٰی ابن پیر بابا ځوی و، د چشتیه مسلک یو کامل بزرګ لوی عالم او پیاوړی شاعر و، د میا کریم داد په خاصو مریدانو کې شامل وه، د تیرات په جنګ کې چې کله میا کریم داد ووژل شو نو میا قاسم[۱۵] د هغه په جدایۍ کې د غم درد د ا شعرونه وویل:

میـــــا قاســـــم چـــــې پـــــه خپـــــل پـــــیر پســـــې ژړا کـــــا
د زړه وینـــــــې یـــــــې بهیـــــــږي د چشمـــــــــــانو
د ده وینـــــــې دې و حـــــــورو تـــــــه حنـــــــا شي
مبـــــــارک شـــــــه شـــــــهادت د شهـــــــــــیدانو[۲۸۱]

د سوات اخوند چې په سیدو بابا مشهور و او خپل نوم یې عبدالغفور وه، د قادریه او نقشبندیه سلسلې پیروکار و،[۲۸۲] په طریقه قادریه کې د هغه استاذ حضرت صاحبزاده حافظ محمد شعیب وه. دی د صوابۍ ضلعې تور ډېري کلي اوسېدونکی و او دغه رنګ په طریقه نقشبندیه کې هم د هغه پیر صاحبزاده حافظ محمد شعیب و[۲۸۳] د بشونۍ باباجي چې خپل نوم یې حافظ محمد صدیق صیب و په ۱۱۹۸ هجري کې د بونېر په بشونۍ نومې ځای کې په حق رسېدلی او مزار یې هم هلته دی. دی د تصوف د څلورو واړو طریقو قادریه، چشتیه، نقشبندیه، سهروردیه، خلیفه مجاز او پیر طریقت و. مولانا اخوند محمد صیب د عمرزو د ده خلیفه اکبر و، د چا په واسطه چې د سیدو غوث ته هم د قادري سلسلې فیوضات رارسېدلي وو، لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي، چې سیدو بابا د تور ډیري د حافظ محمد شعیب نه فیض حاصل کړی و او حافظ محمد شعیب د عمرزو د اخوند محمد خلیفه اکبر و سیدو بابا د تور ډیري د حافظ شعیب خاص ماذون او خلیفه اکبر و. د سیدو بابا د کوشش او همت په وجه سلسله عالیه قادریه په غفوریه باندې هم شهرت لري.[۲۸٤]

---

[۱۵] میا محمد قاسم د میا عبدالوهاب کشر ورور، د میا مصطفي محمد زوی او د پیر بابا نمسی و. دی د کال ۹۸۷ هجري خواو شا په بونېر پاچا کلي کې پیدا شوی و. د میا کریم داد له شهادت نه پس میا قاسم د کافرو خلاف د جهاد جاري ساتلو په غرض د سوات کوهستان په شاګرام او پکهلۍ کلیو کې میشته شو ـ میا قاسم د کال ۱۰۷۸ هجري خواوشا د توروال په مقام په یوه غزا کې شهید شوـ (رحیم شاه رحیم، غټه خزانه، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز، ۲۰۱۵، مخ: ۳٦،۳۵)

## پیران مریدان

په سوات کې د پیرانو د زور شور هم یو دور تېر شوی دی. د دې علاقې د خلکو نفسیات داسې وو چې پیري مریدي دلته ډېره په کامیابۍ سره چلېده، ځکه د سوات په پښتو ادب د پیرۍ مریدۍ ډېر اثرات ښکاري. دلته رنګارنګ پیران پیدا شوي او مختلفي خبرې یې خورې کړي دي، په دوی کې څه ښه او څه ناکاره پیران وو. وایي چې پیربابا ترمذ ته د تللو اراده وکړه نو مریدانو او عقیدت مندو ورته وویل چې په یوسفزو کې دوه پیران پیدا شوي، چې خلک د پېغمبر د دین نه اړوي، یو د غلجو پیر طیب دی او بل پیر ولي. دوی ټنګ ټکور او سرود حلال ګڼي او پیرولي خو ځان ته خدای وایي نو پیربابا ته یې وویل که تاسو د یوسفزو علاقې ته لاړشئ نو دا خلق به د ګمراهۍ نه بچ شي.[۲۸۵] اخون درویزه چې د هندوستان نه واپس شو نو خپل استاد ملا سنجر د پیربابا استانې ته ورسولو. له ملاقات نه پس یې ورته د خپل زهدو هدایت او کشف وکرامت حال بیان کړه. وایي چې پیر بابا په دې مسکی شه او ویې فرمایل چې د پښتنو کامل پیر شوی یې خو ښه دې نه دي کړي، ځکه چې بې د شېخ فاني في الله د اجازت نه په ریاضت کولو سړی ګمراهۍ ته رسي.[۲۸٦] د پیربابا د دې خبرې نه هم د پښتنو د پیر پرستۍ پته لګي. په سوات کې د پیربابا او اخون درویزه د پیرۍ مریدۍ یوه مضبوطه رشته پاتې شوې او دغه سلسله بیا د اخون درویزه اولاد جاري ساتلي ده. د پیربابا او اخون درویزه مخالفت له پیر روښان سره و، نو ځکه د سوات په پښتو ادب کې د ښو او بدو پیرانو ذکر راځي. خوشحال بابا وایي:

هغــــه وخـــت چـــې پیرروښـــان فســـاد بنیـــاد کــــــــړ
پښــــتنو ورســــــــــــــــره ټینــــګ کــــار د ارشــــاد کـــــړ
پښـــتانه پــــه هغـــــــــــــــــــــــه دور پــــیر پرســـــت وو
څـــــوک مریــــد د شـــــاه عیسٰیـــــ څــــوک د سرمســـــت وو[۲۸۷]

احمد دین طالب د پیر تاریک او د هغه مریدان په یو شعر کې داسې یادوي:

پــــه دا څـــــه کـــــه پــــه خلــــه نــــرم لکـــــه مــــــوم وي
پـــــــه زړه ســــــخت وي هــــــر مریـــــــد د تـــــــاریکي[۲۸۸]

حافظ الپورۍ د جاهل پیر په باره کې وایي:

جاهـــــــــــل پــــیر پـــــه پــــیرۍ مـــــه نیســـــه نادانـــــه
نابینــــــا بــــــه پـــــــېش رهــــــــــــــــبر د بینانـــــــه شي

لـــه نـــاقص بـــه مريـــد څـــه مـــــــراد حاصـــل کـــه
منکـــو حـــې لـــه د بـــار ســـود لـــه صـــغير نـــه شي
شرعـــــه ورعـــــه تېنگـــــوه بـــــاور محکـــــــــم کـــــړه
د جنـــت يافـــت پـــه پرهېـــز دی پـــه پـــير نـــه شي[۲۸۹]

سوات کې د پيرۍ مريدۍ په باره کې خوشحال خان وايي:

مبـــتلا پـــه څـــو څـــو رنگـــــــه پليـــدي دي
مريـــــــدي[۱۶] دي، عنيـــــــدي[۱۷] دي، نديـــــــدي[۱۸] دي [۲۹۰]

د پير شاگرد ته مريد وايي او د ده کار ته مريدي وايي، لکه خوشحال په سوات نامه کې يو بل ځای کې وايي:

مريـــــدي يـــــې پـــــه کـــــلاه پـــــه شـــــجره ده
کـــــه پـــــيري مريـــــدي دا ده مســـــــخره ده[۲۹۱]

په سوات کې د پيرۍ مريدۍ ډېر اثرات وو او دغه اثرات په ادب کې ښه صفا ښکارېږي:

---

[۱۶] مريد معنٰی په درياب لغت کې داسې شوې ده: خواهش مند، ارزومند، ارزو لرونکی، منونکی، شاگرد، مرشد، فرمانبردار (قلندر مومند، درياب لغت: مخ: ۱۱۸۸) لکه خوشحال چې په دې شعر کښې د مريد لفظ استعمال کړے دے۔

پښتانه په هغه دور پير پرست وو          څوک مريد د شاه عيسې څوک د سرمست وو (سوات نامه شعر نمبر ۴۴۰)

همېش خليل د سوات نامه په نوټونو کښې د مريدي معنٰي نافرمان، ملعون او مردود کړې ده (سوات نامه مقدمه تحقيق او سمون د همېش خليل مخ: ۱۱۳)

[۱۷] همېش خليل په سوات نامه کې د عنيدي معنٰي سرکش او جنگيالي کړې ده (سوات نامه مخ : ۱۱۳). له دې سره يو بل نزدې لفظ عنادي هم دی چې معنٰي يې ده عناد لرونکی، مخالف، دشمن (قلندر مومند، درياب لغت، مخ: ۹۳۹).د خوشحال خان په يو بل شعر کې هم د عنيدي لفظ استعمال شوی دی.

د روښان بخره ورکزي او افريدي شول   هغه خوښ په رهزنۍ په عنيدي شول (سوات نامه شعر نمبر ۴۴۱)

په دې شعر کې د عنيدي د لفظ معنٰي همېش خليل سرکشي او جنگجويي کړې ده ـ (سوات نامه مخ نمبر ۱۳۱)

[۱۸] نديدي ناديده ته وايي. د ناديده معنٰي ده: ناليدلی، وږ سترگی، اروا وږی، لالچي، کم اصل، رذيل (قلندر مومند، درياب لغت، مخ: ۱۲۷۲) سوات نامه کې يو بل ځای خوشحال په يو شعر کښې درې ځايه د ناديده لفظ استعمال کړی دی.

په هر کار کې نا هموار نا فهميده دي نا ديده دي، نا ديده دي، نا ديده دي (سوات نامه شعر نمبر: ۱۴۶)

## مليان

په سوات کې له پير سره سره دويم اهم کردار د ملا دی. دغه وجه ده چې د سوات په پښتو ادب کې د ملا د ژوند او کردار ذکر هم په نظر راځي او دا صحيح کردار هغه وخت مخې ته راشي چې کله ملا او پير د يو بل مخالف شي او يا مليان په مختلفو ډلو کې تقسيم شي (لکه څنګه چې عموماً وي) او بيا عوامو ته د يو بل حقيقت ښکاره کړي، نو اديب، شاعر او قلمکار ته موقعه په لاس ورشي او دا حقيقتونه د قلم په ژبه کاغذ ته وسپاري او دراتلونکو خلکو لپاره يې سنبال او خوندي کړي. اوس ګورو چې د سوات په پښتو ادب کې د ملا ژوند او کردار څنګه پېش کړی شوی دی. محمد اکبر (ملا بابا) خو تر هغه وخته ملا ته ملا نه وايي چې تر څو يې د عشق په مدرسه کې سبق نه وي ويلی:

څو دې سبق زما د عشق له مدرسې او نه شي
که نور هزار علمه خپل ياد کړې ملا به نه شې
ته چې د ځان سره داېم خوړونکی سپی ګرځوې
زما په در کې به دې ځای نه وي اشنا به نه شې
که معرفت دې زما بيا موند بيا وځان ته ګوره
ترتورو خاورو به خائسته شې خاتما په نه شې
څو په شمشير د لااله الا الله دې غليم قتل نه کړې
دا ته اکبر به مدام لر اوسې بالا به نه شې[۲۹۲]

چې په يو کلي محله کې به څوک مړ شو، نو ملا به ورته غسل ورکړ او بيا د مړي جامې، پټکی او نور شيان به يې ځان ته يوړل. اخون کريم داد په يو شعر کې دې طرف ته داسې اشاره کړې ده:

هغه مرده شوی چې به تاوينځي
زړه به ښه ستا په کميس [قميص] يا په دستارکا[۲۹۳]

ملا ته به خلکو د هغه د امامت او نورو ذمه وارو په بدل کې زکٰوة ورکاوه، لکه احمد دين طالب چې وايي:

ميا ملاله ره خيرات زکوة عزت دی
په سودا د سوداګر هټيوال خوښ وي[۲۹۴]

خوشحال خټک هم داسې وايي:

ملايـــــــان د ســــــوات همـــــــه زکــــــوة خـــــــواره دي
پـــــه دانـــــش، پــــه ديـــــن، پــــه علـــــم خـــــبر نـــــه دي[۲۹۵]

خوشحال خان وايي، چې شيخ او ملا د سوات د خلکو مال په چل ول خوري:

يـــا يـــې شـــيخ مـــلا پـــه مکـــــــر پـــه افســـون خـــوري
يـــا يـــې مـــال پـــه خپـــل پـــردي مگـــر خـــاتون خـــوري[۲۹۶]

خوشحال وايي چې هر ملا د يوسفزو صفت کوي اگر که هغه غل هم وي:

هــــــــر مـــــــلا پـــــــه دا صــــــــحبت ورسره مــــــــل وي
پـــــه ثنـــــا د يوســـــــفزيه وي کـــــــــــه غـــــــل وي[۲۹۷]

او بل ځای داسې وايي:

عالمـــــــــــــان يـــــــې همگــــــــي واړه سفيهـــــــــ دي
نــــه عــــالم او نــــه فاضـــــل دي، نــــه فقيهـــــ دي[۲۹۸]
پـــــه مسجـــــــــد راځــــــي پينځـــــه وختـــــه آذان کــــا
چــــــې زکـٰـــــوة سرســـــايه نــــه وي مســــجد وران کــــا[۲۹۹]
د مـــــــيراث مالونـــــــه خـــــــوري لـــــــه ظالمــــــــــانو
نـــــوم پــــــه ځــــــان بانــــــدې کېـــــږدي د عالمــــــانو[۳۰۰]
نـــه يـــې خـــط وي نـــه يـــې لوســـت همــــه ټگـــي کـــا
تعويذونـــــه بـــــه کـــــــــــــــوي دروغ داري کـــــــا[۳۰۱]

خوشحال خان خټک ته په سوات کې د ملا له لاسه مشکلات پېښ شوي وو، نو ځکه هغه په ملا زيات بحث کړی دی. په سوات کې به ميا، ملا او ستانه دارو ته پښتنو سېرۍ ورکولې، په دې باره کې خوشحال خان وايي:

کــــوم مــــلا چــــې د ميـــا نـــور پـــه حکــــــــم درومــــي
هــــم هغــــه د ســــوات پــــه ملـــک کـــې ســـېرۍ مـــومي[۳۰۲]

عبدالعظيم صواتی وايي چې که ملا ته فيصله لاړه شي، نو هغه هم په بډو رشوتونو فيصله کوي، لکه چې وايي:

مومنــــــانو زړونـــــه صــــاف کـــــړئ لـــــــــــه نفاقــــه
پــــه اخـــــلاص اوکـــــړئ د خـــــدای پـــــه رضـــا صـــــلح

کـــه تـــه پرېـــې تـــا بـــه وړکـــړه کـــه څـــه ورکـــړې
ملايـــان کـــا پـــه يـــو چـــرگ پـــه حلـــوا صـــلح[۳۰۳]

د ملا د کار او د هغه د اړې (معاوضه) په باره کې مخدوم تصدق احمد ليکي چې د ملا کار مذهبي تعليم حاصلول او د هغې تشريح کول دي. هغه د ورځې پينځه وخته بانگ وايي، د امامتۍ مونځ ورکوي، نکاح او جنازه کوي.د دې په بدل کې هغه ته نقدې روپۍ يا په هاړ مني غله دانه ورکولی شي.[۳۰٤] مخدوم تصدق احمد وايي هر سړی ملا، پير، اخوند يا ستانه دار جوړيدی شي که هغه زيره پرېږدي لږ علم حاصل کړي او يو څو کاله مسلسل په پابندۍ د مذهب په اصولو عمل وکړي.[۳۰۵]

## خانان ملکان

د سوات په معاشره کې له مذهبي خلکو، يعنــې پيرانـو او مليـانو نـه عـلاوه بـل اهـم کردار د خانانو ملکانو پاتې شوی دی. دغه وجه ده چې د سـوات پـه ادبيـاتو کـې د خانـانو ملکانو د کړو وړو ډېرې حوالې موندل کېږي، په ځانگړې ډول د پښتو په زمانـه کـې د خـان ملک کردار ډېر اهم پاتې شوی دی. د سوات په ټولنه کـې د خـان د ټـولنيز مقـام انـدازه د ميا کريم داد له دې شعر نه لگي:

ســــــــاه نائـــــــــب ارواح ئـــــــــــی خـــــــــان دی
پـــــــــــاک اللـــــــــــه د دوی بادشـــــــــــاه دی[۳۰٦]

د سوات د يو بل شاعر خيري له دې شعر نه هم د خان د حيثيت  اندازه کېږي:

خـــيری د هغـــه چـــا نـــوکر دی چـــې زوال نـــه لـــري
د نيمـــې ورځـــې نـــوکري د خـــان نـــواب څـــه کـــووم[۳۰۷]

د خان ملک يا د قبيلې د سردار او مشر به يو توغ و " د سردارۍ توغ" اصطلاح په مخزن کې هم راغلې ده .[۳۰۸]دوست محمد خان دوستي هم توغ په دې شعر کې استعمال کړی دی:

ابـــــراهيم تـــه يـــې ويـــل څـــوک يـــې هلکـــه
تـــه چـــې وائي بـــت خانـــه بـــه کـــړم کســـکر
داســـتا تـــوغ لـــه کومـــه وخـــوت د اســـمانه
تـــه زمالـــه زور قـــــــوت نـــه يـــې خـــبر[۳۰۹]

محمد اکبر هم د خپل وخت له خانانو نه په دې الفاظو سره ټکوي:

چـــــې خـــــاني مـــــيري د غلـــــو شـــــوه غـــــاړه اوشـــــوه
لارمـــــې ټېپـــــه د درتلـــــو شـــــوه غـــــــــاړه اوشـــــوه
هغـــــه لاره چـــــې خـــــالي لـــــه خريـــــز و خـــــار وه
اوس بردمـــــه لـــــه ازغـــــو شـــــوه غـــــاړه اوشـــــوه[310]

او دوست محمد خان دوستی خاناتو ته نصیحت کوي چې ډېر ناز او غرور مه کوئ:

مـــــــــه نـــــازيږئ پـــــه خـــــانی پـــــه بادشـــــاهت
خـــــلاص بـــــه نـــــه شـــــئ پـــــه دې بانـــــدې پـــــه قيامـــــت[311]

خوشحال خان خټک د سوات د خانانو ملکانو په باره کې دا شعرونه ويلي دي :

ملکـــــان شـــــېخان همـــــــــــــه واړه سره شـــــول
د خپـــــل لـــــوري ننـــــگ يـــــې واخســـــت مســـــخره شـــــول[312]

ملکـــــان پـــــه ننـــــگ د خپـــــل لـــــوري ولاړ وو
عالمـــــان شـــــېخان پـــــه نـــــور عضـــــو ولاړ وو[313]

ملکان د خلکو تر مينځ روغې جوړې هم کوي او مسئلې حل کوي:

چـــــې دعـــــوٰی د چـــــا پـــــه ميـــــنځ کـــــې شي بنيـــــاده
ملکـــــان يـــــې سره ژغـــــوري لـــــــــــه فســـــاده[314]

خو خوشحال وايي، چې ملک انصاف نه کوي، خو فيصلې په لالچ کوي:

کـــــه مظلـــــوم چـــــرې ملـــــک وتـــــه داد خـــــواه شي
چـــــــــې يـــــوه روپـــــۍ بـــــل ورکـــــا روســـــياشي[315]

له چا سره چې به ډله مضبوطه وه او ملگري به يې ډېر وو هغه به ملک جوړېده:

کـــــار يـــــې ځکـــــــه مســـــخره حبطـــــه ســـــپک دی
څـــــوک چـــــې زيـــــات دی پـــــه تپـــــه هغـــــه ملـــــک دی[316]

د خوشحال د تنقيد غشي د سوات په ملکانو هم تېز وربدلې دي، لکه چې وايي:

ملکـــــان د يوســـــــفزيه لکـــــــــــه خرونـــــه
پـــــه گنـــــدگۍ سره لـــــړلي خلـــــــې سرونـــــه
نـــــه يـــــې علـــــــم نـــــه دانـــــش نـــــه فهـــــم پوهـــــه

خــــــــو دوســـــــــتۍ د درویـــــــــزه بانـــــــــدې انبوهـــــــــه[317]
ملکـــــــــان خانـــــــــان یـــــــــې کـــــــــل واړه خـــــــــران دي
عالمـــــــــان شـــــــــېخان یـــــــــې واړه جـــــــــاهلان دي[318]

ایچ ـ ډبلیو ـ بیلیو لیکي چې ملک د قبیلې د مشر یا خان ماتحت وي، خاني او ملکي په وراثت کې مېلاویږي،خو په هغه صورت کې دا له وراثت نه ووځي چې کله د خانۍ ملکۍ وارث ذهني یا جسماني مریض وي یا د هغه کردار په ټولنه کې داغدار وي، خو د لوړې حوصلې او قابلیت واله کس څوک هم دې مقام ته له رسېدو نه، نه شي منع کولی. دوی به د خپلې قبیلې یا ډلې د ښیګړې لپاره کار کوي او د عام ولس د خواهشاتو خلاف څه فیصلې نه شي کولی.[319]ځینو خانانو ملکانو له خلکو سره ډېر زیاتي هم کول او له دوی نه به یې په زور هر څه اخستل. په دې اړه د مېجر راورټي رالېږلی قندهاری د سوات د درشخېلې کلي د یو خان په باره کې لیکلي، چې دغه ملک له ما نه زما کپړې په زور اخستل غوښتل او ملا دا غوښتل چې زما په لاس کې موجود کاغذونه وګوري.[320]

## قام پرستي (ذات پات)

په سوات کې اکثریت پښتانه اوسېږي چې په خټه یوسفزي دي، چې بیا لاندې ګڼ شمېر خېلونه لري. له دوی علاوه دلته کوهستاني، ګوجر، میاګان، سیدان، او نور هم ډېر قامونه اوسېږي چې د هغوی ذکر په درېیم باب (د سوات لنډ تاریخ) کې شوی دی. دلته به مونږ د سوات په پښتو ادب کې د دې نسلونو او ذات پات په باره کې بحث کوو او دا به ګورو چې په ادب کې یې دوی ته په کوم نظر کتلي دي.

اخون درویزه په مخزن الاسلام کې د قیامت د ورځې د بیان په سلسله کې لیکي چې په هغه ورځ به د نسب پوښتنه نه وي او نه به دا تپوس کوي چې ته زوی د چا یې او لور د چایې. په دغه ورځ به د عمل پوښتنه کېږي د هر چانه که څوک سید وي که عالم وي.[321] همدغه خیال اخوند قاسم پاپین خېل وړاندې کړی دی، هغه وایي چې په قیامت به بې عمله یو سړی په نسب نه خلاصېږي او دلته د قرآن کریم یو آیت هم راوړي چې ترجمه یې داده: "چې اسرافیل شپېلۍ پوک وهي نو بیا به د نسب پوښتنه نه وي." او په حدیث کې راغلي چې یو سړی په خپل عمل خلاص نه شي نو په نسب به نه خلاسیږي،که سیدان شریف زاده ګان وي خو هغه به هم بغېر له عمله نه خلاسیږي.[322] حافظ الپوری وایي چې د چا اولاد بد کرداره وي، نو د هغه مور وپلار هم خلک په بدو یادوي:

د نــــا اهـــــــل مـــور و پـــلار پــــه بـــــدیادیږي
چــــې والــــد یـــې پــــه نېـــک نـــام ملقـــب نـــه دی[۳۲۳]

پښتانه د قام پرستۍ قایل دي او په خپل ذات او حسب نسب ډېر فخر کوي.[۳۲٤] د قام پرستۍ دا نخښې د عبدالعظیم صواتي په دې اشعارو کې لیدل کېږي:

د دنیـــا نـــاوې بـــه بیـــا پـــه نکـــاح نـــه کـــــــړم
کـــه پښــــتون عبـــدالعظیم یـــم پـــه نســـب کـــې[۳۲۵]
پـــه گفتــــه بـــه یـــې هـــر گـــز بـــاور اونـــه کـــړم
کـــــه رښــــتیا یــــم چـــرې ځـــوی د پښــــتانه[۳۲٦]

خو عبدالعظیم صواتی دا هم وایي:

مـــــا چـــې کـــړی خپـــل نســـب تـــه اشـــارت دی
هســــې نــــه چــــې مــــې غـــرض د عــــلویت دی
هـــر چـــې فخـــر پـــه خپـــل اب پـــه خپـــل نســـب کـــا
محـــــــض دا د ســــــفیهانو سفــــــــــــاهت دی
شرافـــت حـــــرمت پــــه مــــال پــــه نســــب نــــه دی
پـــــه ایمــــــــــان د مومنــــــانو شرافــــــت دی
چــــې تغــــیر تبــــدیل کــــوي پــــه خپــــل نســــب کــــې
دغــــه کــــس پــــه نــــزد د شرعــــې مــــــلامت دی
مجهــــــول والــــــی د نســــب چــــې بــــد شــــنیع دی
ځکــــه کــــړی ځــــای پــــه ځــــای مــــې دلالــــت دی
اعتبـــار څـــــــوک پـــه مجهـــول نســـب نـــه کـــا
ډېرناکـــــــــاره د نســـــــــب مجهـــــــــــــولیت دی
خـــدای مـــې اوســـاته لـــــــه کبرلـــه لـــویۍ نـــه
پـــــه اظهــــــار کــــې مــــې بیــــان د حقیقـــــت دی[۳۲۷]

احمد دین طالب د پښتون قام پرستۍ په اړه داسې وایي:

هـــــر ســــړی بــــه پښـــتون ووائي خپـــل ځـــان تـــه
لکـــه چتــــی بــــه پښــــي اونیسي ــــ اسمـــــان تـــه
مگــــر کــــچ کلـــه د تشـــو شـــو ملـــــــوخیژي

کــــه ورگـــــډ یــــې منـــــداڼو کــــــــــړي درمیــــان تــــــه
پــــه دا څـــــه شـــــول کـــــه یــــې مـــــخ د منـــــزري دی
منــــــزری نــــــه شاکـــــــــوي د جنــــــگ مېــــــدان تـــــــه[328]

د ذات پات په باره کې احمد دین طالب داسې وایي:

دیـــــاری وعــــــده کـــــــــوي وفـــــا پــــــرې نــــــه کـــــړي
کــــــه پښـــــــتون وي پــــــه صـــــــفت د ســــــــامري شي[329]
کـــــه لقمـــــــــان د زمـــــانې وي پــــــوخ بـــــه نــــــه کـــــړي
د کــــــــــــــــــــم ذاتـــــــو د یــــــاری پېونــــــد کچـــــــه[330]
پـــــه دولـــــــت پـــــــه محبـــــــت کلـــــــــــــــه خپلیـــــــږي
چــــــــې پــــــه ذات نــــــۀ وي اصـــــــل د پــــــلار و مــــــوره[331]

خو دلته بیا یو دم له نسب نه واوړي او خبره عمل ته راولي:

د عمــــــــل تعـــــــــــــریف دې وایـــــــه نســــــــب څـــــــه دی
د دې بــــــــې مطلـــــــب لبـــــــاس نــــــه مطلــــــب څــــــه دی
چـــــــــې تصــــــــدیق د چـــــــا د شرعــــــــې مخـــــــالف وي
بــــــې اســــــلامه عجـــــــم څـــــــۀ دی عـــــــرب څـــــــه دی[332]

## کار کسب او پېشي

د کر کروندې لپاره د سوات زمکه ډېره زرخېزه ده، نو ځکه دلته له ټولو نه لویه پېشه کرکیله ده. له دې علاوه څاروي ساتل، دکانداري او تجارت کول، کولالي، صرافي، (زرگري)، اینگري (اهنگري)، پراچه توب، طبابت او نور کسبونه هم خلک کوي. ډمان هم دلته شته چې د هغوی خپله یوه پېشه ده، چونکې کرکیله له ټولو لویه پېشه ده ځکه د سوات په پښتو ادب کې د دې ذکر ډېر راځي:

## کرکیله

د سوات د اتلسمې پېړۍ یو شاعر محمد اکبر په خپل یو کلام کې د کرکیلې پوره نقشه رانښکلې ده:

چــــــــــې میشـــــته پـــه کوکـــارۍ وي قـــرار نـــه وي
همېشـــــه لـــــــــــــــــه اتـــو ســـتووزګار نـــه وي
پــــه مــــــوســـــــــم د شـــــالیزارو سرګشــــــته وي
هـــــــــــــر روزګـــــار یـــــې پـــه تـــرا د روز ګـــار نـــه وي
پـــه ورځ وار د ابوکــــــــــــه پـــــه چغهـــــــــــر وي
پـــه شـــپه څـــوک وي چـــې بـــه غـــم پـــرې انبـــار نـــه وي
شـــوګیرې د شـــپې کـــوي پـــه ملـــک بـــه ګـــــرځي
هـــیڅ یـــې پوهـــه پـــه خــــــــریزونو پـــه خـــار نـــه وي
لـــــــــــــه خـــواږه اشـــنایې ســـترګې نااشـــنا وي
د ابـــو پـــه وار یـــې پوهــــــــــــه پـــه یارنـــه وي
یولـــه بلـــه سره غــــــــــــــــــلا د ابـــو کانـــدي
هـــیڅ بـــاور یـــې پـــه خپـــل زوي او پـــه پـــلار نـــه وي
کـــه اشراف یـــــې غـــــــــــــــلا کـــولې د ابـــو شي
دغـــه غـــلاور تـــه پـــه فکـــر کـــې عـــــــــار نـــه وي
پـــه حســـاب چـــې لانـــدې بانـــدې شي لــــــــــه بلـــه
خـــوي خصـــلت یـــــې د اشراف د ســـــــردار نـــه وي
صـــبر نـــه کـــــا پـــه ویلـــو پـــه کنځلـــــــــــــــــو
د عــــــــــزیز سره رټـــل کـــا راهـــــــــدار نـــه وي
زر ازاره زر ښـــــبرې پـــــه ورځ کـــــــې اخلـــــــــــــــي
پـــیر مـــــــــــــلا یـــې پـــه وربشـــه پـــه کـــار نـــه وي
پـــه قبرونـــو حــــــــــلاله کــــــــــوي د پســـونو
تـــه ګـــمان پـــرې مــــــــــــه کـــوه چـــې مـــردار نـــه وي
چغهـــر بـــه د ګــــــــــوجـــــــرو پـــه قلنـــګ کـــا
بـــې حـــــــــــــــرامو یـــې بـــل رنګـــه وپارنـــه وي
د کـــوټې قلنـــګ یـــې بیـــل د مـــــــــزکې بیـــل وي
بـــې لـــــــــــه وېشـــه یـــې بـــل رنـــګ سریکـــار نـــه وي
لـــه هغـــــــــــــو خلقـــو پـــه تېښـــت ووځـــه اکـــبره

چـــــــــــــې پـــرواه يـــې پـــه غضـــب د جبـــار نـــۀ وي[٣٣٣]

د اوړي پـه موسـم کـې پـه اوبـو شرونـه کـول هـم يـوه داسـې مسـئله ده، چـې شاعر ورته اشاره کړې ده. رحمان بابا هم په دې په باره کې دا شعرونه ويلي د:

د ابـــــو پـــــه غـــــلا چـــــې ورشي نـــــه جـــــاروونځي
کـــــــه ســـــــاکن د خانقـــــــاه او د محـــــــراب وي
د ابـــــو پـــــه وېـــــش چـــــې ورشي انصـــــاف نـــــه کـــــا
کـــــه پـــــه لاس يـــــې ورقونـــــه د کتـــــاب وي[٣٣٤]

د سـوات پـه ټولنـه کـې د اوبـو پـه وار او تقسـيم اکـثر جنگونـه کېـږي او دا سلسله له پخوانۍ زمانې راهيسي راروانه ده، چې تر دې دمه دوام لري.

ايـچ ـ ډبليـو ـ بيليـو هـم وايـي چـې د يوسـفزو ټـول دارومـدار پـه څـاورو سـاتلو او کرکيله باندې دی[٣٣٥] او بيا مخکې داسې ليکي :

Since their arrival in these parts they have been a fixed population, wholly devoted to the culture of the soil and the tending of their cattle.[٣٣٦]

ترجمه:دې علاقو ته د دوی له راتگ نه راپه دېخوا، د دوی د ابادۍ يو خاص تعداد دی چې کرکيلې او څاروو ساتلو ته يې ځان وقف کړی دی.

خوشحال خان خټک په سوات کې د کرکيلې په باره کې داسې وايي:

پـــه هـــر کلـــي پـــه هـــر کـــور کـــې يـــې ولـــې ځـــي
هـــم يـــې خـــوري هـــم يـــې هرلـــوري تـــه غلـــې ځـــي
نـــه پـــرې لار شـــته نـــه بـــل کـــار شـــته نـــه بـــل ســـود دی
خـــو يـــو کـــنج گوښـــه لـــه خلقـــــــــو غلـــه بـــود دی[٣٣٧]

او په بل ځای کې داسې وايي:

پـــه درســـت کـــال يـــې گـــوتې نـــه خيـــژي لـــه کـــاره
بـــــو تيمـــــــــــــــار دي د ابـــــو پـــــه شـــــاليزاره
يـــا د ســـوات خـــاورې گنـــده پـــه کـــار دکشـــت دي
يالـــه ځايـــه يوسفـــــــــــزيه بـــد سرشـــت دي[٣٣٨]

د اخون کريم داد وراره عبدالحليم په خپله الف نامه کې هم د کرکيلې اصطلاحات

استعمال کړي دي هغه وايي:

د شـــــيطان قلبـــــه ده گـــــــــېږه
د زړه پـــــر ملــــک دغـــه کـــــور خـــوړي
د دنيـــــا وراســـــته تخمونـــــه
د زړه پټـــــي لـــــــره راوړي
څـــوک بـــې رنگـــه دهقـــاني کـــا
څـــوک ســـوال کانـــدي څـــوک لـــوړي[339]

احمد دين طالب هم زميدار ته وايي چې د فصل په وخت کې ناراستي نه ده په کار:

چـــې د فکـــر پـــه غلبېـــل خـــبره چـــاڼ کـــړم
د مطلـــب پـــه نخښـــه هلـــه کـــړم گزارســـت
ســـتي ښـــه ده خـــو تـــر خپلـــه وختـــه ښـــائي
نـــه چـــې فصـــل نـــه غافـــل شي زميدارســـت[340]

او د دهقان د سستۍ ذکر محمد اکبر داسې کوي:

هغـــــه کشـــت بـــه نـــه د لاس نـــه دلاره وي
چـــې دهقـــان شي پـــه موســـم د پشـــکال ســـت[341]

حافظ الپورۍ هم ځای پر ځای د کرکيلې اصطلاحات استعمال کړي دي، لکه دا شعرونه:

جـــوړه شي رشـــه لکـــه ښـــه نـــاوې سهـــــم داره
گـــډ پـــرې د قســـمت اوړی سمســـار د بيلتانـــه کـــا[342]
ای پـــه خـــدای قبولـــو ملـــول بـــال ځـــما خوشـــحال کـــړئ
پـــروت لکـــــه خـــو شـــه يـــم د غمونـــو و ديـــاس تـــه[343]

په دې پاسني شعر کې، خو شه د فصل د دانو وړي او دياس غوبل ته وايي:

کـــر چـــې دهقـــان او کـــه خـــرمن ډک لـــه غلـــې واخـــلي
نـــه دی چـــا اغســـتی خـــرمن بـــې لـــه جرڅـــه کشـــته[344]

عبدالعظيم صواتي هم په دې شعر کې د رشې لفظ استعمال کړی دی :

کـــه پـــه زړه زمـــا د غـــم رشـــې پرتـــې وي
لـــه ضروره مـــې ريبـــار تـــه وخنـــدل بيـــا[345]

عبدالعظیم صواتی د دهقان د سخت ژوند په باره کې داسې وایي:

دهقـــــان چـــــې رشـــــې پورتـــــه کـــــړي اوزگـــــار شي
هالـــــه دوي د دیـــــن وکـــــارو تـــــه بېـــــدار شي
غوایـــــان مېښـــــې چـــــې پـــــه شـــــنو کـــــه پـــــه پسرلـــــي کـــــې
څـــــه بـــــه مـــــونځ کـــــا چـــــې لـــــه ســـــوټو یـــــې روزگـــــار شي
دهقانـــــان کـــــه سرگـــــردان وي تمـــــام عمـــــر
خـــــو دادرې میاشـــــتې بـــــې حـــــده ناقـــــرار شي
کـــــه دې ډېـــــر یـــــارو اشـــــنایا کـــــه دې خپـــــل وي
دې ایـــــام کـــــې نـــــه بـــــه خپـــــل نـــــه بـــــه دې یـــــار شي
ډېـــــر ســـــتومان یـــــې پـــــه دفـــــن پـــــه ښـــــخول وي
کـــــه یـــــې مـــــړه پـــــه دې ایـــــام کـــــې مـــــور و پـــــلار شي
کـــــه فـــــرض نمـــــونځ یـــــې شي قضـــــا پـــــروا یـــــې نـــــه وي
زړه یـــــې چـــــوي چـــــې یـــــې قضـــــا د دنیـــــا کـــــار شي
مصـــــیبت لـــــه عبـــــادت نـــــه څـــــه کـــــم نـــــه دی
خـــــدای شي یـــــاد د ســـــړي هلـــــه چـــــې بـــــیمار شي
چـــــې موصـــــوف پـــــه دې صفـــــاتو دی عظیمـــــه
زمینـــــدار ســـــړی بـــــه کلـــــه دنیـــــا دار شي[۳۴۶]

مخدوم تصدق احمد په سوات کې د کرکیلې د حصه دار ، یعنې دهقان، برخي خور او نورو په باره کې داسې لیکي:

> Some of the Pakhtuns having small holdings cultivated the land themselves. This was known as pakhpala karal. Others with large holdings gave them to the dehqans and fakirs for cultivation.[۳۴۷]

ترجمه: ځینې پښتانه چې لږ جایداد لري هغه زمکې پخپله کري، دې ته پخپله کرل وایي او نور هغه پښتانه د چا چې زمکې ډېرې وي هغوی زمکې د کروندې لپاره دهقانانو او فقیرانو ته ورکوي.

چې قلبه، تخم او نور د زمکې د مالک وي او صرف په فصل (غله) کې پینځمه حصه دهقان ته مېلاویږي دې ته دهقاني وایي او چې قلبه د دهقان وي او تخم نیم په دهقان

وي او محنت ټول دهقان کوي، نو په غله کې به نيمه اخلي، دي ته بيا برخط خور وايي، يعنې زمکه په برخه يا په نيمه ورکول. دغه رنګ د زمکې په عوض کې يو خاص مقدار د غلې د زمکې مالک ته ورکول دې ته اجاره وايي. که د زمکې مالک ته چې کومې نقدې پېسې ورکړل شي هغې ته هم اجاره وايي، خو په عمومي توګه د زمکې په عوض کې د فصل په حساب نغدو پېسو ورکولو ته قلنګ وايي.

## خاروي ساتل

دلته خلک ګډې بيزې او غوا مېښې ساتي. ګډو بيزو ساتونکو ته شپونکی وايي. اخون کريم داد په مړي د ژړا په ضمن کې په يو شعر کې شپۀ (شپون) او غوبه داسې يادوي:

دی بـــــه پـــــه خرســــــور شـــــــوی نــــــه وي
دوی بـــــه هســـــې وائي فلانکــــــی ســــــور وه د نيلــــــی
دی بـــــه شــــــپه يـــــا بـــــــه غـــــــو بـــــه وي
دوی يـــــــې ســـــــتا يـــــــې پــــــــر ملکــــــــی[۳۴۸]

حافظ الپوری په يو شعر کې شپون داسې يادوي:

زيــان لــه ديــن د چــارو ابلــيس کانــدي لــه سســت کــارو
شـــپون چـــې تهـــاون کـــا شرمـــخ وړي تـــرې رمـــې بـــزي[۳۴۹]

محمد اکبر د بيزو کنډک په يو شعر کې داسې يادوي:

دا ســـــتا لـــــه دره بـــــه پانـــــه ثمـــــه د سر پـــــه خطـــــر
کـــــــه شـــــــاه جهـــــــان ورسره راشي امرګـــــــان ورسره
د غــــير اللـــه مينـــه بـــه ســـتا لـــه مينـــې يـــو کلـــه شي
چـــــا بـــــه کنــــډک د بـــــزو ليــــدلی وي ګرګــــان ورسره[۳۵۰]

احمد دين طالب څه دا رنګ ګويا دی:

او چـــــه مېخـــــه بـــــه شـــــوده چـــــرې درنـــــه کـــــړي
خلاصــــــوې پــــــرې خلـــــه بـــــار د پنـــــدانې[۳۵۱]

## ښکار

په سوات کې قدرتي ځنګلونه، خوړونه او د سوات مشهور سيند موجود دي. د دغو

قدرتي جغرافيايي عواملو په وجه سوات د ښکار لپاره په هر دور کې مشهور پاتې شوی دی. دلته له هر قسمه مارغانو نه واخله تر ځنګلي ځناورو او مهيانو پورې ښکار خلک کوي. خوشحال خټک وايي:

درې ځيزونـــــــه مـــــــې د ســـــــوات د زړه پـــــــه يـــــــاد وو
نـــــور يــــــې هـــــر څـــــه پـــــه حســــاب وماتــــه بـــــاد وو
يـــــو ســــــخران چـــــې پـــــه حضـــــور د واده کــــار دی
بـــــل هـــــوا تــــر نــــرګس زار درېـــــم يــــې ښـــــکار دی[۳۵۲]

د ښکار لپاره ښکاري داسې جامې اغوندي، چې د ښکار د ځناورو د رنګ په شان وي چې د ښکار ځناور ترې تښتي نه. د ښکار دې لباس طرف ته د کريم داد په دې شعر کې اشاره شوې ده:

عاشـــــــــق صـــــــــيدوه شــــــــــاه صـــــــــياد وه
دګـــــر ګـــــون لبـــــاس يــــې واغوســـــت ورپســـــې شـــــۀ[۳۵۳]

ښکاريان د ښکار لپاره ښکاري سپيان هم ساتي. احمد دين طالب په يو شعر کې د ښکاري سپي ذکر داسې کوي:

د بــــــې مهربـــــــې وفـــــــا کــــــم اصـــــــل يـــــــار
دی مثـــــال د هغـــــه ســــــپي چــــــې کـــــوي ښـــــکار
کـــــه د ښــــکار صــــفت يــــې وي خلـــــق يــــې ســـــتائي
چـــــې کوتــــه شي نـــــه يــــې مــــرګ وي نـــــه يــــې مــــار[۳۵٤]

د سوات د ښکار په باره کې بل ځای خوشحال خان داسې وايي:

کـــه بـــل ښـــکار د ســـوات پـــه ملـــک کـــې پـــه مقـــدار دی
پـــــه هـــــر لـــــوري يـــــې تـــــل دل د زرکــــو ښـــــکار دی
مرغــــــاو يــــــه يـــــــې د ســــــيند تـــــــرسرو پاشــــــته
د نــــــا اهلـــــــو د ټوپکــــــو پـــــــري غوغـــــــا شـــــــته
هـــــم ګــــاوزې، بيـــــزې، سرژې هـــــم کوتـــــاه پـــــائ
امـــــا ورکــــــې کـــــړې تـــــو پچيـــــانو څـــــه بـــــه وائـــــې[۳۵۵]

**مرجونړا**

د سمندر غوطه خور یا غواص ته مرجونړا وايي، دی په سمندر کې غوپې وهي او ملغلرې راوباسي . اخون میاداد په دې شعرونو کې د مرجونړا یا دونه کړې ده:

هغـــــه زړه دریـــــاب (د درو) عـــــارف یـــــې مرجونړـــــا دی
او هغـــــه لـــــه دریابـــــه در غـــــواص راوړه پـــــه نـــــن ورځ[۳۵۶]

هغـــه دې طالـــب مرجونړـــا چـــې پـــه دریـــاب غوټـــه کـــړه
ځکـــــه لـــــه صـــــدف یـــــې راوښـــــکه ســـــپینه ملغلـــــره[۳۵۷]

در د دریـــاب دي خونـــدي شـــوي د کامـــل پـــه زړه کـــې
او مرجونړـــــا در وکـــــاږي لـــــه هـــــره نفســـــه[۳۵۸]

زه مرجونړـــــا د زړه لـــــه بحـــــردر ولعـــــل وکـــــاږم
د توحیـــــد پـــــه دریـــــاب ډوب در و گـــــوهر وینمـــــه[۳۵۹]

او هغـــــه دا زړه دریـــــاب او عـــــارف یـــــې مرجونړـــــا دی
لـــــه دریابـــــه راوکـــــاږي مرجونړـــــا درونـــــه[۳۶۰]

مرجونړـــــا یـــــې او د نفـــــس پـــــه ویاســـــته در وکـــــاږي
پـــــه قیمـــــت یـــــې د ثـــــواب در و گـــــوهر نـــــه رسي[۳۶۱]

زه مرجونړـــــا د زړه لـــــه بحـــــره درلعـــــل وکـــــاږم
او هـــر غـــواص یـــې ونښـــکی نـــه شي لـــه بحـــار چـــرې[۳۶۲]

مرجونړـــــا چـــــې د توحیـــــد لـــــه بحـــــره در وکـــــاږي
در لـــه قـــدره بـــه بادشـــا نـــور بـــه اکـــثر نـــه وینـــي[۳۶۳]

د زړه لــــــه موجـــــــه راوكـــــــاږم ســـــــپيني ملغلـــــــرې
غــــه مرجونـــــا بــــه لــــه دريابــــه چـــــې راوړې نــــه وي[٣٦٤]

اخون درويزه هم په مخزن کې مرجونا د علامت په طور استعمال کړی دی، وايي چې د درويزه خبرې در دي هغه مرجونا به يې وکاږي چې په حق وي پوهېدلی.[٣٦٥]

## دكاندار

دکانداري يا تجارت هم يوه مهمه پېشه ده. دکان ته هټۍ هم ويلی شي او دغه رنګ دکاندار ته هټيوال وايي. د سوات په پښتو ادب کې د دکاندارۍ ذکر هم موندل کېږي. احمد دين طالب وايي چې ياري او دکانداري دواړه نه کېږي:

اول مـــــــــه كـــــــــړه د دنيـــــــــا دكانـــــــــــداري
او كـــــه كـــــړې نـــــو د هېچـــــا مـــــه كـــــړه يـــــاري
كـــــــــه يـــــــــاري دكانـــــــــــداري دواړه كيـــــــــدلې
د هـــــــر چابـــــــه شـــــــنډه مېخـــــــه وه بـــــــاري[٣٦٦]

او د هټيوال يا دکاندار ذکر داسې کوي:

ميــــــا مـــــــلا لـــــــره خـــــــيرات زكـــــــوٰة عـــــــزت دی
پـــــه ســـــــودا د ســـــــوداګر هټيـــــــوال خـــــــوښ وي[٣٦٧]

عبدالعظيم صواتی هټ يا هټۍ داسې يادوي:

د نېـــــك خـــــو يـــــو پـــــه دكـــــان عـــــالم رادرومـــــي
پـــــه ځنـــــګ درومـــــي د بـــــدخويو خلـــــق لـــــه هـــــټ[٣٦٨]

خوشحال خټک هم د سوات د تجارت او دکاندارۍ يادونه داسې کړې ده:

پـــــــول پيســـــــه پكـــــــې د واړو ديـــــــن مـــــــذهب ده
انديښـــــــه يـــــــې خـــــــود د ســـــــيم او د ذهـــــــب ده
چـــــې يـــــوه پيســـــه پـــــه څـــــه نوعـــــه دوه كيـــــږي
هـــــم هغـــــه كـــــا، هـــــېڅ پـــــه بلـــــه نـــــه پـــــوهيږي[٣٦٩]

بـــــائيزي ئـــــې روزګـــــار كانـــــدي چـــــې ســـــيالان دي
خواجـــــوزي يـــــې نـــــور څـــــه نـــــه دي بقـــــالان دي[٣٧٠]

بنيا دکاندار ته وايي خو هغه دکاندار يا هغه کس چې په سود روپۍ ورکوي هغه ته

هم بنیا وایي. د سوات په پښتو ادب کې د بنیا لفظ هم استعمال شوی دی، لکه په دې شعر کې:

کرنیــــــل قـــــــرض روپــــــۍ واغســــــتې لــــــس زره
د بنیـــــا نـــــه پـــــه نېټـــــه تــــــر مـــــازیګره[۳۷۱]

له دې حوالو نه په سوات کې د بنیا او د سود د قرضو اندازه لګي.

## حلوائي

د سوات په پښتو ادب کې چې د پېشو ذکر کېږي، نو حلوائي پکې هم یاد شوی دی،لکه دا شعر:

زړونـــــه بــــې لـــــه سرولبــــانو پېنـــــډه نـــــه کــــا
د مچـــــانو ټولـــــه تـــــل پـــــه حلـــــوائي وي[۳۷۲]

چوهاړی، حجام او دړوایي هم په دې شعرونو کې یاد شوي دي:

ســــتا قبـــول بـــه کـــل شـــاهان بـــا لا نشـــین شي
چوهـــــاړی وي کـــــه حجـــــام کـــــه دړوایــــــي[۳۷۳]

پـه شـاعرۍ کـې لـه دې حوالـو نـه د سـوات د تهـذیب یافتـه ټـولنې پتـه لګـي پـه کومه کي چې له هرې پېشې او شعبې سره تړلي خلک موجود وو.

## کلال

هغه کاریګر چې له خټو خاورو نه لوښي جوړوي هغه ته کلال وایي. په سوات کې دا پېشه خپل یو زوړ تاریخ او روایت لري، په ځینو کلیو کې خو د دې پېشې خلکو باقاعده د یو نسب شکل اختیار کړی دی. میا داد په دې شعرونو کې د کلال ذکر کړی دی:

کلالـــه ده شـــهې کلالـــه ده لـــه ځنـــې خـــوښ پـــه چـــا ملالـــه ده
ځینـــې رغیـــږي ځینـــې مـــاتیږي خلـــق لوښـــي محبوبـــه کلالـــه ده[۳۷٤]

زړه مـــــې پچـــــه ده د اوم خـــــام لوښـــــو اومـــــه پرتـــــه ده
د عشـــق پـــه اور یـــې پخـــوم اوس یـــې کـــلال زهٔ شـــومه[۳۷۵]

کله چې یو کلال له خاورې نه لوښي جوړوي، نو دا له مختلفو مرحلو نه تېرېږي.

دوست محمد خان دوستی د کلال د لوښو جوړولو مختلفې مرحلې داسې بیانوي:

په نن ورځ کې به خو شته شي دغه خاوره
سبانۍ ورځ کې به تېرشي ته واوره
په درېمه ورځ به جوړه کړم ای ځوانه
بیا به یې وچه کړم په سوري واوره مانه
څلورمه ورځ به یې وچه کړم په نمر
د هغه پورې چې شي ښه مازیگر
په پینځمه ورځ به کړم تري اور چاپېره
د ماښامه به پکې وي زما شپېره
چې ښه سره شي په اتش باندې احبابه
نور به ورشمه پچې ته د شتابه
په تادۍ سره راوابه یې خلم د اوره
په شپېرم سحر به یې در وړمه ای وروره[۳۷۶]

د کلال ذکر د احمد دین طالب په دې شعرونو کې هم شوی دی:

لعل جام یې د سرولبو راپه خلې کړه
منت څه له د کلال د کنډولي کړم[۳۷۷]

احمد دینه خلق دې ډېر ناپوهه بولي
ځان ناپوهه سوداگر کړه کلال نه شي[۳۷۸]

د احمد دین طالب له دې شعر نه پته لگي، چې کلالان په خپل کاروبار کې ډېر پوه وو او دغه شان د خپلو مصنوعاتو په تجارت کې هم ښه هوښیار او چالاک وو.

## اینگر، زرگر، جولا

په فوائد شریعت کې هم د یو څو پېشو ذکر شوی دی، لکه صرافي، جوهر کشي[۳۷۹] جولا[۳۸۰] او نورې. حافظ الپوری په یو شعر کې د اهنگر (حداد) او صراف (زرگر) ذکر داسې کوي:

در گــــوهر بالـــــه شـــــوم اوس مــــې قــــدر قيمـــت ورک شـــــه
نشــــته جوهريـــــان گيلــــه بــــه څــــه کـــړم لــــه حـــداده[381]

په دې لپاسني شعر کې دې متل ته هم اشاره شوې ده "د زرو قدر په زرگرو هسې نه چې په اينگرو دروزگرو." د صراف يا زرگر ذکر احمد دين طالب په يو شعر کې داسې کوي:

د رســـــمي پاســــې بېتـــــې پــــه فــــرق پــــوهيږي
صرافــــــان چــــې پــــه مخـــــک اوينــــې گــــاس[382]

پــه دې شــعر کــې هــم د صرافــانو د قابليــت او پــه خپــل هــنر او کســب کــې مهارت او قابليت ته اشاره شوې ده چې دوی په معمولي فرق هم پوهېږي.

## شاخېل او خاکروب

لکه د نورو پېشو په شان خاکروب او شاخېل پېشې هم په سوات کې موجودې وې، ځکه يې د سوات په پښتو ادب کې حوالې مونده کېږي. احمد دين طالب د شاخېل او د خاکروب يادونه داسې کوي:

بــــــې وفــــــا معشــــــوقې کلــــــه واده کيــــــږي
د شــــــاخېل پښــــــتنه اوکــــــړه د خــــــاکروب[383]

حسېن په خپلو شعرونو کې د شاخېل يادونه داسې کړې ده:

پــــه تـــش خـــوراک يــــې تســــلي زمــــا د زړه نــــه کيـــږي
شـــاخېل د هجـــر ورتــــه پــــروت دی پــــه تســــمو وخکـــو کـــې[384]
ښـــــه خصـــــلت د شـــــاخېل لويـــــه مرتبـــــه ده
څـــــه پکــــــار دی رزالــــــه عـــــــالي نســــــب[385]

لـه دې اخـري شـعر نـه دا پتـه لگـي چـې مختلفـو پېشـو او کسـبونو تـه هـم پـه سپک نظـر کتـل کېـږي او خـبره تـر دې حـده رسـېدلې، لکـه څنگـه چـې وړانـدې ذکـر شول، چې ځينې پېشې له يو خاص نسب يا نسل سره تړل شوې دي.

## مشکار

څوک چې بازان ساتي هغه ته مشکار وايي. محمد اکبر په يو شعر کې د مشکار لفظ داسې استعمال کړی دی:

د مشــــــکار پـــــه منګولـــــــه کلـــــه قــــــرار کانـــــــدي
هغــــــه بــــــاز چـــــې وي پــــه خيــــال کــــې وهنـــــدى[386]

## سنيار، ډم، ميراثي، پاړو

د سنيار، ډم، ميراثي، پاړو، کسبګر او نورو ذکر په لاندينو شعرونو کې شوى دى:

احمد دين طالب د سنيار ذکر داسې کوي:

چـــــې د عقــــــل يــــــې کنـــــډه پـــــه سر کـــــې نــــــه وي
تخمينــــــــي مــــــوزون د داســــــــې ســـــــنيار نــــــه شي[387]

احمد دين طالب د ډم، پاړو او کسبګر ذکر داسې کوي:

مـــــاګمان پـــــه تاکـــــاوه چـــــې تـــــه پښــــتون يــــــې
تــــــه پـــــه مثــــــل مــــــيراثي د تــــــيراه خوســــــت يــــــې[388]

په دې شعرونو کې هم په پښتون کېدلو يو فخر ښکارېږي او نورو پېشو ته په سپک نظر کتل شوي دي. حسېن د ډم ذکر داسې کوي:

ســــــتا د مينــــــې ربـــــاب ډم پـــــه ورانـــــه کېښــــــود
پــــه نغمـــــو يــــــې چــــاک ګريبــــان شوســــا لکــــان ګـــــډ[389]

احمد دين طالب د پاړو ذکر داسې کوي:

چــــــې پـــــه ځنـــــګ کــــــې دې پــــــاړو د وصـــــال نشــــــته
د بېلتــــــــون ډنــــــــداري ځــــــــه لــــــــه پـــــــــاروې[390]

لا دې دم د چرمښــــــــــکې زده کـــــــــــړى نـــــــــــه دى
وړانــــــدې لاس نـــــه کـــــړې د مــــــار لـــــړم مســــکن تـــــه[391]

حسين د پاړو ذکر داسې کوي:

هـــــــيڅ ارام يــــــــې د پـــــــاړو پــــــه منـــــــتر نــــــه شي
هـــــپ ځــــوک ســـــتا د تـــــورو زلفـــــو ښــــامار کــــــړه[392]

احمد دين طالب د کسبګر ذکر داسې کوي:

کســــــب ګـــــر چــــــې د تمــــــام کـــــلي خــــــدمت کــــــړي
د تمــــــام کــــــلي خــــــادم مــــــه ســــــاته جنـــــګ لـــــــه[393]

د رياست سوات له اول وخت، يعنې له ۱۹۱۵م نه مخکې د کسبګر په باره کې مخدوم تصدق احمد داسې ليکي:

The term Kasabgars may be translated as artisans. However, all artisans were not Kasbgars. This term was applied to the nai (barber), the ainger (blacksmith), the tarkan (carpenter), kakhai(Person who guards the village fields), though the mochi (shoe maker), the teli (oil presser), the jola (weaver) also existed but were not included in the group of kasabgars. The difference between those artisans who were known as Kasabgars, and those who were not known so, lay in their relationship to the Pakhtuns. The kasabgars migrated with the Pakhtuns to their new homes after every wesh, the Pakhtuns on the other hand did not employ any other Kasabgars. Payment for their professional services was not made in cash but either a piece of land was given to them or a fixed share in the harvest per plough was given to them twice a year. The teli, the mochai, the jola did not attach themelves to any group of Pakhtuns and worked independently, though the protection of some Khan or the Malak was a necessity. There were no qasahis (butchers) dhobis (washerman) and darzi (tailor). Women washed and stitched in the homes.[۳۹٤]

ترجمه: د کسبګر ترجمه هنرمند کېدلی شي، خو ټول هنرمندان کسبګر نه وو. د دې اصطلاح اطلاق به په نايي، ترکاڼ، کخي، موچي، تېلي او جولا باندې کېده. کومو هنرمندانو ته چې کسبګر ويلی شي او کومو ته چې نه شي ويلی د دې دواړو فرق له پښتنو سره د دوی د تعلق په بنياد و. کسبګر به د پښتنو په نوي وېش کې له هغوی سره منتقل کېده او دغه رنګ پښتنو به نوي کسبګر نه نيول. د دوی د خدماتو په صله کې به دوی ته نغدې روپۍ نه شوې ورکولې، يا به د زمکې يوه حصه ورکول کېده او يا به د فصل په حساب په کال کې دوه ځله غله ورکول کېده. تېلي، موچي او جولا به ځان د پښتنو له يوې خاص ډلې سره نه تړه، بلکې ازاد کار به يې کوه. اګرچې د يو خان يا ملک تحفظ به ورله پکار و. قصابان، دهوبيان او درزيان به نه وو، ښځو به جامې وينځلې او ګنډلې. يعنې کسبګر هغه

هنرمندان وو چې خپل کار کسب به یې ځان ته ازاد کولو او کومو هنرمندانو چې به ځان په یوې ډلې پورې وتړه، نو هغوی ته به پیسې نه شوې ورکولی او ورته به یې کسبگر وایه.

## د نورو کلتورونو ذکر

لکه څنګه چې په دربیم باب کې په سوات کې د نورو کلتورونو او تهذیبونو ذکر شوی دی، نو دا معلومېږي چې اګر که دغه تهذیبونه څه وخت وروسته ختم شوي، خو د هغو اثرات لا اوس هم باقي دي؛ دغه وجه ده چې د سوات د پښتو ادب د وړومبي دور په کتابونو کې د پښتنو له کلتور نه بهر د ځینو نورو کلتورونو هم حوالې موندل کېږي،لکه دا:

## زنار

د هندوانو له مرۍ نه چې کوم تار تاو وي هغې ته زنار وایي او د عیسایانو یا د مجوسیانو له ملا نه چې کوم زنځیر تړل شوی وي هغې ته هم زنار وایي. په دې شعرونو کې د زنار ذکر شوی دی:

کـــه رقیـــــب دی خـــــوار هنـــــدو زنـــــار پـــــه غـــــاړه
خـــــدای زمـــــا پـــــه ځـــــان پښـــــتون کـــــه الغیـــــاث[۳۹۵]
پـــــه هـــــر ځـــــای چـــــې عشـــــق نغمـــــه پـــــه رښـــــتیا او کـــــا
هنـــــدوان او شـــــلوي لـــــه شـــــوقه زنـــــا رونـــــه [۳۹۶]

د میا داد په دې شعرونو کې زنار ذکر شوی دی:

پـــــه خپـــــل کـــــرم سره مـــــې وځکـــــوه خپـــــل درګـــــاه تـــــه
او د میـــــا داد پـــــه غـــــاړه خپـــــل ګنـــــاه زنـــــار مـــــه کـــــوه[۳۹۷]

دا د ظـــــاهر خرقـــــه دې عـــــېن د دینـــــدار وینمـــــه
د خرقـــــې لانـــــدې پـــــه غـــــاړه دې زنـــــار وینمـــــه[۳۹۸]

د میا کریم داد په یو شعر کې زنار داسې یاد شوی دی:

بـــــت پرســـــت تـــــه پـــــه بـــــت کـــــې مـــــخ څرګنـــــد کـــــا
لـــــه هنـــــدو سره و پـــــار کـــــا پـــــه زنـــــار کـــــې[۳۹۹]

او عبدالحلیم د زنار ذکر داسې کوي:

دغـــــه پســـــه دغـــــه فرښـــــته بـــــه و قهریـــــږي

چـــــې تـــــه بــــــدي ولــــــې نــــــه ښـــــکوینه
د قیامــــــت چـــــارې دې نـــــه بــــاور کېدنــــــه
دغــه پســه بــه بــدي وښــکي چــې پــه غــاړه یــې زنــار شي[٤٠٠]

په فوائد شریعت کې اخون قاسم پاپین خبل لیکي، چې که څوک بې ضرورته په ملا زنار تړي، نو کافر کېږي .[٤٠١] احمد دین طالب د زنار ذکر داسې کوي:

یقــــین نــــه دی چـــې اســـلام تــــه غــــاړه کیــــږدي
چـــــې تــــر غـــــاړه کـــــړي زنــــار د دې دنیـــــا[٤٠٢]

دوست محمد خان دوستی زنار داسې یادوي :

سر تــــور سر لـــــه کـــــوره راغلـــــه پـــــه تلـــــوار
د خلیــــــل پــــــه مینــــــه یــــــې وشـــــلاوه زنـــــار[٤٠٣]

څــــــوک پــــــه دنیـــــــا کــــــــې زناکـــــــار وي
بـــــــاطن پـــــــه پـــــــروت ورتـــــــه زنـــــــار وي[٤٠٤]

## رسم ستي

د ستي رسم د هندوانو یو مشهور رسم و، په کوم کې چې به یوه ښځه د خپل خاوند په مرگ له هغه سره ژوندۍ سوځول کېده. د هندوانو د دې مشهور رسم یادونه میاداد داسې کوي:

د ســـــتي اختیــــار وگـــــوره وېــــره نــــه کانـــــدي لــــه اوره
چـــې لـــه یـــاره سره اوســـوه بـــل څـــه نـــه وینـــې بـــې یـــاره
دې ســـتۍ خبلـــه چـــاره اوکـــړه زړه یـــې و دود تـــه ځـــار کـــړه
کــل مقصــود بــه دې حاصــل شي کــه خــبر شــې لــه اسراره[٤٠٥]

او بل ځای داسې وایي:

او هغــــه ســــتۍ پتــــۍ ژونـــدۍ وه لــــه یـــار اوســـوه
او تــــه بــــې پتــــه هنــــدوگی بیرتــــه لــــه نــــارگر ځــــې[٤٠٦]

حسېن د رسم ستي ذکر داسې کوي:

آفـــــرین پــــه لـــــوی همـــــت د ســــــتي بویــــه
غـــــورزوي یـــــې سرو لمبـــو تـــــه د اشـــــنا پـــــت[۴۰۷]

حافظ الپوری داسې وایي:

بـــــد روشــــــه ســــــتۍ ځکـــــه شــــــوه نامـــــداره
چـــې ونـــار تـــه نـــازک تـــن د یـــار پـــه پـــت بړدي[۴۰۸]

عبدالعظیم صواتی دا رسم داسې یادوي:

د ســـــتۍ پــــه شــــان بــــه ســــوزم سر تـــــر پایــــه
چـــې تـــازه مـــې کـــړه خپـــل ځـــان وتـــه نـــیران بیـــا[۴۰۹]

پـــه رخســـار کـــه تـــورې زلفـــې گـــال گـــوتي کـــړې
عاشـــــقان بـــــه د ســــــتۍ پــــه دور ســـــتي کـــــړې[۴۱۰]

کــــه صـــــورت یـــــې د ســــــتۍ پــــه دود ســــتي شي
پـــــرې بــــه نــــه بړدي عاشــــقان د عشــــق ســــبق[۴۱۱]

## د راجپوت قبر

د هندو قبر یا د راجپوت قبر خلک په عامو خبرو کې د مثال په توگه کاروي. حافظ الپوری د رجپوات قبر داسې یادوي:

قـــــبر د راجپـــــوت وي ســــــپین اهــــک روښــــانه بریښــــي
لــړ چـــې یـــې لـــړ ســـېر کـــړم ایـــرې شـــوې وي پـــه میـــان کـــې[۴۱۲]

مطلب دا چې هندو خو سېزلی شي، خو که د یادگار په توگه ورته چرته قبر جوړ کړي، نو په هغه قبر کې د هغه لاش نه وي. له دې نه دا مطلب هم راوځي چې په ظاهري صورت ښکلی وي، خو دننه پکې څه نه وي.

## جوگي

د سحر، جادو او جوگ روایت په سوات کې له زمانې راهیسي موجود دی، چینیانو هم په خپلو سفرنامو کي په سوات کې د جادو ذکر کړی دی. د جوگي ذکر میاداد داسې کوي:

غـــه هـــر چـــې وښ کـــړي ښـــاماران هغـــه بـــه رغيـــږي
زه د جوګيـــانو جـــړی خورمـــه چـــې ښـــا مـــار لـــره ځـــم[٤١٣]

جړی یو بوټی دی چې د تنې رنګ او شکل یې د مار په شان برګ برګ وي، د دغه بوټي په اړه دا ويل کېږي، چې دا بوټی څوک وخوري، نو د مار ذهر پرې اثر نه کوي:

احمد دين طالب داسې وايي :

د جوګيـــــانو تـــــرو يتيـــــانو عمـــــل سســـــت شـــــه
عالمـــــان يـــــې وو ديـــــدن پســـــې شـــــبکور[٤١٤]

دلته که مونږ وګورو، نو په ادب کې که د بل کلتور ذکر راغلی، نو هغه د هندومت دی، دا ځکه چې دلته په بدهـ مت پسې هندو مت راغلی و او په هندو مت پسې اسلام راغلی دی، يعنې اسلامي کلچر ته نزدې که کوم کلچر و، نو هغه هندو مت و، نو ځکه پر ادب د هندو مت اثرات ښکاري.

### توهمات

په هغو خبرو يقين ساتل چې د هغې څه حقيقت نه وي دې ته توهمات يا توهم پرستي وايي. د سوات د پښتو ادب په وړومبي دور کې هم د ځينو توهماتو ذکر موندل کېږي، لکه احمد دين طالب وګورئ:

پـــــه لســـــم پـــــه څلـــــورم د محـــــرم
نـــوی کـــار نـــه کـــړې شروع نـــه راځـــې ســـم
د صـــــفر اول دويـــــم تـــــاريخ ســـــپېره دي
د اول ربيـــــع دويـــــم دريـــــم دی خـــــم
د ثـــــاني ربيـــــع اول او پينځلســـــم کـــــې
پـــه شروع د نـــوي کـــار کـــې جـــوړ شي غـــم
د اول جـــــماد لســـــم کـــــه پينځلســـــم دی
ځـــان ســـاته تـــرې کـــړه يقـــين زمـــا پـــه فهـــم
د ثـــاني جـــماد دويـــم پـــه څلـــورم کـــې
نـــوي کـــار وتـــه چـــې وانـــه خلـــې قـــدم
د رجـــــب يولســـــم دولســـــم دواړه

د شـــــعبان پـــــه څلـــــورم شـــــپږم کـــــې هـــــم
پـــــه رمضـــــان کـــــې فـــــال کـــــوه درېـــــم اتـــــم نـــــه
د شـــــوال ووم اتـــــم نـــــه دی پـــــه نهـــــم
ذوالقعـــــده کـــــې د دویـــــم درېـــــم نـــــه خـــــوف کـــــړه
بـــــې شـــــبهې ورتـــــه ســـــپېره وایـــــي عـــــالم
پـــــه شـــــپږم شـــــلم تـــــاریخ د ذوالحجـــــې کـــــې
منحـــــوسي گهړيـــــال غرېـــــږي دم پـــــه دم
دي منحوســـــې دا څليريشـــــت ورځـــــي کـــــال کـــــې
احمـــــد ديـــــن طالـــــب چـــــې ليـــــک کـــــړې پـــــه قلـــــم[٤١٥]

په کال کې له دې څليريشتو ورځو علاوه ځينې خلک په هفته کې هم ځينې ورځې سپېرې گڼي او په هغه ورځ څه نوی کار شروع کول يا په سفر روانېدل ښه نه گڼي. د ازار يا نظر او د هغې د علاج په باره کې دوست محمد دوستی داسې ليکي:

او د شـــــاه چـــــې پـــــرې مـــــرض شـــــولا بـــــې شـــــانه
دا ازار بـــــه وي يـــــا نظـــــر ديـــــو انســـــانه
چـــــې پـــــه ازار شي څـــــوک مـــــريض يـــــا پـــــه نظـــــر
نـــــور پـــــه هغـــــه د چـــــا دارونـــــه کـــــړي اثـــــر
بـــــې لـــــه دې نـــــه راتـــــه نـــــور څـــــه نـــــه ښـــــکارېږي
چـــــې مـــــرض د بادشـــــاه دا رنگـــــه زيـــــاتېږي
اوس کـــــه خوښـــــه وي کـــــوه دا هســـــې کـــــار
چـــــې زيـــــارت لـــــه يـــــې چرتـــــه وړلوپـــــه تلـــــوار
کرامـــــت د اوليـــــاؤ دي ښـــــه حـــــق
شـــــک تـــــه مـــــه کـــــوه پـــــه دا کـــــې هـــــېڅ مطلـــــق[٤١٦]

له دې شعرونو نه پته لگي چې کله به په چا بد نظر اولگېدلو، نو د علاج يا د بد طبېر د اثر د زايلولو لپاره به يې زيارت ته وړه. د نظر د علاج لپاره خلک سپېلني لوگی کوي. په دې باره کې احمد دين طالب داسې وايي:

ســـــپېلنی زمـــــا د صـــــبر پکـــــې ســـــوزي
د مجمـــــر غونـــــدې پـــــه زړه کـــــې انگـــــار ويـــــنم[٤١٧]

حسېن داسې وايي:

شـــــين لـــــوگی د ســــــپيلنو راخخـــــــه خيــــــژي
اچـــــولی يـــــې ډېـــــر ځلـــــه يــــم مجمــــــر تــــــه[٤١٨]
ښـــــه چــــې ســـــتا پـــــه ځېـــــر بشرــــ پـــــه جهـــــان نشـــــته
رب دې مــــــا درتـــــــه لـــــوگی کـــــــړه لکـــــــه ســــــپند[٤١٩]

دوست محمد خان دوستی د گبين په باره کې په يو واقعه کې داسې ليکي:

چــــــې دا ســـــترگې زمـــــا و چـــــې شي ښـــــې پـــــاکې
ای زبابـــــه کـــــه د ځښـــــو کـــــار کـــــې چـــــالاک يــــــې
نـــــــور مگـــــــس لـــــــه دې خـــــبرې کـــــــړو انکـــــــار
زرمچــــــــــی تــــــــــه امــــــــر وکـــــــــړه کردگـــــــــار
د حضرـــــــــت دا اوښـــــــه وختـــــــه پـــــــه مينـــــــه
زه بـــــــه ســـــــتا روزي کـــــــړم تـــــــل (ښـــــــه) لـــــــه گبينـــــــه
هـــــــم بـــــــه ســـــــتا کړمـــــــه خـــــــوراک همېشـــــــه گـــــــل
او د ده بـــــــه کـــــــړم بـــــــې نمـــــــازه پليـــــــت غـــــــول
چـــــــې خبرلـــــــه دې احوالـــــــه شـــــــه مگـــــــس
پـــــــه انکـــــــار خپـــــــل شـــــــه پښـــــــېمانه يـــــــو پـــــــه لـــــــس
اوس منگـــــــــولې همـــــــــېش مـــــــــروړي ترقيامـــــــــت
د حضرـــــــت اوښـــــــې پســـــــې پـــــــه هـــــــر ســـــــاعت[٤٢٠]

د يوسفزو د توهم پرستی په باره کې بيليو داسې ليکي:

Their superstition is incredulous and has no limits. Miracles, charms and omens are believed in as a matter of course. An inordinate reverence for saints and the religious classes generally is universal, and their absurdly impossible and contradictory dicta are received and acted on with eager credulity. The ziarat or "sacred shrine" is habitually resorted to by all classes and both sexes. At these the devotees confess their Sins and implore forgiveness, unburden their hearts of all manner of secret desires, and beseech favours, all in the full belief of a sure hearing and answer.[٤٢١]

ترجمه: د دوی توهمات د یقین کولو قابل نه دي، په عمومي توګه دوی په معجزو، جادو او فالونو باندې یقین ساتي. له ولیانو او مذهبي ډلې سره عقیدت عام دی او د هغوی بیهوده، ناممکنه او متضاد حکمونه اوري او ډېر په شوق او یقین سره پرې عمل کوي. زیارت ته د هر کلاس خلک نارینه او زنانه په باقاعدګی سره ځي. دلته کې عقیدت مندان د خپلو ګناهونو اعتراف کوي او د مغفرت سوالونه کوي. دوی د خپل زړه د پټو رازونو بوج دلته سپک کړي او د رحم طلب کوي او د ټولو دا پخه عقیده وي چې دا سوالونه اورېدل کېږي او جواب یې هم ورکول کېږي.

د توهماتو په سلسله کې ښځې له سړو نه ډېرې وړاندې دي، ښځې ښېرې هم ډېرې کوي او په توهماتو یقین هم ډېر ساتي. ده ښېرو او سپېره والي په باره کې حسېن وایي:

لېـــــدی نـــــه شي نـــــام نشـــــان د هغـــــو خونـــــو
چـــــې وهلـــــې مظلومـــــانو پـــــه ښـــــېرو دي
بـــــې غمـــــې پـــــه عاشـــــقانو نـــــاروا شـــــوه
نصـــــېبونه کـــــاږه کـــــېنې د دې ســـــپېرو دي[٤٢٢]

څومره چې تعلیم او پوهه زیاتیږي، نو دا قسمه توهمات کمېږي. دا قسمه توهمات په کلیوالو او بې تعلیمه خلکو کې نسبتاً د ښار له خلکو نه زیات وي.

## تعلیم حاصلول

د دې دور د ادب له مطالعي نه دا معلومېږي چې وړومبی زدکړې به خلکو په کور کې له مور و پلار یا نیا نیکه نه کولې، یعنې بنیادي د عقیدې خبرې، کلمه او مونځ به یې په کور کې له مشرانو نه زده کول، په خصوصي توګه مونځ به په کور کې ماشومانو ته د ماسخوتن په وخت نیا زده کولو، کوم طرف ته چې په دې شعر کې خوشحال خان اشاره کړې ده:

الغـــــرض چـــــې یـــــې خـــــبره کـــــړه اغـــــازه
ډېـــــر یـــــې وویـــــل د خپلـــــې نیالـــــه نمـــــازه[٤٢٣]

له دې وروسته به باقاعده زدکړې د جومات له ملا نه کېدلې، لکه څنګه چې اخوند درویزه وایي چې ملا مصراحمد راته په تختی حروف تهجي ولیکل،[٤٢٤] چې څوک به تصوف

ته تلل نو هغوی به "جام جهان نمائی" کتاب ویلو.[٤٢٥] بیلیو د یو ماشوم د تعلیم په باره کې داسې لیکي:

After circumcision, the young yusafzai is taught his creed and the ordinary forms of prayer, and is instructed in the principal tenets and observances of the Mahommdan religion; and this, with but few exceptions, is all the education he receives.[٤٢٦]

ترجمه: له ختنه کولو وروسته یوسفزي ماشوم ته بنیادي عقیده، دعاګانې او مونځونه ښودل کېږي. بنیادي عقېدې او د محمدي مذهب د پابندۍ هدایات ورته کوي او له ډېرو کمو خلکو علاوه د زیاتو لپاره دا ټول تعلیم دی. د علمي تحصیلاتو د لوازماتو ذکر د عبدالحلیم په دې اشعارو کې موندل کېږي:

دغــــــه پســـــــه دا مـــــــــږده ورتــــــــه وایـــــــي
چـــــــې مشـــــــوانۍ تــــــوري قلــــــم راخخـــــه نشـــــته
نـــه مـــې ګـــوتې دي پـــه لاس کـــې چـــې یـــې چـــاپ کـــړم
دا مـــــــــــــــږده پکـــــــــــــې حصـــــــــــــار شي[٤٢٧]

د مهر لپاره به د ګوتۍ چاپ استعمالولی شو، هغې طرف پکې هم اشاره شوې ده.

## علم کیمیا

د سوات په پښتو ادب کې د مختلفو علومو حوالې او ذکر موندل کېږي، لکه د سوات د پښتو ادب په وړومبي دور کې د علم کیمیا ذکر داسې شوی دی:

دا وصـــــــــــــــــــــال دی د خوبـــــــــــــــــــــانو
یـــــــــــــــا دولـــــــــــــــــت دی د کیمیـــــــــــــــــا[٤٢٨]

د کیمیا ذکر احمد دین طالب داسې کوي:

کـــــه لعـــــاب د لاشـــــوړې راولـــــې خیـــــال کـــــې
د دریـــــاب نـــــه بـــــه آب راوړې پـــــه غربـــــال کـــــې
نشـــــادر سرکـــــه کـــــې بـــــېض خـــــه ورځـــــې کېـــــده
کـــه یـــې بیـــا یـــې د بوتـــل پـــه تنـــګ جـــوال کـــې
پټکـــــړي نـــــیلا طوطـــــا نشـــــادر خلـــــط کـــــړه
کـــه دې نیـــت وي د آهـــن پـــه خـــط و خـــال کـــې

اول خــــط د مــــون د مــــوم پــــه آهــــن اوکــــړه
نــــور آهــــن اوســــاته پــــټ د مــــوم پــــه جــــال کــــې
جلــــوترې کــــې کــــه ســــیماب یــــو ســــاعت لعــــل کــــړې
شي مســــکه بــــه ســــیاه رنــــګ پــــه هاغــــه حــــال کــــې
احمــــد دیــــن درتــــه یــــو ښــــو خــــبرې اوکــــړې
هــــیڅ شــــک نشــــته د طالــــب پــــه قیــــل و قــــال کــــې[٤٢٩]

بل ځای د کیمیا ګر ذکر داسې کوي:

هــــر کســــبه اســــباب د کســــب تــــه محتــــاج وي
بادشــــاهان د کیمیــــا ګــــر پــــه کــــمال خــــوښ وي[٤٣٠]

دوست محمد خان دوستی د کیمیا په باره کې وایي:

کــــه د دنیــــا کیمیــــا دې زده شــــوله دوســــتیه
د حضرــــت دیــــن تــــل کــــوه دا ســــتا کیمیــــا ده[٤٣١]

حافظ الپوری د علم کیمیا ذکر داسې کړی دی:

غــــواړم نظرستاســــو چــــې کیمیــــا ســــنګ فــــارس دی
زر بــــه شي کــــه اوګــــورئ و اوســــپنې رصــــاص تــــه[٤٣٢]

پــه دې شــعرونو کــې د مختلفــو کیمیــایي اجــزاوو او د کیمیــایي مرکبــاتو ذکــر راغلی دی.

## علم نجوم

په فوائد شریعتکې د نمر مختلف برجونه، لکه برج سرطان، اسد، سنبله، حمل، ثور، جوزا، میزان، اقرب، قوس، زحل، زهرا، مریخ وغېره یاد شوي دي. [٤٣٣]

حافظ الپوری هم د مختلفو ستورو خصوصیات ذکر کړي دي:

د ګــــردون ګــــردش مــــې راســــت لــــه زیســــته نــــه شــــه
زر یــــې اوویســــتم د وصــــل لــــه ایوانــــه
لــــه قمــــر مــــې مــــروت مــــدام بیانــــه مونــــد
عطــــارد پــــه عطانــــه کړمــــه شــــادانه
زهــــرې زهــــر زقــــوم راکــــړل زبــــون حــــال شــــوم

په اندوه مې چنګ بربط وهي خندانه
له خورشېدله شېده هېڅ اسوده نه شوم
يو خردل سود يې رانه کړه بې له زيانه
له مريخ له رخه نه شوم فراخ دسته
تنګ دستي مې په هر حال شوه بې کرانه
مشتري په مشت کې قندتري رانه کړه
که مې طمع وه له لطفه له احسانه
راته نه کړه زحل د فرخ غوټه
لا يې سخته کړه له بغضه له عدوانه
پارينه زړه مې پروينو دوخته نه کړۀ
تلو تول زما خفيف کړه له هر چانه
فرقدينو نه کړم خلاص له غم له دينه
زړه افګار په فراقت ديده ګريانه
مظبوط مزی د تمکين مې ګسسته شۀ
پيوند نا خلي له عيوقه له کيوانه
سياره مې غمګسارا ياران نه شوه
په وصال يې سرور نه کړم له جانانه
ثوابت مې ثابت نه شه په غربت کې
بې فروغه يې کړم له بخت د چراغدانه
کواکبو مکب پړمخي ارتاؤ کړم
لکه اولويړي راکب د اس له شانۀ
سما سم نه کړه زما سهم هدف ته
په ستم يې خميده کړم ترکمانه
په مخلوق اعتمادمه کوه حافظه
مدد غواړه له خالقه مستعانه[٤٣٤]

په دې شعرونو کې حافظ الپوری د دې خبرې کوښښ کړی، چې څوک په ستورو او د ستورو په فال يقين ساتي، نو دا غلط کار کوي او دا ستوري يو مخلوق دی او دا انسان ته

هېڅ ګټه یا تاوان نه شي رسولی، انسان ته صرف له یو الله نه مدد غوښتل پکار دي.
احمد دین طالب هم په یو شعر کې زهره او مریخ داسې یادوي :

وزرونـــــــــــــه د ایمـــــــــــــان د مارغـــــــــــــه دوه دي
د یـــــــــو مثـــــــــل دی زهـــــــــره د بـــــــــل مـــــــــریخ[٤٣٥]

عبدالعظیم صواتی هم د فالنامې او ستورو ذکر داسې کوي:

فالنامـــــــه چـــــې مـــــې د عشـــــق ملاحظـــــه کـــــړه
پـــــه نصـــــیب مـــــې شـــــه مـــــریخ، طـــــالع، زحـــــل بیـــــا[٤٣٦]

بل ځای داسې وایي:

همېشـــــــه یـــــــې بخـــــــت بېـــــــدار لـــــــري خاونـــــــده
مشـــــــتري یـــــــې پـــــــه مطلـــــــع کـــــــې د زحـــــــل کـــــــړې[٤٣٧]

خو د نجومیانو په خبرو د یقین کولو په باره کې اخوند قاسم پاپین خېل وایي که څوک په دې یقین وکړي هغه سړی مطلق کافر دی او بیا وایي که څوک د نجومي نه تپوس کوي او عمل پرې کوي نو څلوېښت ورځې به یې [عبادت] نه قبلیږي. [٤٣٨] په پینځم باب یعنې د سوات د ریاستي دور په پښتو ادب کې هم د ستورو او د علم نجوم حوالې ذکر دي.

## موسیقي

موسیقي په څه نه څه شکل کې په هر تهذیب او کلتور کې موندل کېږي او د سوات د پښتو ادب په هر دور کې هم د موسیقۍ ذکر په څه نه څه حواله موندل کېږي. د سوات پښتو ادب په وړومبي دور کې چې د موسیقۍ د کومو الاتو نومونه موندل کېږي هغه دا دي: چنګ، رباب، ډمامه، نفیل، سرنا، شپېلۍ او نور، له دې علاوه د دې دور په کتابونو کې د موسیقۍ او سرود د حرام والي په باره کې هم حوالې موندل کېږي. د موسیقۍ په باره کې په مخزن الاسلام کې د موسیقۍ ذکر داسې شوی دی.

١. لکه سرود وي یا شپېلۍ یا آواز به یې څوک اوري یا به رقص کا په دوی دغه فعل د شېطان. [٤٣٩]
٢. دریم مذهب د شمراخي کا فرانو دي ناروا رواکوینه ـ دوی وایي د هغو چې له ښځې خدایه اشنایي شوه امرنهي څه لره په ځائی کوینه ـ هم هسې هر آواز چې وي د دف یاد شپېلۍ هم له چنګه له ربابه دغه سپي ئې اورېده رواکوینه. [٤٤٠]

اخون کريم داد په يو شعر کې داسې وايي:

هـــم دا بـــد اواز نـــه اورې هـــم د بـــد پـــه لـــوري نـــه ځـــي
لکـــه سرود ځـــوک غږوينـــه، لـــوبې يـــا سرود کـــا پـــه واده کـــې[٤٤١]

او په بل ځاى کې داسې وايي:"غوږ نگاه کړه له جمله بده آوازه لکه د چنگ ياد رباب ياد شپېلۍ وي" .[٤٤٢] کريم داد په يو شعر کې د سرود په باره کې داسې وايي:

پـــــــه دا دوه اواز خـــــــــدائى لعنـــــــــت وئېلـــــــــى
يـــــــو د سرود بـــــــل د ويـــــــر پـــــــر خوشـــــــحالۍ[٤٤٣]

د سماع يا د موسيقۍ اورېدو په باره کې فوائد شريعت ليکي چې "مشائخ صوفيا که ؤ سماع ته مباح وائي دا به هغه صوفيان وي چې به د نفساني خواهشاتو خالي وي ـ دوى به د تقوىٰ په ښائست ښائسته وي اوسماع ته به محتاج وي. د دوى مثال هغه داسې بيانوي لکه يو بيمار چې دارو ته محتاج وي. هغه وړاندې د جنيد بغدادي روايت نقل کړى دى او وايي چې که څوک يو سړىويني چې طالب د سماع وي نو پوهه شئ چې په دې کې به د فساد اثر وي.[٤٤٤]د چنگ، رباب او د موسيقۍ د نورو الاتو نومونه د علامت په طور په دې شعرونو کې موندل کېږي:

د هجـــــران پـــــه شـــــپه ربـــــاب و ځـــــان تـــــه کېـــــږدم
ســـــــتا غمونـــــــه تېـــــــروم پـــــــه ترانـــــــه کـــــــې[٤٤٥]

تـــه مهـــى د دغـــه رود يـــې کـــه شـــينوا پـــه دا سرود يـــې
او د دريـــاب جرجـــوړې اوره چنـــگ چغانـــه مـــه پوښـــتنه[٤٤٦]

زه عاشـــــق چـــــې ســـــتا د عشـــــق شراب اوتـــــاب غـــــواړم
ورسره يـــــې کـــــل سرود چنـــــگ وربـــــاب غـــــواړم[٤٤٧]

هغـــه چنـــگ ربـــاب مجلـــس مـــې پـــه خلـــوت دننـــه
بـــيرون جماعـــت کـــې عبـــادت کـــوم شراب چـــرې[٤٤٨]

دا سرود مجلـــــس حــــرام دی پـــــه څلـــــور مذهبـــــه
زه مئـــــېن ســـتا د ربـــاب پـــه دوه تـــاري شـــوی یـــم[٤٤٩]

غـــــه عاشـــق لکـــــه لـــــولي پـــــه نڅـــا گـــډ د ذکـــــر
زه یــــــې دور ډمامـــــــه نفیـــــــل ســــــورنا وینمــــــــه[٤٥٠]

احمد دین طالب په خپل دیوان کې د الات موسیقۍ ذکر داسې کوي:

د یـــــــار غــــــم مـــــــې ژړوي لکـــــــه ربـــــــاب
نـــه پـــه ویښـــه مـــې قـــرار شـــته نـــه پـــه خـــواب[٤٥١]

تـــار پـــه تـــار کـــړه زړه درمنـــد ربـــاب پـــه عشـــق کـــې
فریـــاد نـــه کـــړي چـــې پـــه زړه نـــه وي دردمنـــد څـــوک[٤٥٢]

د ربــــــاب د سرینـــــــــدې وهـــــــل یـــــــې زده وي
نـــــه پـــــــوهېږي د قـــــرآن پـــــه پرانســـــــتو
پـــــه ســـــکول د موســـــیقۍ کـــــې شـــــاگردي کـــــړي
میـــــا مـــــلا وتـــــه څـــــوک وایـــــي نتـــــو[٤٥٣]

احمـــــد دینـــــه پـــــرې ناپوهـــــه نـــــه پـــــوهیږي
کـــــه کوټـــــه وي د ربـــــاب د پاســـــه تـــــاریو[٤٥٤]

چپـــه خولـــه لکـــه المـــاس هـــنر ښـــکاره کـــړه
میـــــنځ خــــالي ښــــکاري د ډول پـــــه ډزېــــدو[٤٥٥]

چـــې پـــه کـــور کـــې د دشـــمن دې غـــم غږیـــږي
پـــه محفـــل د خوشـــحالۍ کـــې ټنـــگ او نـــه کـــړې[٤٥٦]

سرودگـــــــر چـــــــې د سرود مجلـــــــس آغـــــــاز کـــــــړي
وړپســـــــې د جماعـــــــت نـــــــه مـــــــونځ گـــــــذار ځـــــــي[٤٥٧]

لــه دې نــثري او شــعري حوالــو نــه دا معلومــه شــوه چــې د دې دور ليکــوالان مـذهبي خلـک وو او د هغـوی پـه خيـال موسـيقي جـايزه نـه وه او دا يـې ښـه نـه گڼلـه، خــو بــاوجود د دې هغــوی پــه خپلــو شــعرونو کــې د مثــالونو او تشــبيهاتو لپــاره د موسيقۍ د ټولو الاتو نومونه کارولي دي.

## مادي فوکلور

زمونږ د ثقافت هغه څيزونه چې په مادي شکل کې موندل کېږي د هغوی ذکر هم د سوات د ادب په دې دور کې په نظر راځي. په دې کې زېورات، يعنې کالي پټري، وسلې او نور عام څيزونه شامل دي.

## کالي

کله چې يوسفزي سوات ته راغلل نو هغه وخت کې به سړو هم د سرو زرو يا سپينو زرو حلقې په غوږ کولې، په دې باره کې تواريخ حافظ رحمت خاني کې ليکي چې د سوات د ټولو سلطانانو دا دستور و، چې هر څوک به سلطان و، نو د سرو حلقې به يې په غوږ کې پرتې وې او د بل چا دا قدرت نه و چې د سرو زرو حلقې يې په غوږ کولې، نورو نامدارانو به د سپينو زرو حلقې په غوږ کولې. کله چې اول اول کې يوسفزي سوات ته راغلل نو د سرو زرو حلقې به يې په غوږ کولې کومې به چې د کشميريانو په دود ورژلې منقّشې به وې، خصوصاً په مندړو کې به زياتي بهزاد خېلو صدوزو په غوږ کولې او په يوسف نامه زياتې اکوزيو خصوصاً اماخېلو موليزيو به په غوږ کولې.[٤٥٨] تواريخ حافظ رحمت خاني بل ځای ليکي چې محمود بن شاهان يوسفزي د تالاش له يو کس سره په جنگ شۀ او هغه يې مړ کړ او د سپينو زرو دوه حلقې يې په غوږ وې هغه يې ترې وکښلې وائي خستلې.[٤٥٩] د بابر بادشاه څنگ ته چې ملک احمد او يو ښائسته سرودي هلک ادو، آفغانستان ته تلي وو، نو بادشاه ادوله د سرو زرو دوه حلقې د غوږو ورکړې وې.[٤٦٠] له دې نه علاوه د دې دور په ادب کې د زنانو د ډېرو زېوراتو ذکر هم موندل کېږي، لکه مياکريم داد د غاړې هميل (اميل) داسې يادوي:

یـــــو همیــــــل یـــــې کــــړه پــــه غـــــاړه
رنگـــــار نـــــگ بـــــازۍ کانـــــدي[٤٦١]

کـــه یـــــو حـــــرف دې ځنـــــې پرېښـــــو
دا همېـــــل ئــــې ځبلـــه ترمــــې ترمــــې تللـــــی[٤٦٢]

محمد اکبر په یو شعر کې د همېل ذکر داسې کوي:

د شـــاه همېـــل شـــه ترمـــې ترمـــې د خپـــل یـــار لـــه لاســـه
اوس یـــې سپېنسيـــ غښـــتلي دي بیـــا یـــې ســـفتن لـــه بـــولي[٤٦٣]

همېل او هار په یوه معنٰی کې راځي. کریم داد په یو بل شعر کې هار داسې استعمالوي:

کـــــــــل اشـــــــــیاء د درمنـــــــــي
کریمــــداد بنـــده مشــــکنه ســــتا پــــه هــــار کــــې[٤٦٤]

نته یا نتکۍ د ښځینه وو د پوزې یو کالی دی، د دې ذکر داسې شوی دی:

عاشــــق د شـــــاه د نتـــــې پــــــیرو ښـــــون دی
چــــې تـــل پـــروت دی پـــردا ســـپینو شـــونډو بانـــدې[٤٦٥]

جانــــــان مــــــې د نتــــــې پــــــیروزه شــــــه
چــــې مــــې تــــل پــــه شــــونډو اولگیــــږي[٤٦٦]

هغـــــه د سرونتـــــه یــــــې ده زیــــــړ مـــــــزرۍ
غـــــه لپاســـــه پـــــه شـــــونډو پـــــروت شـــــیرانه ده[٤٦٧]

تـــــر پلـــــوئې مـــــخ څرگنـــــد کـــــړه عاشـــــقانو وتـــــه
او زیـــــــړه نتــــــه برېښـــــوي څرگنـــــدول لـــــــره[٤٦٨]

د دې شـــــــاه پـــــــه پـــــــوزه نـــــــت ده
پکـــــــې پـــــــروت ســـــــپینکی لاجـــــــبر دی[٤٦٩]

له نتې علاوه د پوزې په کالو کې چارگل او پېزوان هم دي. میاداد د چارگل او پېزوان ذکر داسې کوي:

راځــــه لاس د لاســـــه ونيســـــو خـــــدائی رولـــــه درومــــو
چارگـــل پېـــزوان يـــې الـــوول خـــوارو خـــوړلی درې لـــه مـــا[٤٧٠]

د بېسرــــــ تــــــر گلـــــه چـــــار وتـــــلي سره ازغــــــي دي
ځکـــــه بلبـــــل چغـــــار کانـــــدي لـــــه دغـــــه رقيبـــــه[٤٧١]

پـــــه رنـــــگ زيـــــړې زيـــــرې تـــــر زيـــــړو گلــــو
ښائيســـــــــته تـــــــــر زيړولـــــــــه پېزوانـــــــــه ده[٤٧٢]

پـــــــــــه پينځـــــــــــــه كـــــــــــــروړې روغ دی
پېـــــــــــزوان ښائســـــــــــــته تـــــــــــر واړه[٤٧٣]

حافظ الپوری پېزوان داسې يادوي:

جهـــان مـــالق دی د ســـپين مخـــو خائســـته هغـــه ده
چـــې لـــه اغيـــاره ســـپينه خلـــه ســـورکی پېـــزوان اوســـاتي[٤٧٤]

سره لمبـــــه مـــــې لـــــه گوگلـــــه شي چـــــاپېره
چـــــې ســـــورکی پېـــــزوان پـــــه پـــــوزه ســـــنياري کـــــا[٤٧٥]

پـــــه حنـــــا منگـــــولې سرې شـــــوندې پـــــه پـــــانو
پـــــه ســـــوندر بـــــه ســـــور پېـــــزوان وي مـــــونږ بـــــه نـــــه يـــــو[٤٧٦]

عبدالعظيم صواتی د پېزوان ذکر داسې کوي:

د پېـــــــزوان د خـــــــال و خـــــــط لـــــــه تصـــــــوره
مســـــتغرق پـــــه عبـــــادت د ســـــبحان خـــــوښ يـــــم[٤٧٧]

محمد اکبر د پېزوان او نتې ذکر داسې کوي:

تـــه چـــې پـــه پـــوزه د سرونتـــه کـــړې پېـــزوان ورسره
پـــه ســـېب د زنـــې پســـخول کـــړې زنخـــدان ورسره[٤٧٨]

کـــه د پېـــزوان د نتـــې لال دې پـــه دبـــلي کـــې نـــه وي
زمـــا بـــازار لـــره راځـــه لـــوی او واړه او پېـــره[٤٧٩]

پسول د ښځو د غاړې يو زېور دی، د هغې ذکر خوشحال خان په سوات نامه کې داسې کوي:

د جهـــان عیبونـــه واړه سره ټـــول کـــړه
هغـــه واړه د همـــزه د غـــاړې پســـول کـــړه[٤٨٠]

او په بل ځای وايي:

نـــه يـــې قـــول نـــه يـــې عهـــد نـــه يـــې بـــول شـــته
خـــو د ديـــو رېـــش وفـــش، د ښـــځو پســـول شـــته[٤٨١]

اخون مياداد هم پسول داسې يادوي:

د ذات مـــخ تـــه يـــې څـــوک کتلـــی نـــه شي
صـــفت پـــه پســـالۀ خوښـــه لـــه ځانـــه ده[٤٨٢]

مياکريم داد د گوتۍ يا گوتې ذکر داسې کوي:

د ځـــوانۍ گوتـــه مـــې مـــه باســـه لـــه لاســـه پـــرې مئـــېن يـــم
هـــم چرچـــور پـــه ځنکـــدن يـــم[٤٨٣]

يو بل زېور چې ښځې يې پښو ته اچوي هغې ته پانزېب وايي، دې ته خلخال هم وايي. حافظ الپورۍ يې ذکر داسې کوي:

دوه پنـــدۍ يـــې ســـپين بلـــور يـــا مرمـــردي
دل اوېـــز اواز يـــې خيـــژي لـــه خلخالـــه[٤٨٤]

پېکړې هم د پښو يو زېور دی، محمد اکبر يې ذکر داسې کوي:

زه د اخـــتر پـــه جونـــو راغلمـــه هـــوس راغـــی
ټيکونـــه بريښـــي شـــنه هـــر د پېکـــړو خيـــژي[٤٨٥]

د سرو د ټيک ذکر حافظ الپورۍ داسې کوي:

د خيـــوې اور بـــل ئـــې چترجبـــين تخـــت دی
پـــرې د پاســـه د سرو ټيـــک قبـــه زري کـــا[٤٨٦]

حافظ الپورۍ د شهۍ د ټيک ذکر داسې کوي:

پلوشـــــې مـــــې لـــــه جوســـــې نـــــه پورتـــــه درومـــــي
د شـــــهۍ د ســـــپین جبـــــین د ټیـــــک غمـــــی یـــــم[٤٨٧]

احمد دین طالب په دې لاندینو شعرونو کې موران، مونډرۍ او دړۍ داسې یادوي:

قـــــط دې پـــــه کـــــړۍ د سرو کـــــړۍ او سره مـــــوران دي
زلفـــــې دې جـــــوړۍ کـــــړې غـــــړۍ لکـــــه مـــــاران دي[٤٨٨]

تېـــــرې مونـــــدرۍ دې پـــــه اوګـــــو وهـــــي ټالونـــــه
د شـــــنو طاطیـــــانو درپســـــې ګرځـــــي ســـــپلونه[٤٨٩]

دیوان حسېن کې په دې شعرونو کې د مونډرو ذکر شوی دی:

چـــــې یـــــې اوســـــولو اوچ لام پـــــه غرغـــــرو کـــــې
هســـــې اور دی د اشـــــنا پـــــه سرومنـــــدرو کـــــې[٤٩٠]

بـــــل زمـــــا پـــــه دود مټـــــاک پـــــه جهـــــان نشـــــته
چـــــې جلیـــــا پـــــه سرو لمبـــــو د مندرونـــــه شـــــوم[٤٩١]

چـــــې لاشـــــه یـــــې څـــــوک پـــــه زړه ســـــهلی نـــــه شي
لـــــه لړمـــــه کـــــا تېـــــرې د یـــــار منـــــدرۍ[٤٩٢]

احمددین طالب د دړۍ ذکر داسې کوي:

زمـــــا دړۍ لـــــه زرګـــــران اصـــــلي دراب لټـــــوي
د زړه بـــــورامې پکـــــې هـــــر وختـــــې ګـــــلاب لټـــــوي[٤٩٣]

حافظ الپوری د دړۍ یادونه داسې کوي:

ط طلاقـــــه کـــــړه مکـــــاره
دنیـــــا نـــــه ده وفـــــاداره
شـــــوهر پریـــــږدي پـــــه ډاګ
یـــــــــــــــــــــــاره
بـــــل تـــــه نـــــاوي شي نګـــــاره
دړۍ ســـــپینه ســـــور میـــــزر[٤٩٤]

لاس وندی چې ورته لاس خوندی هم وايي د ښځو يو کالی دی، چې لاس ته يې اچوي. حسبن يې په دې شعرونو کې داسې ذکر کوي:

هـــــلال خوشـــــی کـــــا نـــــور بـــــرېښ د غـــــره پـــــه څوکـــــه
ورسره بـــــه ســـــم د يـــــار لاس ونـــــدی نـــــه کـــــړم[٤٩٥]

چـــــې هـــــلال ورتـــــه ولاړ پـــــه ټيټـــــه مـــــلا دی
هســـــې بـــــرېښ دی ســـــتا د مـــــټ پـــــه لاس ونـــــدي کـــــې[٤٩٦]

دا اوښـــــکلې تـــــورې راغلـــــې زمـــــا مـــــرګ لـــــه
کـــــه بريښـــــنا کـــــا ســـــتا پـــــه مټـــــو لاس ونـــــدي[٤٩٧]

## وسلې او جنګي سامان

وسله ساتل د پښتنې سيمې د جغرافيايي حالاتو او د پښتنو د قبايلي ژوند لپاره ضروري وو، ځکه د سوات په پښتو ادب کې د هغه وخت د وسلو او جنګي سامانونو ذکر موندلی شي. شاعرانو به اکثر د جنګونو قيصې هم په نظم کې ليکلې، لکه په دې دور کې د مالاکنډ په مقام د انګرېزانو خلاف د سرتور فقير د جنګ منظومه قيصه اجون خان نومې يو شاعر ليکلې وه. اجون خان يو عوامي شاعر و او د سرتور فقير لوی عقيدت مند و.[٤٩٨]

د احمد دين طالب په لاندنيو شعرونو کې د مختلفو جنګي اوزارو نومونه راغلي دي، لکه کرچ، مچوغنه، منجنيق ايرانۍ توره او نور.

ای کاغـــــذه کـــــړه بادشـــــاه خـــــبر پـــــه حـــــال
يـــــو اشـــــنا رانـــــه کـــــرچ وړی پـــــه ســـــوال[٤٩٩]

کـــــه د زړو کټـــــورې غـــــواړم د زانـــــو
چـــــا وېشـــــتلی پـــــه مچوغنـــــو افتـــــاب کـــــوم دی[٥٠٠]

د ېبلتـــــون پـــــه شرمخـــــانو بـــــه دې مـــــات کـــــړي
نـــــه ويريـــــږي درنـــــده د منجنيـــــق[٥٠١]

پریـــــــوتلي یـــــــې بیانـــــــه دي پورتـــــــه شـــــــوي
ســـــتا د زلفـــــو پـــــه څېرلـــــوړ منجنیـــــق نشـــــته[۵۰۲]

چـــــې غـــــلاف د ایرانـــــی تـــــورې بـــــدرنگ وي
پـــــه دویمـــــه ورځ یـــــې گـــــوره چـــــې بـــــه زنـــــگ وي[۵۰۳]

مېجر راورټي د سوات د خلکو د اهمو وسلو په ذکر کې لینده، غشي، تبرونه او تورې یادې کړې دي .[۵۰۴] میاداد د لیندې او ناوک (غشي) ذکر داسې کوي:

هغـــــه دا دواړه وروځـــــې یـــــې لینـــــده ځکـــــولې
او تـــــور باڼـــــه یـــــې نـــــاوکي نقـــــش یـــــې خـــــال ولیـــــدۀ[۵۰۵]

وروځـــــې یـــــې لینـــــده کـــــړې تـــــور باڼـــــه یـــــې غشيـــــ
پـــــــــه گـــــــــوزار ولاړه تـــــــــیرو کمانـــــــــه ده[۵۰۶]

پښتون اگر چې هر وخت وسله له ځان سره گرځوي، خو بې و جې چاته څه نه وايي.

پـــــه منگـــــول کـــــې د پښـــــتون کـــــه تـــــوره ډهـــــال وي
داســـــــې وایـــــــه د گـــــــدا سره کچکـــــــول دی[۵۰۷]

د دې شـعر مطلـب دا دی چـې کـه څـوک لـه پښـتون سره پـه لاس کـې وسـله ووینـي، نـو د دې مطلـب دا هرگـز نـه دی چـې گنـې دی پـه حـالات د جنـگ کـې دی، خـو دا د دوی لـه کلتـور سره دومـره تړلـې شـوې ده، چـې هـر وخـت یـې دوی لـه ځـان سره گرځوي.

## عام مادي ځیزونه

له زېوراتو او وسلو علاوه د سوات په پښتو ادب کې د روزمره استعمال نور هم ډېر ځیزونه ذکر شوي دي، لکه خوشحال خان خټک په سوات نامه کې تالی او خانک داسې یاد کړي دي:

د طـــــالي کـــــه درتـــــه وایـــــم یـــــو کـــــالی دی
ډک خانـــــک دی د اوگـــــرې کـــــه یاتـــــالی دی[۵۰۸]

اخون میاداد بتکی داسې یادوي:

او هغـــــه دا دو بـــــين بــــه يگانـــــه واصـــــل پــــه څــــه شي
څوكـــــه يــــې سربتكـــــى تـــــا لــــره دروړي نـــــه ده[509]

ميا كريم داد په يو شعر كې تنور داسې يادوي:

كـــــــــل امكــــــــــا د وچ وابښـــــــــــه كــــــــړه
تـــــــــه د دې وښـــــــــــو تنـــــــــور شـــــــــــه[510]

كريم داد په يو شعر كې د ډيوې ذكر داسې كوي:

لكـــــه بلــــه څـــــوك ډيـــــوه كانــــــدي د ورځـــــــې
دغـــــه نـــــور يـــــې نـــــور فـــــاني كانـــــدي پـــــر بلـــــه[511]

احمد دين طالب د تېلو د چراغ يا ډيوې ذكر داسې كوي:

د نـــــــادار پــــــه لاس چــــــراغ د تېلــــــو نشـــــــته
كــــــافوري شـــــمع پــــــه لاس تـــــــوانگر راغــــــى[512]

حسېن د ډيوې ذكر داسې كوي:

څـــــو دې مينــــه پــــه گــــانې كــــې شړشـــم نــــه كــــا
پــــه ډيــــوه بــــه دې روښـــــانه عـــــالم نــــه كــــا[513]

لكه څنگه چې د احمد دين طالب په دې بره شعر كې ذكر شو چې "د نادار په لاس چراغ د تېلو نشته". د دې متبادل خلكو به ليتكې هم بلولو او له هغې نه به يې رڼا كوله. د سوات د خلكو د ليتكې يا شونټۍ بلولو په باره كې مېجر راورټي داسې ليكي:

The people of the more open parts of the valley are not well off for fuel, hence the dry dung of cows is used instead; but where the hills are near, and in their small lateral valleys, fuel is plentiful enough. The pine is chiefly used for this purpose; and pine-slip torches are generally used in place of lamps or candles; but shop-keepers, and students, who have to read at night, burn oil. I was rather surprised to see a primitive description of lantern in Suwat, something on the plan of English ones, although, of course, not copied from them.[514]

ترجمه: د سوات د وادۍ د پراخو علاقو خلك په خشاك پوره نه دي، دغه وجه ده چې د لرگو يا خشاك پر ځاى هغوى وچ غوشان استعمالوي، خو كوم ځاى كې چې غرونه

نږدې وي، نو هلته خشاک ډېر زيات وي. د سوځولو لپاره زيات د پيوچ لرګی استعمالېږي او د ډيوو او شمعو پر ځای په عمومي توګه ليټکې استعمالېږي، خو دکانداران او طالب علمان څوک چې د شپې کتابونه لولي هغوی تېل سيزي. زه ډېر حيران شوم چې ما په سوات کې د زوړ قسم يو لاټېن وليده دا د انګرېزي لاټېنونو په شان و، خو په حقيقت کې له هغوی نه، نه وو نقل شوی.

خوشحال خان خټک هم په سوات کې د شونټو بلول او د هغو لوګي داسې يادکړي دي:

نـــه يـــې خـــوان نـــه درســـتخوان نـــه چـــراغ دان شـــه
درســـــته شــــپه يـــې د شـــونټيو بـــدد خـــان شـــته
چـــې پـــه تېـــل پـــه دســـترخوان يـــې څـــه څرخيـــژي
کـــه زردادر دي هـــم يـــې غوښـــې ابـــه کيـــږي[515]

د ډيوې د اېښودلو لپاره چې کوم څيز وي هغې ته ډيوټ وايي. عبدالعظيم صواتي ډيوټ داسې ياد کړی دی:

دا ايمـــان دی پـــه مثـــال د تـــن غـــوړوالی
تـــه پـــرې غـــوړ لکـــه چـــراغ لانـــدې ډيـــوټ يـــې[516]

د لرګي يو خاص قسم صندوق چې په کور کې د غلې دانې د خوندي کولو لپاره استعمالېږي، هغې ته خمبه وايي او دغه رنګ د غلې د ذخيره کولو لپاره کندوان هم استعمالېږي، چې ذکر يې په دې شعرونو کې موندل کېږي:

کـــه دريـــاب پـــه غـــاړه کېنـــې اسراف مـــه کـــړه
کـــه دې ډکـــې شي خمبـــې دســـيم وزرنـــه
چـــې يـــې ګټـــه د پېســـې لګاوښـــت دوه وي
کـــه بادشـــاه وي لانـــدې کيـــږي د نـــوکر نـــه[517]

حسين د کندو ذکر داسې کوي:

د غـــم کنـــدو يـــې مـــدام ډک وي د پېغـــور پـــه دانـــو
چـــې مـــوټې ډکـــه لکـــه کونـــډه کـــا د عشـــق لـــه وټ[518]

د کندوانو ذکر خوشحال خان خټک په سوات نامه کې داسې کوي:

درســـته خونـــه يـــې نيـــولې پـــه کنـــدوانو
پـــه ګنـــده روزګـــار بـــدتر دي تـــر هنـــدوانو[519]

په کور کې د استعمالېدونکو لوښو ذکر هم په دې اشعارو کې موندل کېږي. خاورين بالټی یا پنډه اخون مياداد داسې يادوي:

لکــــه پنـــډه چـــې پـــه ســـور اور پرتـــه وي او وېشـــيږي
پـــه ظـــاهر هغـــه پنـــډه ليـــدی شي پـــه اور ســـوره ده[٥٢٠]

احمد دين طالب د لرگي کټوی، کنډولی، کناوې او لور (داس) په دې شعرونه کې يادوي:

د بـــــاران د ابـــــو خـــــوړ تـــــه ويـــــړه نـــــه وي
نـــــه پخيـــــږي د لرگـــــي کټـــــوی کـــــې ځيـــــز[٥٢١]

لعـــــل جـــــام يـــــې د سرو لبـــــو را پـــــه خلـــــې کـــــړه
منــــت څـــــۀ لـــــه د کـــــلال د کنـــــډولي کـــــړم[٥٢٢]
کنـــاوې پـــه پښـــو کـــې نـــه گـــرځم پـــه غرونـــو
کـــه ارتـــاو شـــم بيـــا مـــې يـــار تـــه جـــواب کـــوم دی[٥٢٣]
څـــه فائـــده ده چـــې څـــوک تشـــې شـــوملې شـــاربي
يـــا چـــې لـــو لـــه يـــوسي بـــې دنـــدانو داس[٥٢٤]

د توغ ذکر دوستی داسې کوي:

دا ســـتا تـــوغ لـــه کومـــه اوخـــوت د اســـمانه
تـــه زمـــا لـــه زور قـــوت نـــۀ يـــې خـــبر[٥٢٥]

حافظ الپوری د بغری ذکر داسې کوي:

پـــه خپـــل ځـــای نمانځنـــه غـــواړم نـــه يـــې مـــومم
لکـــه چـــرگ ټونگـــه مـــار نـــه يـــم پـــه بغـــری کـــې[٥٢٦]

د جرندې ذکر په دې شعرونو کې موندل کېږي:

هغـــه دانـــه چـــې اورســـيږي د هجـــران تـــر جرنـــدې
د غـــــم د پلـــــه لانـــــدې مېـــــده اوړه اوړه راشي[٥٢٧]

د ممکـــــــــن ژرنـــــــــده دې گرځـــــــــي
د توحيـــــــد تـــــــر ابـــــــو لانـــــــدې[٥٢٨]

دا فلـــــــک لکـــــــه آســــــیا سرونــــــــه لـــــــوني
دا د مــــــرگ مـــــېچن دانــــه نـــــه پریـــــږدي لــــواړه[٥٢٩]

احمــــــــد دینــــــه د دانـــــــو لار ده پـــــــه جرنــــــــده
پــــــرې ورځــــــي کـــــه یـــــې هډونــــــه د لــــــوي[٥٣٠]

د لرگي یو لوښی چې سپو ته پکې خوراک ږدي دگ ورته وایي، حافظ الپوری یې ذکر داسې کوي:

مــــانج کـــړی جـــام یـــې اوگــــنم د بادشـــاهانو لائـــق
چـــې یـــې تحقیـــق اوکـــړم د ســـپو د خـــوراک دگ اوخیـــژي[٥٣١]

د سپي د تړلو لپاره یو لرگی استعمالیږي، چې وېښ او سر ته یې لړه شان رسۍ وي، دې ته کولنډ وایي. وېښ او سر ته یې رسۍ او مینځ کې لرگی ځکه اچوي چې سپی دا رسۍ ونه خوري، په دې شعرونو کې د کولنډ ذکر راغلی دی:

پــــه طلـــــب د خپـــــل مطلـــــوب سســـــته صـــــورت
د حســــــېن پــــــه غـــــاړه پــــروت لکــــه کولنــــډ[٥٣٢]

د دنیـــــا پـــــه پلیتـــــۍ دې ځـــــان پلیـــــت کــــه
د حـــــرص کولنـــــډ دې نـــــه شـــــلیږي لــــه غـــــاړې[٥٣٣]

## تبۍ کاڼی

تبۍ کاڼی چې ورته تبي کاڼی هم وایي، دا یو داسې کاڼی وي چې کله څه ننگولی وغېره به پخولی شو، نو دا کاڼی به گرم کړی شو او بیا به یې کټوۍ ته وغورځولو، نو له دې سره به په کټوۍ کې هوگه او نرو څیزونه وسوځېدل او د ننگولي ذائقه به برابر شوه. دا یو متل هم دی چې د سوات تبي کاڼی د سوات په پیټۍ کې غورځنگ وهي.

په دې شعرونو کې د تبۍ کاڼي ذکر داسې راغلی دی:

غـــوړ مـــې د صـــورت وربانـــدې اوســـو ســـپور کـــو دی شـــوم
زړه مـــې تبـــۍ کـــاڼی شـــه د هجـــر پـــه نغـــري کـــې[٥٣٤]
تبـــــۍ کـــــاڼی مـــــــې د سر پکــــــې لـــــــوغیږي
تـــــود دې هــــــر کلـــــه دلــــــبره ســــــتا نغــــری وي[٥٣٥]

دا يـو كـاڼی وي چې اول يې پـه اور كـې گـرم كـړي او بيـا يـې لـه اور نـه رابهـر كړي او پېتی او بل نګولي ته يې واچوي:

## سيكې يا روپی

د روپو يا د سيكو لپاره مختلف نومونه استعمال شوي، كوم چې په دې شعرونو كې په نظر راځي:

نــــن خــــو ســـــتا ثمــــن رائـــــج دی نـــــه رد كيـــــږي
وېــــره كـــــړم صــــبا كاســــد نـــــه شي صراف تـــــه[٥٣٦]

احمـــــد ديــــن طالبـــــه هــــر ځـــــای خپـــل وطـــن دی
چــــې پــــه لاس كــــې دې هــــنروي يــــا فلــــوس[٥٣٧]

مخزن كې يې د روپو لپاره د "ټنگې" لفظ استعمال كړی دی، لكه دا وگوريُ."هسې وايي كه بادشاه سړی وبولي ټنگې وركه ډېرې". [٥٣٨] مخزن كې په يو بېت كې داسې وايي:

ای د ښـــــه خـــــدای بنـــــدگانو د نبـــــي د ديـــــن رهـــــبرو
دا تاريـــک قلپــه ټنگـــه شـــوه پـــرې د پاســـه چـــاپ يـــې وواهـــه د زرو[٥٣٩]

خوشحال  خان په سوات نامه كې ټنگې داسې يادوي:

پـــــه كـــــم اصـــــل پـــــه بداصـــــل نظـــــر نـــــه كـــــا
د ټنگـــــو پـــــه لالـــــچ خـــــور او لـــــور واده كـــــا[٥٤٠]

د سيكې لپاره كنجكه لفظ هم استعمال شوی دی:

پـــه جـــامو ســـپينو پگـــړو يـــې غلـــط نـــه شـــې
پـــه كنجكـــه نـــه بـــدليږي يـــو لكـــبس دي[٥٤١]

مناســـب دي چـــې تـــرجيح پـــه رقيـــب راكـــړي
چـــــې قيمـــــت د ده فلســـــه زمـــــا درم دی[٥٤٢]

چـــې بـــه يـــې مـــخ د سرې پېســـې نـــه ليدپـــه كـــال كـــې
اوس هغـــــوي لــــره هــــزار درم راځـــــي[٥٤٣]

محمد اكبر د دمړي ذكر هم كړی دی:

هغـــه شـــاهان چـــې غرونـــه غرونـــه پـــاس پـــه تخـــت ناســـت وي
خفيـــف كـــړه مينـــې پـــه ميـــزان د دوه د مـــړو خيـــژي[٥٤٤]

## جامې

لباس یا جامې د کلتور یوه مهمه برخه ده. د یو قوم له لباس نه مونږ د هغوی د ډېرو خبرو اندازه هم کولای شو. د سوات په پښتو ادب کې د سوات د خلکو د جامو یا لباس ذکر هم ډېر مېلاویږي چې مونږ ترې په هغه وخت کې د مروج لباس اندازه لګولی شو. د یوسفزو د لباس په باره کې ایچ ـ ډبلیوـ بیلیو داسې لیکي:

> Many wear clothes steeped in indigo to hide the dirt. The ordinary dress consists of a loose frock or kamiz, and wide trowsers, or partog, with a patka to wind round the head. All are of coarse cotton cloth of home manufacture, and are frequently worn, without a change, till in tatters: the dress of the chiefs and well-to-do is of the same kind, but of better material, of English manufacture. The dress of the women only differs from that of the men in the substitution of the oranai or chequered sheet, for the patka. This sheet is of the same material and pattern for the whole tribe.[٥٤٥]

ترجمه: ځینې خلک کپړې اغوندي چې هغه په اسماني رنګ کې رنګ کړل شوې وي چې د دوی خیری پرې پټ شي. عام لباس په یو ارت کمیس، په یو ارت پرتوګ او له سر نه چاپېره په یو پټکي مشتمل وي. دا ټولې کپړې د کاټن جوړې وي او کورني مصنوعات دي او له بدلولو نه بغېر په مخه اغوستلی شي تر څو چې دا ټکړې ټکړې شوې نه وي. د ملکانو او د مالدارو خلکو لباس هم دا قسم وي، خو د هغوی خام مواد ښه وي، یعنې د انګرېزي مصنوعاتو وي. د ښځو لباس د سړو له لباس نه صرف په دې خبره مختلف وي، چې په هغې کې د پټکي پر ځای څادر یا پړونی وي. دا څادر د ټولې قبیلې په یو ډول او له یو شان موادو نه جوړ وي.

د سوات د وړومبي دور په پښتو ادب کې د لباس د ذکر څه حوالې دا دي:

## سالو

د سالو ذکر په لاندیني شعر کې راغلی دی:

چـــې پـــه ســـور ســـالو کـــې مـــخ پنـــاه کـــوي
دا پـــــه څــــــۀ زمــــــا د مــــــرګ بنــــــاکوي[٥٤٦]

## اتلس

اتلس په دې شعر کې بیان شوی دی:

هــــــورې بــــــه پـــــــر بـــــــدانو ښـــــــادي زوروي
اوس څـــه شـــوکه څلورګـــاه خوبونـــه پرنهـــالی پـــه اتلـــس کـــا[٥٤٧]

## خرقه

خرقه په لاندینو شعرونو کې بیان شوې ده:

کـــه طلـــب زمـــا د خـــولې کـــړې پـــه ژړا بـــه ســـترګې سري کـــړې
د فقـــیری خرقـــه بـــه درکـــړم کـــه مـــرد یـــې وایـــې غونـــده[٥٤٨]

د فقـــــــــیری دا خرقـــــــــه یـــــــــې خوښـــــــــه ده
کمینـــــــــی پګـــــــــړي یـــــــــې تـــــــــر اســـــــــمانه ده[٥٤٩]

دا د ظــــاهر خرقــــه دې عــــین د دینــــدار وینمــــه
تــــر خرقــــې لانــــدې پــــه غــــاړه دې زنــــار وینمــــه[٥٥٠]

کنـــــد خرقـــــه د رښـــــتونو فقیرانـــــو نقـــــش نشـــــان دی
د عشـــق ترخـــه خـــواره شراب صـــوفي د کندڅښـــلي دي[٥٥١]

## کند

د کند ذکر په دې شعرونو کې راغلی دی:

دا فقـــــــیري دا کمینـــــــې د کمالـــــــت جامـــــــه ده
فقـــیري مـــې د ابـــراهیم آدهـــم کنـــد بیـــا مونـــد نـــن شـــپه[٥٥٢]

دا د عشـــق ده پيالـــه مســـته دا راغلـــې لـــه الســـته
پـه نـور ځـۀ بـه مونـده نـه شي بـې د فقـيرۍ لـه کنـده[553]

او د فقـــيرۍ کنـــد ئـــې بـــې زرو زر کـــې ويـــنم
غـــه شـــها و عاشـــقانو و تـــه موســـېده[554]

او کنـــد خرقـــه کچکـــول د فقيرانـــو نخښـــه
او دا ســـالک پـــه ســـپين نمـــر کـــې فقـــير شـــوی[555]

په مخزن کې په دې شعرونو کې د "کند" لفظ استعمال شوی دی:

د فقيرانـــو سره راز کانـــد پـــه کنـــد کـــې
لـــه بادشـــاهانو سره خـــوښ پـــه محـــال کـــې[556]

عظيم صواتی وايي:

چـــا مونـــدلې ده پـــه زوړ شـــليدلې کنـــد کـــې
چـــا مونـــدلې پـــه لبـــاس زر زري ده[557]

احمد دين طالب يې داسې يادوي:

د ملـــوک پـــه شـــان مـــې واغوســـتل کندونـــه
د نباتونـــه دې عـــدم کـــړل قندونـــه[558]

دوست محمد خان دوستی داسې وايي:

کنـــد کچکـــول او پنـــډيې واخيســـتو فقـــير شـــه
يـــک تنهـــا پـــه لارې تلومـــل يـــې کبـــير شـــۀ[559]

## پګړۍ

پګړۍ يا پټکی چې د پښتنو د لباس يو مهم جز و، نن سبا ډېر کم شوی دی. مياداد يې په لاندينو شعرونو کې ذکر کړی دی:

د فقـــيرۍ دا خرقـــه يـــې خوښـــه ده
کمينـــۍ پګـــړۍ يـــې تـــر اســـمانه ده[560]

اشـــــنا د فقـــــيرى پگــــړۍ مـــــې تـــــا پــــه سر کــــړه
اوس بادشـــــاه د ســـــمر قنــــد بخـــــارې شــــوى يـــــم[٥٦١]

هغـــــــه د دل ازارو لار و خــــــــدائى تـــــــه نشـــــــته
څــه شــو لاس کـــې يـــې تســـبيح مســـواک دســـتار وينمـــه[٥٦٢]

د فقـــيرى پگـــړۍ پـــه سر کـــړه ميخـــانې لـــره ځـــه
لکـــه زاهـــد پـــه جماعـــت کـــې ريـــا کارمـــه کـــوه
د پـــير کاملـــه تلقـــين واخلـــه د زړه زنـــگ کـــړه لـــرې
کـــه دې د زړه آئينـــه زنـــگ ده ســـپين دســـتارمه کـــوه[٥٦٣]

د فقـــيرى د کمينـــــى پگـــړۍ مـــې تـــا پـــه سر کـــړه
او مــــا ميــــاداد پـــه خپـــل عمـــل سره گټلـــې نـــه وه[٥٦٤]

د فقـــيرى د کمينـــــى پگـــړۍ مـــې تـــا پـــه سر کـــړه
او پـــه بڼـــو مـــې د چـــا لارې جـــارو کـــړې نـــه وې[٥٦٥]

## شړۍ

د سوات شړۍ ډېرې مشهورې دي، دا شړۍ ډېر زوړ تاريخ هم لري. پانينې په خپل کتاب کې ليکلي، چې د اودهيانه (سوات) شړۍ ډېرې مشهورې دي. دا شړۍ د Pandu-Kambala په نوم مشهورې دي.[٥٦٦] مېجر راورټي د سوات د شړيو ذکر داسې کړى دى :

Scarfs called shalakai both white and black, are woven here in great mumbers, which are exported for sale to Peshawar and other parts.[٥٦٧]

ترجمه: دلته د سپين او تور رنگ څادرې او شړۍ په زيات تعداد سره جوړېږي او دا د خرڅ لپاره پېښور او نورو علاقو ته لېږل کېږي.

اوس هم په اسلام پور کې مشهورې شړۍ جوړېږي. د شړۍ ذکر محمد اکبر داسې کوي:

اکـــبره ځـــان پـــه شـــړۍ پـــټ کـــړه يـــار دې بـــولي ورځـــه

بـــــاران شــــيبې دی خړهــــــر د جړجــــــوړو خيــــــژي[٥٦٨]

حسين د شال، شړۍ او د نمد (نيمسی يا ليمسی) ذکر داسې کوي:

بادشــــــاهي يــــــې شي نصــــــيب پــــــه دواړه کونــــــه
چـــــې يکســــــاں شي ورتــــــه شــــــال، شــــــړۍ، نمــــــد[٥٦٩]

د بخمل د کپړې ذکر احمد دين طالب داسې کوي:

هلــــــه کيــــــړي اشــــــنائي چـــــــې دواړه ســــــيال وي
غريــــــب بدښــــــکاري چـــــــې اغونــــــدي بخمــــــل[٥٧٠]

او د شال ذکر داسې کوي:

تــــوره شــــپه شي پــــه قمــــر چــــې نمــــر تــــرې پــــټ شي
پــــټ پــــه شــــال يــــې د مــــخ نمــــر راڅخــــه يــــوړو[٥٧١]

شــــــال شــــــړۍ دواړه پــــــه عقــــــل پيژنــــــدی شي
مگــــــر ړونــــــد تــــــه څــــــه شــــــړۍ او څــــــه شــــــالونه[٥٧٢]

کلــــــه جــــــوړيږي د شــــــړۍ سره شــــــالونه
د شــــــنوطوطيانو درپســــــې گرځــــــي ســــــپلونه[٥٧٣]

لــه دې حوالــو نــه د هغــه وخــت د ســوات د خلکــو د لبــاس پتــه ولگېدلــه چــې خلکــو بــه کــوم قســم لبــاس اغوســتلو. دا پتــه هــم ولگېدلــه چــې مالــدارانو، غريبانــانو او ښځو او سړو به کوم قسم لباس اغوستلو.

## پيزار

له جامو يا لباس نه علاوه په ادب کې د هغې زمانې د پيزار ذکر هم موندل کېږي. حافظ الپورۍ د هغه وخت زرغونه کوښې په دې شعر کې يادې کړې دي. زرغونه کوښې به د اوچتې پايې د خلکو پيزار و، کوم ته چې پنې وايې:

پــــه خــــاطر مــــې د غــــم ونــــه زرغونــــه شي
چـــــې پـــــه خپـــــو زرغـــــونې کوښـــــې ســـــنگاري کـــــه[٥٧٤]

کڼاوې د لرگي يو قسم پيزار و، چې گرځېدل به پکې ډېر گران وو، خو په ختو کې

به خلکو په پښو کولې. احمد دين طالب د کڼاوو ذکر داسې کوي:

کڼـــاوې پـــه خپـــو کـــې نـــه گـــرځم پـــه غرونـــو
کـــه ارتـــاو شـــم بيـــا مـــې يـــار تـــه جـــواب کـــوم دی[٥٧٥]

د کڼـاوو پـه بـاره کـې دا يـو متـل هـم دی وايـي چـې کڼـاوې پـه خپـو کـړي او پـه فضاګۍ ګرځې، نو دا بې اجله مرگ دی.

## خوراک

د سوات د پښتو ادب د وړومبي دور له تجزيې نه د هغه وخت د خلکو د خوراک اندازه هم لګي. د سوات د خلکو مشهور خوراک وريژې دي، ځکه خو دا متل مشهور دی چې " د سوات خلک زاړه شو خو په وريژو ماړه نه شو."[٥٧٦]عنوان الدين کاکا خپل هم په سوات کې د شولو ذکر کړی دی:

وريژې شولې هر قسمه   ســوات کـــې واخســـته زمـــه
هم جوار او هم غنم   مـــاش او مـــونږ ورسره ســـم
په کې نشته دی وربشې   لـــۀ وربشـــو خمبـــې تشـــې[٥٧٧]

د يوسفزو د خوراک په باره کې ايچ ـ ډبليو ـ بيليو داسې ليکي:

Their food is plain and wholesome, and almost entirely the produce of their cattle and lands. Milk in its various forms, the common cereals, vegetables, and meats, together with pot-herbs and edible fruits that grow wild, constitute the diet of the mass of the people. Sugar, and in some parts wild honey, is much used, but spirits are quite unknown. Tea is very little used and only by the rich, but coffee is not even known by name.[٥٧٨]

ترجمه: د دوی خوراک ساده او صحت بخش دی او تقريباً د دوی ټول خوراک د دوی د څارويو او د زمکو پيداوار دي. پۍ او د دې مختلف قسمونه، عامې غلې، غوښه، ساګ او د خوراک مېوې کومې چې په صحرا کېږي دا د ټولو خلکو د خوراک اجزا دي. چيني او په ځينو سيمو کې اصلي ګبين زيات استعمالېږي، خو شراب بالکل څوک نه پېژني. چای ډېر کم استعمالېږي، صرف مالداره خلک يې استعمالوي او د کافي خو له سره څوک نوم هم نه پېژني.

خوشحال خان د سوات د خلکو د خوراک په باره کې داسې ویلي دي:

کـــــه پـــــه کـــــور کـــــې خزانـــــې لـــــري د زرو
بیـــــا خـــــواړه خـــــوري پـــــه شړشـــــمو بـــــه ډنـــــبرو[۵۷۹]

د سوات خلک اوګره هم ډېره خوښوي چې خوشحال خان خټک ورته اشارې کړي دي:

د طـــــالي کـــــه درتـــــه وایـــــم یـــــو کـــــالی دی
ډک خانـــــک دی د اوګـــــرې کـــــه یـــــا تـــــالی دی[۵۸۰]
د حـــــرص ګېـــــډه د ده وي هـــــومره لویـــــه
چـــــې ســـــوات پکـــــې چمچـــــه اوګـــــره ده تـــــو بـــــه[۵۸۱]
دروېـــــزه د دوریـــــزی اوګـــــره خـــــوړلې
پـــــه دا مکریـــــې حلـــــوه سره لړلـــــې[۵۸۲]

د اوګرې په باره کې مېجر راورټي داسې لیکي:

In the morning the Suwatis breakfast on a dish called aogrrah in Pashto, which in made by boiling rice to a dry state, and then mixing buttermilk with it unitill it assumes the consistence of porridge.[۵۸۳]

ترجمه: سحر کې سواتیان په یو قسم خوراک باندې ناشته کوي چې اوګره ورته ویل کېږي. دا داسې جوړېږي، چې د وچېدو تر حده وریژې وخوټکول شي بیا په دې کې کوچ غوړي واچول شي تر دې چې دا د کهیر په شان شکل اختیار کړي. احمد دین طالب هم په دې شعرونو کې مختلف خوراکونه ذکر کړي دي :

اوګـــــی خـــــوښ وي هـــــم د جـــــوارو پرنینـــــې
نـــــه پـــــه لعـــــل جـــــواهر و پشـــــمینې
کـــــه پـــــلاو تـــــرې لـــــه ورکـــــړې ســـــود یـــــې نـــــه شي
بـــــې د خویخـــــو ابـــــو د چـــــا چینـــــې
پـــــه وصـــــال د معشـــــوقې عاشـــــق خوشـــــحال وي
خوشـــــحال نـــــه وي پـــــه حلـــــوا او پـــــه پیرنـــــې[۵۸۴]

اخون قاسم پاپین خېل هم په فوائد شریعت کې د حلوا ذکر کړی دی.[۵۸۵] دغه رنګ د شوملو او کوچو ذکر هم په مختلفو شعرونو کې شوی دی، لکه د حافظ الپوری دا شعر:

مـــا خپـــل کـــام بیـــا نـــه مونـــد شـــوملې شـــاربم مســـکه نـــه وي
څـــه کـــړم نـــور وگـــړي کـــه روزي یـــې کـــامراني شـــوه[586]

محمد اکبر شوملې، گبین، غوړي او سبزیانې داسې یادوي:

چـــې اثـــر پـــرې د شرابـــو شـــوملې نـــه کـــا
بـــې هـــوده لړلـــې خلـــې مېخـــواران ورک شـــه[587]
د دلـــبر تـــر شـــینکي خـــال ځـــار شـــه اکـــبره
مـــوټ، مټـــر، لوبیـــا، چڼـــه لـــه مهـــو مـــو نگـــه[588]
اکـــبر زمـــا پـــه در مېلمـــه دی نـــان خـــورش یـــې نشـــته
دلالـــه ورشـــه گبینـــه غـــوړي مـــا ســـته اوپېـــره[589]

واړه د نفـــس مـــراد دی او دې نـــه شي پـــه هـــېڅ زمکـــه
بـــرنج دی کـــه حلـــوا کـــه پراټـــې دي کـــه اوچ کـــاک[590]

احمد دین طالب په دې شعرونو کې کوچ، شوملې، غوښت، شوتل، مالگه مصاله او نور یادوي:

مگـــر کلـــه کـــچ د تشـــو شـــوملو خیـــژي
کـــه ورگـــډیې منـــډاڼو کـــړې درمیـــان تـــه[591]

غوښـــت غلـــه ده، مگـــر ښـــه زلمـــې یـــې نـــه خـــوري
د ســـړي سره خـــوي نـــه ښـــائي د بیـــز[592]
کلـــه کلـــه چـــې بـــه پـــېښ شـــوم مشـــکومۍ کـــې
راکـــول بـــه یـــې شـــوتل د مـــاهودال[593]

زورور کلـــه خپلیـــږي د کمـــزوري
مگـــر بـــود کـــړي تـــرې څـــه مالگـــه مصـــاله[594]

د سوات گبین هم ډېر مشهور دی ځکه خو دا متل دی. " هغه مچۍ د سوات دي چې غول یې شات دي" مېجر راورټي هم د سوات د گبین ذکر کړی دی. [595]

## د استوګنې ځایونه

د جامې، پېزار او له خوراک نه علاوه له پښتو ادب نه د هغه وخت د خلکو د کورونو او د استوګنې د ځایونو هم پته لګي. د هغه وخت د سوات د خلکو د کورونو او د اوسېدو د ځایونو په باره کې خوشحال خان وايي:

ولــــې نـــــه دي ډېـــــر چـــــرکين لــــري ځايونـــــه
آلــــــوده، ګنـــــــده بـــــــدبوۍ لکـــــه سرايونـــــه
څـــــو ســـــړي هـــــومره يـــــې ســـــپي پـــــه هـــــره خونـــــه
پـــــه انګـــــڼ کـــــې يـــــې چرګـــــان ګرځـــــي ســـــلګونه
درســـــته خـــــو نـــــه يـــــې نيـــــولي پـــــه کنـــــدوانو
پـــــه ګنـــــده روزګـــــار بـــــدتر دي تـــــر هنـــــدوانو[596]

د يوسفزو د کورونو او د اوسېدو د ځايونو په باره کې بيليو داسې وايي:

Their dwellings are mean mud and lath cabins, full of vermin and foul air, and surrounded by cesspools and heaps of every kind of filth.[597]

ترجمه: د دوی کورونه له خټې او د لرګي له پټيو نه جوړ وي، چې له ورګو سپګو او بد بوی نه ډک وي او له دې نه ګېر چاپېره د ګنده اوبو ډنډونه او د هر قسمه ګندګۍ ډېري وي:

بل ځای خوشحال وايي چې د سوات په هر کور کې ولې بهېږي:

پـــــه هـــــر کـــــلي پـــــه هـــــر کـــــور کـــــې يـــــې ولـــــې ځـــــي
هـــــم يـــــې خـــــوري هـــــم يـــــې هـــــر لـــــوري تـــــه غلـــــې ځـــــي[598]

حافظ الپورۍ د وښو د کوټو ذکر هم کړی دی :

پـــــاتې لـــــه شـــــاهانو محلونـــــه حـــــويلۍ شـــــوې
پـــــاتې لـــــه خوارانـــــو د وښـــــو کـــــوټې جـــــونګړې[599]

لـه دې حوالـو نـه پتـه لګـي چـې پـه هغـه وخـت کـې د سـوات د خلکـو کورونـه کچه وو او د صفايۍ يې هم څه ښه انتظام نه و.

## د واده رسم و رواج

د واده، ښادۍ د رسم و رواج په باره کې معلومات هم د سوات په پښتو ادب کې په نظر راځي:

## ولور

په واده کې د جینۍ د سر چې به کوم مال اخستل کېده، هغې ته به یې ولور ویلو. په دې شعرونو کې د ولور ذکر راغلی دی:

او د عاشـــــــــقانو سر یـــــــــــې ولــــــــــور دی
پـــــه سرمونــــــده شي ځــــــه رنــــــګ ارزانـــــه ده[٦٠٠]

دا د رښـــــتوني عاشـــــق سر زمـــــا د خــــولې ولـــــور دی
هـــــر چـــې خپـــل سر پریکـــوي هغـــه خریـــدار لـــره ځـــم[٦٠١]

## دیني ورور او د سر واک

کله چې د یوې جینۍ نکاح کېږي، نو نکاح ته به هغه پخپله نه مخامخ کېده، بلکې د هغې له طرف نه به یو خپلوان د هغې وکالت کاوه. له وکالت کولو نه اول به هغه له ناوې نه د وکالت اجازت اخسته، دې اجازت ته "د سرواک اخستل" وایي او څوک چې د سرواک واخلي هغه ته دیني ورور وایي. دوست محمد خان په دې شعرونو کې دې طرف ته داسې اشاره کړې ده:

د بادشـــــــــاه د ښـــــــځې و یـــــــو دینـــــــــي ورور
نــــــور هغـــــه تـــــه بادشـــــاه وویـــــل في الفـــــور

ورشـــــــه واخلـــــــه تـــــــه د ښـــــــځې نـــــــه وس واک
چــــې نکـــــاح مـــــې دوبـــــاره اوکـــــړي ښـــــه پـــــاک

پـــــس لـــــه هغـــــه دینـــــي ورور لاړ پـــــه لغـــــت
خـــــاص محـــــل تـــــه د بادشـــــاه هغـــــه ســـــاعت

زر بي بي تـــــه یـــــې ویـــــل واک راکـــــړه د خپـــــل لاس
چـــــې نکـــــاح دې کـــــړي وس نـــــوی ســـــم د لاس

چـــــې دې ورور بي بي خـــــبر کـــــړه د دې کـــــار
نـــــور دا هـــــم پښـــــېمانه وه پـــــه خپـــــل ګفتـــــار

دې بي بي ورتـــــه نـــــور وویـــــل زر پـــــه زر
مـــــا واک تالـــــه دې درکـــــړی د خپـــــل سر[٦٠٢]

دغـه د سر واک چـې بـه چـا واخسـت او د یـوې جینـۍ دینـي ورور بـه جـوړ شـو،

نـو ده بـه بیـا ټـول عمـر د دغـې جینـۍ داسـې خیـال سـاته، لکـه د خپلـې خـور او د خوشحالو په موقعه لکـه د اختـر او شـوقدر بـه یـې دغـې دینـي خـور تـه څـه نـه څـه برخـه ضرور ورکوله.

## د غم رسم ورواج

دوست محمد خان دوستی د مړي په کفن او جسم باندې د مختلفو دعاګانو لیکلو په باره کې داسې وایي:

دا د عاکـــــــه چـــــــا ای وروره اولیکلـــــــــه
پـــــه کفـــــن د پاســـــه وایــــم بــــې تحملــــه
هــــم آیــــات ښــــه ورسره ای زمــــا جانــــه
زر یـــــې اولیکـــــل یــــارانو لــــه ښــــه شــــانه
خـــــدای بـــــه خـــــلاص کـــــړي لـــــه عـــــذاب د ګورســـــتان
د دې دعـــــا پـــــه برکـــــت هغـــــه زمـــــان[603]

او بل ځای داسې وایي:

او بــــل دا د عاکــــه چــــا ای زمــــا یــــاره
پــــه کفــــن ښــــه اولیکلــــه بــــر خــــورداره
لــــه ده ورک بــــه کــــړي عــــذاب لــــه ګورســــتان
پــــه خپــــل فضــــل سره هغــــه دم ســــبحان
یــــا کــــریم العفــــو ذالعــــدل
انــــت الــــذي لــــک عــــدل کــــل شــــئ[604]

او د مړي د سینې له پاسه د دعا لیکلو په باره کې داسې وایي:

بــــل دا زده کــــړئ یــــارانو اوس لــــه مانــــه
کــــه پــــه ترتیــــب پــــه ســــینه چــــا د مــــړي جانــــه
تســــمیه یــــې اولیکلــــه پــــه هــــنر
هــــم پــــه وچــــولي یــــې تحریــــر کــــړه برابــــر
خــــدای بــــه دور کانــــدي د ګــــور واړه عــــذاب
لــــه مــــرده نــــه پــــه خپــــل فضــــل پــــه شــــتاب[605]

اګر چې دوست محمد خان دوستي د مړي په وجود د دعاګانو د ليکلو فضايل بيان کړي، خو په سوات کې داسې روايت ما پيدا نه کړ، چې خلکو مړو ته په وجود دعاګانې ليکلي وي. مړي پسې د ژړا په باره کې دوستی داسې وايي:

اوس بيـــــــــان کـــــــــــړم د ژړا واورئ يـــــــــــارانو
کـــــه څـــــوک ژړا کــــړي پـــــه مــــرده پســـــې دوســـــتانو
يــــــا مــــور مـــــړه شي يـــــا پــــلار يـــــا بــــرادر
يــــــا ځـــــوی يـــــې خلقـــــه مـــــړ شي معتـــــبر
هغــــــه کـــــس چـــــې ژړا کـــــوي پـــــه زوره
نـــــور مخلــــوق يـــــې پـــــه غـــوږ اوري لــــه هــــر لـــوره
طعــــــام مـــــــه لېــــــږده د دوي کـــــره ای يــــــاره
کـــــه يرېـــــږې لــــــه عذابـــــه د قهـــــاره[٦٠٦]

مړي پسې چې ښځې ژاړي د هغې په باره کې داسې وايي:

پيغمـــــبر دي بيـــــا د هســـــې شـــــان ويـــــلي
مــــا پخپلــــه پـــــه کتـــــاب کـــــې دي ليـــــدلي
چـــــې هــــېڅ ښـــځې لــــه روانـــــه دي ای جانـــــه
پــــــه غـــــم کـــــې سر سرتـــــورول واوره زمانـــــه
هـــــم وښـــــکل د سر وېښـــــته ای زمـــــا يــــــاره
روا نــــــه دي پـــــه هـــــېڅ غـــــم کـــــې برخـــــورداره[٦٠٧]

او په بل ځای داسې وايي:

دغـــــه ښـــځه چـــــې ويــــر کانـــــدي لـــــه دهانـــــه
شي لــــــه خدايـــــه پـــــه دا ويـــــر دا بـــــې فرمانـــــه
درتـــــه وايــــم هـــــم لـــــه کــــل فرښـــــته ګـــــانو
بـــــــې فرمانــــــه بـــــه شي دا واورئ يـــــــارانو
هـــــم بــــــې فرمانـــــه شي لــــه کلـــــو پېغمـــــبرو
چـــــې دا پـــــه اوچـــــت اواز کــــوي ژړا دلـــــبرو
کــــه پـــــه پټـــــه ښـــځه زړه کـــــې نــــور ژړيــــږي
پټـــــې اوښـــــې پـــــه ګريـــــوان کـــــې تــــرې بهيـــــږي

په کـــې هـــيڅ نشـــته دی بـــاک ای زمـــا لالـــه
درتـــــه وايـــــم خـــــبر شـــــه لـــــه دې مقالــــه[۶۰۸]

اخون کریم داد په غم کې د ښځو د ژړا نقشه داسې راښکلې ده:

څـــه بـــه درتـــه وايـــم د عـــور تينولـــه کـــم بختـــی
يـــو نـــامراد ســـړی چـــې مـــړ شي دوی بـــه ويلـــه وکـــاچي راځـــئ
فلانکــــــی مـــــړ شـــــه مـــــونږ بـــــه ويـــــر کـــــړو
و تزنـــې جـــامې وکـــاږئ خپسرـــ پـــه ښـــو جـــامو بـــه جـــوړوئ
لکـــــــه دوی خپسرـــــــــــ ښـــــــــځو کـــــــا
پـــر لـــه پســـې بـــه شي روانـــې دوی پـــه مثـــل د لـــړی
چـــې د مـــړده پـــه غـــولي ورشي خپـــل اواز بـــه سرنـــده کـــا
پـــه نخـــا بـــه شي ورگـــډې پـــه معنٰـــي لکـــه لـــولی
دوي شـــين گـــرې شي روانـــې شـــين گـــرې بـــه ښـــېوه کـــا
زيـــــات پـــــر دنيـــــا لـــــه کـــــم پـــــر پوښـــــتی
تېـــرې بـــه يـــو وبلتـــه کانـــدي شـــين گـــرې
چـــــــې پـــــــه ويـــــــر کومـــــــه مړنـــــــی
يـــو بـــه لـــه ژړا رخـــه وي سســـته دوی بـــه وايـــي
چـــې تـــر اوســـه تـــا ژړا نـــه زده کولـــه ای خرگـــی
دا بـــــې هـــــوده عمـــــر دې پـــــه چرتـــــه تـــــيراوۀ
ای يـــــــــــا وې خـــــــــــواري کـــــــــــوهی
هغـــه ويرژلـــې کـــه هـــر څـــو وي صـــبرناکه
د دوی لـــه شـــامته بـــه شي تـــر خاونـــد پـــورې حصـــی
هغـــه عزيـــزان چـــې بـــه د دوی صـــوتونه اوري
خـــدای پـــر دوی بـــه شي ناراضـــه د اللـــه د نـــا شـــکرتی
دوی بـــــه وايـــــي ويرژلـــــې د ادي وخـــــت دی
کـــه بـــه ژاړې دا دې وخـــت دی هـــم برمنـــډه کـــړه څـــړی[۶۰۹]

لکه څنگه چې مخکې د دوست محمد دوستي په حواله ذکر شو چې که په غم ځوک ژاړي نو هغوی ته د غم روټۍ وړل نه دي پکار. په دې باره کې اخون قاسم پاپين

خېل وايي چې که په غمجنو کې نوحه گره ښځه نه وي، نو دوی ته طعام رسول مستحب دي، چې ژړا کاندي په زوره، چې د شرعي حکم نه وي، لکه سرور چې په ورځ د غم کې د امير حمزه عيال لره طعام وروستولی،که په دوی کې نوحه گره ښځه وي چې ژړا او ويرونه کوي نو بيا د طعام وراستول ناروا دي چې په گناه باندې مدد دی.[٦١٠]

## قبرونه

د قبر دوه قسمونه دي يو شامي او بل لحد. فوائد شريعت کې ليکلي چې که زمکه نرمه نه وي او لحد پکې جوړېږي نو د شامي نه د لحد کول بهتر دي.[٦١١] کله چې مړی په قبر کې وسپارل شي نو د هغه په قبر يو شين ډکی نهلولی شي. په دې باره کې دوست محمد خان داسې وايي:

بـــــل چـــــې څـــــوک ډکـــــی پـــــه قـــــبر کـــــړي نهـــــل
د خـــــالق پـــــه فضـــــل شـــــين شي مکمـــــل
دا شـــــين ډکـــــی ثنـــــا وايـــــي د خاونـــــد
د قيامـــــت دورځـــــې پـــــورې پـــــه ښـــــه خونـــــد
دا ثـــــواب ښـــــه بـــــې حســـــاب د مـــــرده وينـــــه
د اشـــــنا ســـــړي پـــــه شـــــان ملگـــــری وينـــــه
چـــــې څـــــوک اوکـــــاږي لـــــه قـــــبره ډکـــــی شـــــين
بيـــــا ثنـــــا نـــــه وايـــــي د رب العـــــالمين
لکـــــه ســـــړی چـــــې پـــــه مـــــرگ مـــــړشي کـــــام نـــــا کـــــام
نـــــور کـــــولی دی لـــــه خلـــــې نـــــه شي کـــــلام
هســـــې شـــــان تـــــه شي دا شـــــين ډکـــــی مـــــمات
حمـــــد د خـــــدای نـــــه شي ويلـــــی کـــــم و زيـــــات
نـــــاروا دي ای مخلوقـــــه دا دې نـــــه کـــــا
کـــــه وکـــــاږي بدبـــــه وکـــــا بدبـــــه وکـــــا[٦١٢]

په سوات کې د ستا نه دارو د مقبرو ډېر احترام کېږي او له هغوی نه ونې هېڅ څوک هم نه پرېکوي. د دې وجه مخدوم تصدق احمد داسې بيانوي:

It was also thought that the stanadars were able to exercise their powers after death. The testimony of this may be seen in

large groves of ancient olive trees here and there which stand in contrast to the barren naked hills. Evidently, the reason why the groves have escaped the ravages of the axe lies in the fact that within them are the graves of saints to which men and women came every Thursday for favours. The trees and shrubs in the vicinity of the groves are not molested lest wrath of the saint should befall the "Sinner".[٦١٣]

ترجمه: دا هم یو خیال و چې ستانه دار له مرگ وروسته هم د خپلو اختیاراتو استعمال کولی شي. د دې په ثبوت کې مونږ د خونانو زړې او غټې ونې لیدلی شو، کومې چې د لغړو غرونو په مقابله کې دلته ولاړې دي. په ظاهري توگه د دې خبرې وجه چې ایا دا گڼ ځنگلونه له تبر نه څنگه محفوظ پاتې شوي، دا وجه په دې حقیقت کې پرته ده چې دلته د پیرانو او ولیانو قبرونه دي چې د هر زیارت په ورځ سړي او ښځې له هغوی نه د سوال کولو لپاره دلته راځي. د دې قبرونو ونې او بوټي ځکه نه شي خرابولی چې هسې نه د دې ولیانو او پیرانو غصه په دې گناه کوونکو باندې پرېوځي.

مېجر راورټي په سوات کې د عامو مقبرو په باره کې داسې لیکي:

The Afghan tribe, like all Muhammadans, have a great respect for the last resting-plces of their own dead, at least; but the Suwatis seem to feel little compunction or respect on this head. I have already mentioned that the strip of land lying between the villages and the rise of the mountains, is set apart for the cultivation of wheat and barely, and that, in that land also, their burying grounds are situated. After a few years they allow these fields to lie fallow for some time and plough up all the burying grounds, and, in future bury the dead in the fallow land! This may be consequent on the small quanitity of land available for purposes of agriculture; but still, it appears a very horrible custom.[٦١٤]

ترجمه: پښتانه د نورو مسلمانانو په شان د خپلو مړو د مقبرو ډېر خیال ساتي، خو په دې باره کې سواتیان کم درناوی او عزت ورکوي، لکه څنگه چې ما وړاندې ذکر کړي،

چې د زمکې هغه ټکړه چې هغه د دوو کليو يا د غرونو په مينځ کې پرته وي هغه د غنمو او د وربشو دکرکيلې لپاره بيله کړی شوې وي او په دغه زمکه کې د دوی مقبرې هم وي، يو څو کاله وروسته دوی دا زمکې د څه وخت لپاره شړې پرېږدي او بيا دا ټوله د مقبرې زمکه ېوې کړي او بيا په راتلونکي کې مړي په شاړه زمکه کې سپاري. د دې دا وجه هم کېدی شي چې دلته د کروندې زمکه کمه ده، خو بيا هم دا ډېر د وېرې قابل رواج دی.

د دې يوه وجه دا هم کېدي شي چې په سوات کې به د گرځنده وېش له وجې خلکو د يو بل د مقبرو احترام نه کولو. د وليانو او پيرانو قبرونو ته به خلک تلل او له دې نه علاوه به د اختر، شوقدر او په نورو خاصو موقعو خلک د مړو قبرونو ته تلل. د مړو قبرونو ته د تلو لپاره د خاصو ورځو تذکره دوست محمد خان دوستی داسې کوي:

مردگـــــــانو تـــــــــه د تلـــــــــــو دپـــــــــاره وروره
يــــــو څــــــو ورځـــــــې مقــــــرر دي راشــــــه گــــــوره
اول شـــــــــــنبه بلـــــــــــه دويمـــــــــــه دو شـــــــــــنبه ده
هــــــــم دريمــــــــه ښائســــــــته ښــــــــکلې پانجشــــــــنبه ده
د جمعـــــــــــې ورځ ځلــــــــــــور مـــــــــــه ده افضــــــــــله
اوس وختونـــــــــه درتـــــــــه ښـــــــــايمه ای دلـــــــــه
چـــــــــــې ورځ راشي جمعـــــــــــه واوره مومنـــــــــــه
څـــــه مــــــرده گــــــانو لــــــره پــــــس لــــــه ماســــــپخينه
چـــــــې ورځ راشي خاصــــــه شــــــنبه زمــــــا جانــــــه
زر دنمـــــــــر پـــــــــه ختـــــــــو څـــــــــه واوره زمانـــــــــه
هـــــــم چـــــــې ورځ د دوشـــــــنبې راشي اظهـــــــاره
د غرمـــــــې پـــــــه وخـــــــت دې ځـــــــي ای زمـــــــا يـــــــاره
چـــــــې ورځ راشي درتـــــــه وايـــــــم پنجشـــــــنبه هـــــــم
ځـــــي دې قـــــبر لـــــه پـــــه ځابنـــــت وخـــــت کـــــې کـــــره هـــــم[۶۱۵]

کله چې څوک قبر ته لاړ شي او د هغه قبر په واسطه څه سوال کوي، نو د سوال له کولو نه اول چې کوم لوازمات پوره کول پکار وي د هغې په باره کې دوست محمد خان دوستی داسې وايي:

کــــــه طلـــــــب کانــــــــدي څـــــــوک وروره د زيـــــــارت
اول دې وكــــــــــړي دوه ركعاتــــــــــه پــــــــه عـــــــزت
ثــــــــواب دې وبخښـــــــــي پــــــــه روح د ولي بانــــــــدې
پــــــس لـــــــه هغــــــه دې ولي تـــــــه ورتلــــــــل كانـــــــدي
ثــــــــواب وليــــــــــږي د نفلــــــــو پــــــــاک ســــــــبحان
هغـــــــــه ولي تـــــــــه دا ســـــــــــړی چـــــــــې وي روان[٦١٦]

او بيا چې کله له نفلونو کولو نه پس د هغه ولي يا نېک سړي قبر ته ورشي او څه سوال يا دعا کوي نو داسې به وايي:

زه اوس ســــوال ســــتا پـــه روضـــه كـــوم لـــه خدايـــه
تـــه هـــم ســـوال زمـــونږ دپـــاره كـــړه نېـــک رايـــه
چــــې حاصــــل كــــړي خــــدای زمـــا د زړه مقصـــود
چـــې بيرتـــه ســـتانه ځمـــه كـــور تـــه ښـــه خوشـــنود[٦١٧]

## ټولنيز ژوند او پښتونولي

په يوه ټولنه کې يو ځای اوسېدل او له يو بل سره غم ښادي او کلی کلويغي کولو ته ټولنيز ژوند وايي.د پښتنو د ټولنيز ژوند څه اهمې خبرې دا دي:

## بيمار پوښتنه

د بيمار پوښتنه کول، هغه ته تسلي ورکول او د هغه ډاډګيرنه کول پښتانه لازمي ګڼي، ځکه چې اسلام هم د دې خبرې تاکيد کوي .[٦١٨]

## جرګه

جرګه په پښتني ټولنه (سماج) کې د انتظامېې او د عدليې د دواړو کردار ادا کوي. دا د پښتونولۍ يو اهم جز دی ځکه يې په ادب کې ډېرې حوالې موندل کېږي.

حافظ الپورئ په يو شعر کې جرګه داسې يادوي:

كـــــوم يـــــوه بـــــه د ځـــــان برخـــــه خوښـــــوله
پـــــه جرګـــــه كـــــه هغـــــه وېـــــش وی عـــــالي شـــــانه[٦١٩]

احمددين طالب د جرګې ذکر داسې کوي:

کـــــور چـــــې وران شي پـــــه جرگـــــه د کـــــور رغيـــــږي
اغېړلـــــى خـــــلاص د بـــــل پـــــه دنبـــــال نـــــه شي[620]

د پښتونولۍ خپل څه خصوصيات دي چې په هغې کې مېلمه دوستي، بدرگه، بدل او نور هم شامل دي. د پښتونولۍ د دې عناصرو ذکر لاندې کولی شي.

## مېلمه پالنه

مېلمه پالنه د پښتنو يو ښکاره صفت دی. دغه وجه ده چې دا د پښتو او پښتونولۍ يو اهم جز گڼل کېږي. پښتانه مېلمه ته همېشه لپاره ښه خوراکونه ورکوي او بيا د مېلمنو په مينځ کې هم توپير موجود وي، چې د يو مېلمه په نسبت د بل قسم مېلمه زيات خيال ساتل کېږي، لکه د لرې ځای مېلمه او د نزدې مېلمه  او نور.

د نيـــــازبين مېلمـــــه مـــــدام غوښـــــې خـــــوراک وي
کـــــه ســـــتا غـــــم مـــــې د خـــــوږ زړه بـــــوټۍ خـــــوړلې[621]

د مېلمه او مېلمه پالنۍ په حواله د احمد دين طالب يو څو اشعار وړاندې کولی شي:

چـــــې مېلمـــــه درنـــــه ډوډۍ غـــــواړي پټـــــيره
پـــــه مهلـــــت يـــــې يـــــو ســـــاعت نـــــه کـــــړې خمـــــيره[622]

چـــــې پـــــه کـــــور کـــــې د چـــــا چـــــرگ پـــــلاو پخيـــــږي
مېلمانـــــه يـــــې نـــــه خـــــورې خـــــس د کبـــــل کـــــر ش[623]

ورتـــــه خانـــــده چـــــې مېلمـــــه نـــــه نـــــه خلاصـــــيږې
لـــــه اولـــــه شي رمضـــــان پســـــې اخـــــتر شي[624]

دوست محمد خان دوستی د مېلمه پالنې په باره کې په يوه واقعه کې داسې ذکر کوي:

پـــــير ويـــــل چـــــې ورتـــــه نـــــه کـــــړې جبـــــين بـــــوټ
نـــــور پـــــه دا جبـــــين وي بـــــد د غـــــوړو گـــــوټ
د وربشـــــو ډوډۍ ورکـــــړه پـــــه ټقالـــــه
تـــــل هغـــــه تـــــه دا نعمـــــت دی زمـــــا لالـــــه
د مېلمـــــه دی دا تعظـــــيم ای زمـــــا وروره

لکـــــه مـــــا چـــــې بیـــــان اوکـــــړه ورتـــــه گـــــوره
تـــــول عـــــالم کـــــړه پـــــاک خـــــالق تاتـــــه محتـــــاج
پـــــه هـــــر یـــــو ولي د پاســـــه ســـــتا خـــــراج
نـــــور پـــــه ثـــــه بـــــه د مېلمـــــه وي مهمانـــــې هـــــم
ځـــــواب راکـــــړه زه د دې یـــــم ارمـــــاني هـــــم
ده ویـــــل تـــــه پـــــرې اول واخلـــــه ســـــلام
پـــــس لـــــه هغـــــه ورسره اوکـــــړه کـــــلام
بیـــــا تـــــه ســـــت اوکـــــړه مېلمـــــه تـــــه د نعمـــــت
نـــــور یـــــې کـــــور تـــــه زر روان کـــــړه پـــــه عـــــزت[٦٢٥]

هر سړی وایي چې ما د مېلمه قدر وکړی، خو په غریب سړي چې کله مېلمه راشي، نو هغه ځکه وارخطاشي چې هغه کماحقه قدر نه شي کولی. قاضي غلام رباني په یو شعر کې دې طرف ته داسې اشاره کړې ده:

رنـــــگ مـــــې زیـــــړ وار مـــــې خطـــــا دی بیلتانـــــه تـــــه
لکـــــه خـــــوار ســـــړی چـــــې گـــــوري میلمانـــــه تـــــه[٦٢٦]

**بدرگه**

د قافلې د حفاظت لپاره او یا چا ته د عزت ورکولو لپاره چې کوم کسان ځي، هغې ته بدرگه وایي. میاداد د بدرگې لفظ په دې شعر کې ذکر کړی دی:

بیـــــا هغـــــه ثـــــوک بـــــدخواهان بـــــه زمـــــا ثـــــه وکانـــــدي
بدرگـــــــــه راسره تاغونـــــــــدې اللـــــــــه لرمـــــــــه[٦٢٧]

بدرگه په هغه وخت کې ډېره عامه او اهمه وه کله چې به د سفر په دوران کې د ډاکې کولو خطره وه، نو خلکو به خپل مېلمانه د خپل کلي له حدودو نه په امن ویستل غوښتل نو بدرگه به یې ورسره ملگرې کړه.

**برمته**

کله چې د یو کس په بل کس قرض وي او هغه یې ورکولو ته تیار نه وي، نو د پور خاوند له پوروړي نه څاروي یا سړي په برمته کې بیایي او تر هغه وخته یې نه ورکوي ترڅو چې د ده قرض نه وي ورکړی شوی. له برمتو نه ډېرې جگړې هم پېښېږي خو زیاتې برمتې

بیا د جرګو مرکو په ذریعه فیصله کیږي.[٦٢٨] کله کله به پښتنو د حکومتونو نه هم برامتې کولې، په پټه به د حکومت حدونو ته واوړېدل او نر یا ښځه چې څه به یې په لاس راغلل برامته به یې کړل، سبا ته به یې بیا اظهار وکړو او د دې برمتې په ذریعه به یې خپل بندیان خلاسول.[٦٢٩] په ۱۸۷۵ کې په سوات کې د سوات اخوند چې په سیدو بابا مشهور وه هغه د برامتې خلاف فتوه ورکړه او د دې د وجې سواتیانو برامته بنده کړه.[٦٣٠]

## بدل

بدل هم د پښتونولۍ یو اهم توکی ګڼل کېږي. بدل دوه معنې لري یوه معنا یې دا ده چې ځوک له چا سره ښېګړه وکړي نو د دغې ښېګړې په جواب کې نېکي کول هم بدل دی او دویم قسم یې د دښمنۍ دی، یعنې که چا له چا سره بد وکړل، نو هغه کس به د خپلو بدو د بدل اخستلو کوښښ کوي. دوستی په اسلامي نقطه نظر سره د بدل ذکر داسې کوي:

نــــور پـــــه دا رنــــګ حکــــم دی د پـــــاک غفـــــور
چـــــې پــــه حـــر بانـــدې بـــه وژنـــئ تاســـو حـــر
او پــــــه عبــــــد بانـــــدې وژنــــئ عبــــد تـــــل
هســـــې نـــــه چــــې بـــه قصـــاص اخلـــئ د بـــل
او پـــــه ښــــځه وژنــــئ ښـــــځه نـــــور همـــــېش
دا دی امـــــر پــــه کـــې مـــــه کـــــړئ کـــم وبـــــېش
تاســـو ټـــول ځـــئ د دې امــــر نــــه پــــه عکـــس
هســــې شـــــان تــــه ای مخلوقـــــه کړمـــه بحـــث
چـــــې یــــوتن بـــه پـــه ټـــبر کــــې وي قاتـــــل
د قصـــــاص حکــــم پــــــرې وي د پـــــاک جلیـــــل
تاســــو مړیــــې بــــې تقصـــیره کـــړئ پـــــدر
یـــا یــــې ورور بــــې ګنـــاه مـــړ کـــړئ یـــا پسر[٦٣١]

دلته په سوات کې به د قاتل پر ځای بل وژل کېده، لکه خوشحال چې وایي:

لــــه قاتلـــه ځــــان غلـــط کـــا پــــه قصــــاص کــــې
د مقتــــول پـــه ځـــای بـــل ووژني پــــه خــــاص کـــې[٦٣٢]

د یــو د غلطــۍ ســزا بــل تــه ورکــول نــه دي پکــار او ددې لپــاره دې پښــتنو لیکوالانو په هغه زمانه کې کوښښونه کړي دي:

## ټل او ډله

د سوات په ټولنیز ژوند کې د ټل او ډلې ډېر اهمیت و. د هر خان، ملک او د ټپې د مشر به ځان ځان ته ډله وه. د سوات په سماجي تنظیم کې د دې ډلو ډېر اهمیت و، په گرځنده وېش او نورو ټولنیزو معاملاتو کې د ټل او د ډلې خپل اهمیت پاتې شوی دی. احمد دین طالب د ټل او ډلې ذکر په دې شعر کې کوي:

نــــــه دې چــــــا سره الفــــــــت نــــــــه معرفــــــــت وه
نــــــه دې ډلــــــه وه نــــــه ټــــــل پــــــه دې دنیــــــا[۶۳۳]

ټـل او ډلـه د ریاسـت لـه ختمېـدو، یعنـې پـه پاکسـتان کـې لـه ضـم کیـدلو سره بیـا کمـزورې شـوه او د دې اهمیـت هـم ورو ورو خـتم شـو. بیـا د ریاسـت لـه انضـمام نـه بعد د ټل او د ډلې پر ځای سیاسي جماعتونه جوړ شول.

## پچه یا خسنۍ

په سوات کې د زمکو د وېش او د نورو مهمو خبرو د فیصلې کولو په موقع به خسنۍ اچول کېده. خسنۍ ته هسک هم ویلی شي، لکه خوشحال خان چې وایي:

کـــال پـــه کـــال د ملـــک پـــه هســـک کانـــدي باختونـــه
بـــې لښـــکرو پـــه خپـــل ځـــان کانـــدي تاختونـــه[۶۳۴]

د میاداد په دې شعرونو کې "پچه" ذکر شوې ده:

او هغـــه څـــوک عالمـــان څـــوک درویشـــان لیـــده شي
او میــــاداد لــــه میانــــه واچولــــه خپلــــه پچــــه[۶۳۵]

هغـــه تـــا برخـــې د قســـمت پـــه ارواحـــان وېشـــلې
او د میــــاداد پـــه نـــام ختلـــې د دولـــت قرعـــه ده[۶۳۶]

کـــه زه شـــها خپلـــه پـــه تـــا بانـــدې مېینـــه نـــه وی
دا د دولـــت پچـــه بـــه ســـتا پـــه نـــوم ختلـــې نـــه وه[۶۳۷]

پچه یا خسنی اچول په ډېرو موقعو خلک کوي او په خصوصي توګه کله چې څوک یو څیز تقسیموي، نو بیا دا ډېر کارول کېږي. د شېخ ملي د زمکو وېش به هم په خسنې کېدل او خلک هم دې ته تیار وي چې په خسنې څه فیصله وشوه، نو هغه به بیا ټول مني.

## استسقا

کله چې ډېر وخت سوکړه شي او باران نه وي، نو خلک له الله تعالی نه دعا غواړي او د باران طلب کوي، دې عمل ته استسقا وایي. محمد اکبر په یو شعر کې استسقا داسې یادوي:

استسقا لره بیرون درومه اکبره
کوکاری شوه اوچه کلکه باران نشته[۶۳۸]

د اوړدې سوکړې له وجې چې کله بارانونه نه کېږي، نو کله کله ماشومان هم خپل یو دود کوي. هغه داسې وي چې مخونه تور کړي په چم محلت کې وګرځي او له خلکو نه غوړي، اوړه، ګوړه، چیني او نور راجمع کړي او بیا تري حلوه پخه کړي او په خپلو کې یې تقسیم کړي. په دې موقعه کله په مقبره کې په قبرونو اوبه هم واړوي. دې عمل ته تورمخی وایي.

## ګودر

په پښتو ادب کې د ګودر له ذکر سره رومانی احساسات راڅرګیږي. د ګودر د اهمیت اندازه له ګودر سره تړلې له فوکلوري ادبیاتو نه لګي. له ولسي ادب نه علاوه په تحریري ادب کې هم د ګودر ذکر ډېر موندل کېږي. د سوات یو شاعر خیری په یوه چار بیته کې ګودر داسې یادوي:

د مشغولګی طرف ته وخت د مازیګر ښایه شي
عاشقه نیسه دواړه لارې ورته
هغه درنه ورله ورځي چې پرې ګودر خائسته شي
څه حاجت نشته دربیارې ورته
خیرالله خانه که روئیداد یې ورته[۶۳۹]

اګر چې په ګودر د پېغلو جونو ملاقاتونه کېږي، په مختلفو امورو بحثونه

کوي او زلمي هم د گودر په طرف د ملاقات لپاره سترگې په لار ناست وي، خو د دې دومره رومانيت باوجود د گودر هم څه خپل اصول وي چې ټول پښتانه يې مني.

## د ښځو ژوند

د سوات د دې دور په پښتو ادب کې د ښځو د ژوند په باره کې هم کافي معلومات په لاس راځي او له دغو معلوماتو نه د هغه وخت په ټولنه کې د ښځو د مقام، مرتبې او د هغوی د ژوند پته لگي.

خوشحال خټک د سوات دخلکو په باره کې وايي چې دوی د ښځو تابعداري کوي او د ښځو غلامان دي. د دې نه پته لگي چې د هغه دور په ټولنه کې ښځو ته يو ښه مقام حاصل و، لکه دا شعر:

خبردار کله په شرم په کرم دي
همگي عبدالزوجه عبدالقدر هم دي
هم يې کبر هم يې حکم هم يې ناز وړي
په هر څه کې د عورتو ساز ناساز وړي[٦٤٠]

د هغه وخت د سوات د يوسفزو دا يو رسم هم و، چې د لور خور پر سر به يې پېسې هم اخستې چې ورته د سر مال وايي، لکه خوشحال چې وايي:

سپوائي بدې د لور چې لونه پلوري
په دا څو توکه کې غرق دي مخ توري
په کم اصل په بداصل نظر نه کا
د ننگو په لالچ خور او لور واده کا[٦٤١]

دا خبره خو صحيح ده چې د لور يا خور پر سر به يې روپۍ اخستې، خو دا هغه شان خرڅول نه وو لکه چې يې عام طور گڼلی شي ځکه چې دغه اخستی مال به يې بيا د لور يا خور په واده لگوه، ځان ته به يې نه خوړه او دغه شان به د جينۍ واده په موروپلار بوج نه و، بلکې دا به د هلک په کور والا و.

د چا د غم په موقعه به ښځې د غم کور ته تللې او هلته به يې وير وينا کوله. اخون کريم داد د چا د مرگ په موقع د ښځو راجمع کېدل او وير وينا کولو ته ډېر بدگوري او داسې وايي:

رســـول هســـې دي ويـــلي د عورتينـــو فاتحـــه ده مـــا بخښـــلې
ولـــې دا مـــرده او ژونـــدي بـــه مـــې نـــا حـــق شرمـــوئ عـــذابوئ[٦٤٢]

په سوات کې به ښځو ته په ميراث کې حصه نه ورکول کېده، په دې باره کې خوشحال داسې وايي:

د بابـــــا د مـــــــال يـــــــواځې مـــــــيراث خـــــــور دي
نـــه پـــه تـــرور دي نـــه پـــه مـــور دي نـــه پـــه خـــور دي[٦٤٣]

دا هم يوه عامه خبره ده چې د ښځو عقل کم وي او له دوی نه مشوره اخستل نه وي پکار او نه د دوی خبره اورېدل پکار دي، لکه حافظ الپوری چې وايي:

د زنـــــــانو وينامـــــــــه اوره کـــــــــه دانـــــــا يـــــــې
چـــــــې خـــــــبره يـــــــې بـــــــې خېـــــــره خسرـــــــاني ده[٦٤٤]

پـه مجمـوعي توگـه کـه مـونږ وگـورو نـو د سـوات پـه پښـتنه ټولنـه کـې ښـځو تـه ډېره ازادي وه او ډېر حقونه يې ورته مېلاوېدل.

## لوبې، تفريح، اخترونه، مېلې

د سوات د وړومبي دور له ادب نه د دې دور د خلکو د لوبو، تفريح، اخترونو او د مېلو د حالاتو پته لگي. په سوات کې به د مردکو لوبه کېدله، خوشحال خان ورته په دې شعرونو کې اشاره کړې ده:

ځـــــو ژونـــــدی يـــــم وابـــــه نـــــه ورم لـــــه دې هـــــوډه
مـــــرد کـــــــي پـــــــه وار وار ورشي عـــــن تـــــر کـــــوډه[٦٤٥]

نـــــه مردانـــــو غونـــــدې مـــــوخې شـــــهنکي کـــــا
ســـــپينو ږيـــــرو سره ټـــــول شي مـــــرد کـــــي کـــــا[٦٤٦]

عبدالعظيم صواتی د غوزانو او د غونډوسکي لوبې په شعر کې يادوي :

خپـــــل همزولـــــی ورسره نـــــه کانـــــدي لـــــوبې
نـــــه غونډوســـــکی نـــــه غـــــوزان د مـــــرگ لـــــه لاســـــه[٦٤٧]

حافظ الپوری په دې شعرونو کې د شطرنج يادونه کړې ده:

د شـــــطرنج لائـــق بـــه هلـــه شـــې حافظـــه
کـــه د گلـــو هـــار ســـالم یوســـې خوبالـــه
د شـــطرنج اشـــنایې یـــو دی غـــوره کـــړی
پـــه لبـــاس د خلـــې د هـــر چـــا دلـــبري کـــا[٦٤٨]

اخترونه په کال کې دوه دي یو لوی اختر او بل وړوکی. د دې اخترونو په باره کې میا کریم داد داسې وایي:

نـــور عـــالم پـــه کـــال کـــې دوه ځلـــه اخـــتر کـــا
کـــریم داد بنـــده پـــه هـــر نفـــس کـــې دوه اخـــتره کانـــدي[٦٤٩]

د اخترونو په موقعه د جینکو د سیل ذکر محمد اکبر داسې کوي:

زه د اخـــتر پـــه جونـــو را غلمـــه هـــوس راغـــی
ټیکونـــه بریښـــي شـــنهر د پېکـــړو خیـــژي[٦٥٠]

د اخـــتر جونـــه ســـپلانۍ د زلمـــو زړونـــه راکـــاږي
پـــه مشـــک عنـــبر ملـــوث کـــا چمـــن کـــه مرغـــزاری را[٦٥١]

د اختر په شان د شوقدر موقعه هم د خلکو لپاره د خوشحالۍ یوه موقعه وي. میاداد یې داسې ذکر کوي:

هـــره شـــپه پـــه ماشـــوقدر هـــره ورځ پـــه مـــا اخـــتر
هغـــه چـــې مـــې د عشـــق د میوجـــام گـــوټ کـــړه پـــه نـــن ورځ[٦٥٢]

او په بل ځای کې وایي:

هـــــره شـــــپه پـــــه ماشـــــوقدر
هـــــره ورځ پـــــه مـــــا اخـــــتر دی
ســـــکه ځـــــار لـــــه غـــــافلانو
یـــــې اخـــــتر پـــــه کـــــالو سر دی[٦٥٣]

د دې لویـو خوشـحالیانو لـه موقعـو نـه عـلاوه پـه مقـامي توگـه نـورې هـم داسـې وړې وړې د خوشـحالیو مـوقعې وې پـه کومـو بـه چـې د سـوات خلـک رایـو ځـای کېـدل او خوشحالیانې به یې کولې.

## د شېخ ملي وېش

یوسفزي چې کله د پینځلسمې پېړۍ په اخري ځلورمه حصه کې له کابل نه راغلل او په مختلفو علاقو یې قبضې وکړې، نو د دوی یو مشر شیخ ملي دا مقبوضه علاقې په مختلفو قبیلو عارضي طور ووېشلې او دا عارضي وېش به پینځه، اووه یا لس کاله بعد بدلېده، ځکه چې دا زمکې بعضې شړې، بعضې فصلدارې، بعضې د اوبو لاندې او بعضې باراني وې، نو چې ټول خلک یو شان مستفید شي ځکه به په خسنې گرځنده وېش کېده. د شیخ ملي دا عارضي وېش د سوات د حکمران میا گل عبد الودود په دور کې ختم شو.

## د شېخ ملي د وېش طریقه

د شیخ ملي د وېش د طریقې په باره کې مېجر راورټي لیکلي، چې شیخ ملي د ټول سوات او بونېر یوه سروې وکړه او ټوله علاقه یې د کورنۍ د افرادو په حساب سره د منډړ او یوسف په اولاد ووېشله، خو څه حصه یې په نورو درېو ډلو د وېشلو لپاره باقي پرېښوده. د دې ډلو نومونه کابلي، لغماني او ننگرهاري وو، خو دا افغانان (پښتانه) نه وو. کومه حصه به چې پښتنو ته ورکړل شوه هغې ته به یې دفتر ویلو او کومه حصه چې به ملیانو، سیدانو یا نورو خلکو ته ورکړل شوه هغې ته به یې سېرۍ ویله. شیخ ملي وړومبی سوات په دوه حصو کې تقسیم کړ. کومه حصه چې د شمال او مغرب د غرونو او د سین د ښي طرف په مینځ کې پرته وه دې ته یې د لمدې نوم ورکړ. کومه زمکه چې د سین گس اړخ او د جنوب او مشرق غرونو په مینځ کې وه دې له یې د وچې نوم ورکړ. لمده حصه د برنگولې نه تر لنډې پورې وه، داپه اوږدوالي شپېته میله ده او وچه حصه د توته کان نه د پیا پورې وه دا درې شپېته میله ده، پلن والی د دواړه حصو ځای په ځای مختلف دی.[٦٥٤] له توته کان نه تر تانې پورې دا علاقه یې رانیزو له ورکړه. د تانې نه د مانیار پورې دا علاقه یې سولیزو له ورکړه، د مانیار نه چارباغ پورې دا علاقه یې بابوزو له ورکړه، د بابوزو نه مخکې متوړیزي دي او د متوړیزو نه مخکې د خونه پورې خازي خېل دي او د خونه نه د پیا پورې جانک خېل دي او دغه رنگ په لمده حصه کې د برانگولې نه د راموړې پورې خادکزي او ابازي دي چې یو ځای اوسېږي. د راموړې نه د اوچ پورې ادینزي دي، د اوچ نه د سوېگلۍ پورې شموزي دي، د سوېگلۍ نه د ننگولۍ پورې نیکپي خېل او د نیکپي خېل نه د لنډې پورې سیبوجني دي.[٦٥٥]

عبدالحی حبیبي لیکي چې د شیخ ملي په دفتر کې ټوله زمکه په شپږو ټپو وېشلې

شوې وه. د یوسفزو تپه (د شمالي مردان سمه او سوات)، د محمد زو تپه (اشنغر، چارسده)، د ګګیاڼو تپه (دوابه، باجوړ، چارمنګ)، د داودزو تپه (کلپاڼی، بګیاړی)، د مومندو تپه (د پېښور شمال غربي پلو تر جنوب غربي پورې) ـ دغه شپږ تپې هره یوه په دوتر، برخه، پټې وېشلې کېده او د هر سړي برخه په پټې، یعنې کرونده او زراعتي زمکه کې ونډ بللې کېده او د ځاروو د څر ځای به ورشو وه، د کلي جرګې به دغه ونډ او ورشو د خسنې په ذریعه ټاکل.[٦٥٦]

په دې وېش کې به د یوسفزو برخې ته دفتر یا دوتر ویل کېده او ستانه دارو یا ملیانو وغیره ته به یې چې کومه زمکه ورکړه یا به یې خان ملک ته سریزه پاتې کړه هغې ته به یې سېرۍ ویله، خوشحال په دې شعر کې سېرۍ یادوي:

کوم ملا چې د میا نور په حکم درومي
هم هغه د سوات په ملک کې سېرۍ مومي[٦٥٧]

حسېن هم د سېرۍ او دوتر یادونه داسې کوي:

د بړني فریاد مې ګرځي پکې دوه سوه قلبې
زاهد دې اوکه تماشاز ما د عشق سېرو ته[٦٥٨]
د تن کېده به حسېن پسې راکاړم
چې وطن ته مې د عشق د زړه دوتر لاړ[٦٥٩]
اوس به کوم وطن ته کېده د زړه بیا یم
چې دوتر مې شه د مینې شېخ ملي[٦٦٠]

د سېرۍ په باره کې عبدالحی حبیبي لیکي چې په هره برخه کې به یو څه زراعتي زمکه د سېرۍ په نامه د وېش نه بیله اېښودی کېده، دا برخه به د دغه حصې واله په شریکه کرله او پیداوار به یې د کلي د عامو ګټو په کار کې لګولی شه، لکه د جومات خرچ، د کلي د هلکانو د تعلیم کارونه او هم د کلي د ډم د کورنۍ خرڅ چې کار یې ډول وهل، خلق خبرول وو او هم به له دغه سېرۍ څخه د کلي د حجرې او د مېلمنو د خسمانې د پاره خرڅ کېده.[٦٦١]

## د شېخ ملي د وېش نقصانونه

شیخ ملي د وخت او د حالاتو مطابق ګرځنده وېش غوره کړی و، خو د تهذیب او تمدن د ترقۍ په لار کې دا ګرځنده وېش یو غټ خنډ و او تر څو پورې چې دا نه و ختم شوی، نو په

سوات کې تهذیب او تمدن په صحیح معنو کې ترقي نه شوه کولی. خوشحال خان خټک چې په اوولسمه عیسوي پېړۍ کې سوات ته راغلی و هغه هم د دې وېش نقصانونه او خرابۍ نتیجې بیان کړي دي. هغه د دې خراب نظام له وجې نه یوسفزو ته په سپک نظر ګوري او وایي چې دوی کال په کال په خسنۍ له خپل جایداد نه ځان محرومه کوي او دغه رنګ دوی پخپله بغیر د څه طاقت له استعمال نه پر ځان حمله کوي، هغه وایي:

کـــال پـــه کـــال د ملـــک پـــه هســـک کانـــدي باختونـــه
بـــې لښـــکرو پـــه خپـــل ځـــان کانـــدي تاختونـــه[٦٦٢]

د پښتنو د بار بار وېش په باره کې محمد اکبر داسې وایي:

د کـــوټې قلنـــګ يـــې بيـــل د مـــــــزکې بيـــل وي
بـــې لـــــــه وېشـــه يـــې بـــل رنـــګ سريکـــار نـــه وي[٦٦٣]

عنوان الدین کاکاخېل[١٩] د دې وېش نقصانونه داسې بیانوي:

د سوات زمکه ده زرخېزه خو مخلوق يې دی دروېزه
دوي مدام کوي وېشـونه يـو د بـل سره جنګونـه
ځکـه ښـۀ نـه ابـاديږي چې سبلونه پکې کیـږي[٦٦٤]

تاج محمد خان زېب سر د شیخ ملي د ګرځنده وېش نقصانونه داسې بیانوي:

دا اولـــس بـــه همېشـــه کـــډه پـــه سر وه
لـــس پينځـــه کالـــه بـــه وېـــش هـــم مقـــرر وه
دا شريـــف قـــام د پښـــتون خانـــه بـــدوش وه
د غـــه کـــار کـــه نـــه د عقـــل نـــه د هـــوش وه
کـــال د وېـــش هـــم کـــال د قحـــط د تنګـــۍ وه
هـــر ســـړی پوهـــه پـــه خپلـــه بـــد رنګـــۍ وه
ســـتا نـــه داربـــه وو مقـــيم پـــه خپـــل مکـــان
وو د دوي بــــــه مېلمانـــــه دا افغانـــــــان

[١٩] د عنوان الدین کاکا خېل دا کلام په "د پښتونخوا د شعر هار و بهار" کې د " حال د ملک د صوات ابیات د عنوان الدین کاکاخېل واقعه ١٨ ماه مارچ ١٨٨٢ عیسوي" سرخط لاندې درج دي.

پــــه دې قـــام کــــې چـــې تـــر کومــــه دا غضــــب وه
دا ابـــاد وطـــن بـــر بـــاد پـــه دې ســـبب وه[٦٦٥]

په یو بل ځای کې تاج محمد خان زېب سر د دې وېش د نقصانونو په باره کې لیکي چې د ملک په عام تعمیر او ترقۍ کې لوی بندیز واریز تقسیم و، ولې چې هېڅ چا خپلې مقبوضه زمکې یا د اوسېدو مکان ته خپل قرار گاه وئیلی نه شه او عجیبه خبره دا وه چې د قومي روایاتو په وجه دغه غلط عادت هم د هر چا خوښ وه او هېڅ چا هم د دې خلاف آواز پورته کړی نه وه.[٦٦٦]

## د شېخ ملي د وېش فایدې

شیخ ملي ډېر هوښیار سړی و او د پښتنو د جنگونو هغه ته پته وه، نو هغه په دې وجه گرځنده وېش یا واریز وېش خوښ کړ، چې کله چا ته ښه او چا ته خرابه زمکه ورسي، نو د دې خبرې احتمال شته چې دا قبایل په خپلو کې جنگونه شروع کړي.[٦٦٧] د میاگل عبدالودود باچا صیب په وخت کې دا گرځنده وېش په توري وران وېش کې بدل شو چې د هغې تفصیل په پینځم باب کې موجود دی.

## معاشرتي او اخلاقي خرابیانې او سزاگانې

د سوات په خلکو کې چې کومې معاشرتي او اخلاقې کمزوریانې موجود وې د هغې ذکر هم د سوات د هغه دور په پښتو ادب کې په نظر راځي، ځینو خرابیانو ته خوشحال خان خټک اشاره کړې ده، لکه د خانه جنگۍ په باره کې وايي:

دا لاځــــــه دي ځنـــــــي نــــــور قباحتونــــــــه
کـــــور پـــــه کـــــور سره اختــــه پــــه شــــدتونه[٦٦٨]

کـــــور پـــــه کـــــور کنـــــدي کنـــــدي سره بـــــدنیت دي
بـــــې هـــــوده لـــــه ځایـــــه خـــــوښ بـــــې برکـــــت دي[٦٦٩]

کــــه پــــالیز د خټکیــــو ځــــوک ودان کــــا
پخپـــــدو تـــــه یـــــې پـــــرې نـــــړدي زریـــــې وران کـــــا[٦٧٠]

د پښتنو د خانه جنگۍ ذکر عبدالعظیم صواتي هم داسې کړی دی:

اوس زمــــــونږ پـــــه زمانـــــه کـــــې دو رنګـــــي شــــــوه
کــــــور پـــــه کــــور د پښـــــتنو خانـــــه جنګـــــي شــــوه[٦٧١]

په پښتنو کې علم او پوهه نه وه او بې عمله او جاهل وو.[٦٧٢] د هغه وخت د سوات خلکو دهاړې کولې او په مال دولت به یې خپل مخالفین وژل او مال دولت به یې ترې راوړلو. [٦٧٣] کله چې به یې دهاړه کوله نو په دهاړه کې به یې ماشومان هم وژل، دې ته به یې "میراته کول" ویل. عبدالعظیم صواتی هم په یوه دهاړه کې خپلې نیا له دښمنانو نه بچ کړی و او نور اهل وعیال یې مړه وو، هغه وایي:

خپـــــل زمـــــا د پـــــلار نېکونـــــو وطـــــن صـــــوات دی
دوی پـــــه خېـــــل کـــــې راښېـــــزي وو دلربایـــــه
لـــــه د ښـــــنی د دښـــــمنانو ابـــــی خپلـــــې
ربـــــوده کړمـــــه لـــــه صـــــواته تـــــر دې ځایـــــه
پـــــلار زمـــــا یـــــې کـــــړ شـــــهید دې مفســـــدانو
دوي ســـــتي شـــــه پـــــه اتـــــش کـــــې سر تـــــر پایـــــه[٦٧٤]

په پښتنو کې ضد هم ډېر دی کله داسې هم وایي له فلانې سره جنت ته هم نه ځم اوکه ته قبله شې تاته نه ګورم وغېره. [٦٧٥]دوست محمد خان دوستی یو څو خرابیانې داسې په ګوته کوي:

د ډمـــــانو بـــــه عـــــزت کـــــوي کثـــــیر
عالمـــــانو نـــــه بـــــه تختـــــي بـــــې تـــــاخیر
لواطـــــت بـــــه شي هـــــم ډېـــــر د هلکـــــانو
مینـــــې نـــــه بـــــه کـــــړي هـــــېڅ څـــــوک لـــــه خپـــــل زنـــــانو
بـــــې بـــــاکي بـــــه هـــــم کـــــړي ښـــــځي رابـــــر څېـــــره
پـــــه هـــــر ځـــــای کـــــې بـــــه دوی ګرځـــــي د حـــــد تېـــــره[٦٧٦]

او په بل ځای کې داسې وایي:

پـــــه دې دهـــــر کـــــې ای وروره بـــــې عـــــدد
خلـــــق اولیـــــده پـــــه ســـــترګو دوســـــت محمـــــد
یـــــو مـــــرده لـــــه جـــــوړوي بـــــه ګورســـــتان
هـــــم بـــــه کـــــړي خنـــــدا هـــــوس پـــــه هغـــــه آن

بیــــا پــــه بلــــه ورځ مــــړی تــــرې بــــل کــــس
زمــــا وروره چــــې وي خــــاص د هغــــه مجلــــس
نــــور هغــــه لــــه قــــبر کنــــې وي خوشــــحاله
دا پــــروا یــــې زړه کــــې نــــه وي زمــــا لالــــه
چــــې بــــه درنــــګ ســــاعت لــــه مــــونږ ورپســــې درومــــو
دا پیالــــه بــــه د کشــــش مــــونږه هــــم شــــومو[677]

نشه د انساني ټولنې لپاره یو نقصاني څیز دی، خو په پښتنو کې هم ځینې خلک ځینې نشه ییز څیزونه استعمالوي. په دې نشه ییزو څیزونو کې بنګ او چیلم ډېر مشهور دي، چې ذکر یې په ادب کې مېلاویږي، لکه میاداد چیلم داسې یادوي:

زه چــــې لــــه تــــاوده دا تــــاوده آهونــــه نغــــرم
دننــــه زړه مــــې د چــــیلم پــــه دود قــــړا کــــا[678]

دوست محمد خان دوستی د چیلم په باره کې داسې وایي:

کــــه څــــوک لــــوګی د چــــیلم څښــــې پــــه ښــــه هــــوس
همېشــــه یــــې وي عــــادت دا رنــــګ نجــــس
لکــــه وینــــې چــــې څښــــې وروره د خنزیــــر
هــــم یــــې غوښــــې ورسره خــــوري بــــې تــــاخیر[679]

احمد دین طالب د بنګو د نشې ذکر داسې کوي:

احمــــد دیــــن نشــــې د عشــــق هــــواګیر کــــړه
بــــدګمان پــــرې د نشــــې د بنــــګ اونــــه کــــړې[680]

په پښتو ادبیاتو کې د مختلفو نشه یې توکو ذکر راغلی دی، اګر چې دومره پته ترې لګي چې دا څیزونه د سوات په ټولنه کې موجود وو، خو ډېر کله د نشه یې څیزونو نومونه د علاماتو په توګه هم استعمال شوي دي، لکه په شاعرۍ کې د شرابو ذکر او نور.

## سزاګانې

په هغه زمانه کې د مختلفو ټولنیزو جرمونو په وجه به مختلف قسمه سزاګانې ورکول کېدې، چې ځینو ته پکې په ادب کې اشارې شوي دي، لکه مخ تورول . میاداد وایي:

زه چــــې يـــم خـــوښ زه يـــم خوشـــحاله لــــه خپـــل يـــاره
چــــــې زمـــــا د بـــــدخواهانو مخونـــــه تــــور كـــــړه[٦٨١]

عبدالعظيم وايي:

مـــخ مـــې دی تـــور هـــر دو طـــرف د معصـــيت پـــه تبـــۍ
پـــه خپـــل كـــرم سره يـــې ســـپين مهـــين صـــفا كـــړې ربـــه[٦٨٢]

ربــــه ســـــتا پــــه در ولاړ يـــــم حــــيران تـــــور مـــــخ
د گنـــــا پـــــه اور اولـــــوی بريــــان تـــــور مــــــخ[٦٨٣]

لكـــه څـــوک چـــې پـــه خـــره ســـور وي مـــخ يـــې تـــور وي
د وړو د لويــــــــو خلقـــــــو پســــــــې شــــــــور وي[٦٨٤]

احمد دين طالب وايي:

مــــا وې تــــه بــــه مـــخ زمـــا پـــه جهـــان روڼ كــــړې
مختــــــورن دې كــــــــړم د غــــــم پــــــه تهمتونـــــــو[٦٨٥]

احمــــد ديــــن يــــې يــــار اشــــنا تــــه مختــــورن كــــړه
دا بــــې شرمــــه بــــې حيــــا فرزنـــــد د چـــــا دی[٦٨٦]

مخ تورول د يو خاص جرم سزا وه، يعنې كله چې به څوک په زنا كې وليدل شول، نو د هغوی لپاره به د مخ د تورولو سزا وه.

د خپلې غلطۍ د معافۍ لپاره به مجرم پړی پر غاړه كړ او معافۍ غوښتلو ته به تللو. حافظ الپورۍ په دې شعر كې دې خبرې ته اشاره كړې ده:

هـــم شـــفاعت بـــه يـــې نبـــي كـــا پـــه لـــويۍ پـــه تعظـــيم
پـــړی پـــه غـــاړه چـــې هنـــوز يـــې واســـتان تـــه راغـــی[٦٨٧]

او د پړي په غاړه كولو سره د "وانښه په خوله كولو" خبره هم كېږي. له دې نه مطلب ډېره زياته عاجزي ښكاره كول دي، لكه په دې شعر كې چې ورته اشاره شوې ده:

مختــــورن لاس پــــه نامــــه وانښــــه پــــه خولــــه يــــم
درلـــــــه درغلـــــــم جانانـــــــه كـــــــه قبليـــــــږم[٦٨٨]

دې ته ننواتې هم وايي. کله چې څوک يو جرم وکړي او بيا د خپل جرم اعتراف کوي او معافي غواړي، نو هغه قران په لاس يا د خپل کور له ښځو سره ننواتې ورځي او بيا د ننواتې اصول هم دا دي چې د دغه مجرم ننواتې به قبلوي.

## علاج او دارو درمل

په سوات کې د پښتو په دور کې به د يو بيمار علاج په ځانښتونو تعويذونو، دم درود يا زيارت او پير ته په بوتللو کېده. له دې علاوه به په ځېلو بوټو سره هم علاج کېده. دې ټولو خبرو ته په ادب کې اشارې شوي دي. خوشحال خټک په سوات نامه کې داسې وايي:

نه يې خط وي نه يې لوست همه ټگي کا
تعويذونه به کوي دروغ داري کا
په ناروغ يې خوشي لا زياته تر روغ شي
ځانښت تعويذ دعا هېکل کې په دروغ شي
لا رنځور غريب صحت نه وي مونډلی
چې اخون وي اخستو ته ورنيولی
که په ورکړه کې به درنګ او څه تعطيل وي
په غوغا په شور و شريې قال و قيل وي
چې زما په خلقو قدر قيمت نشته
د رنځور مې بې تعويذه صحت نشته
چې رنځور له رنځه روغ شي راته شا کا
نور به بيا زما تعويذ د چا په ملاکا[689]

او د جعلي طبيبانو ذکر داسې کوي:

که په مکر څوک خپل ځان پکې طبيب کا
څوک به نه وي چې ښکاره د ده تکذيب کا[690]

د ځينو دارو درملو ذکر په ادب کې مونډل کېږي، لکه کورکمان، سونډ، مرچ جرې او نور.

هغه دا دردمند مې واړه په گوگل کې زړه دی
او دا کورکمان دې سيالي نه کا د سونډ مرچه[691]

چـــې د ښـــامار قاتلـــه ذهـــر هـــېڅ اثـــر پـــرې نـــه کـــا
او دې میـــاداد جـــړی خـــوړلې د ایلـــم د غـــره ده[٦٩٢]

غــه هــر چــې وښ کــړي ښــا مــاران هغــه پــه ځــه رغيــږي
زه د جوګیـــانو جـــړی خورمـــه چـــې ښـــامار لـــره ځـــم[٦٩٣]

د جړی ذکر عبدالحلیم په مخزن کې هم کړی دی:

لکـــــه نیـــــل مـــــار چـــــې ځـــــوک وخـــــوري
نـــــه پـــــرې دم کـــــار کانـــــه جـــــړی[٦٩٤]

هـــیڅ جـــړی افســـون او دم پـــرې اثرنـــه کـــا چـــې زه روغ شـــم
مګـــر وویـــنم هغـــه یـــار چـــې مـــې زړګـــی پســـې غـــوځیږي[٦٩٥]

محمد اکبر د جړی ذکر داسې کوي:

د زلفـــو مـــار کـــه هـــزار خشـــه پـــه مـــا اوکـــه ځـــه شـــو
کـــه لـــب جـــړی پـــه خولـــه کـــې راکـــړې ســـپین دنـــدان ورسره[٦٩٦]

مار لړم وغیره چې ځوک وچیچي نو بیا یې هوده کوي. احمد دین طالب د هوده دار ذکر داسې کوي:

کـــه هـــر ځـــو مـــې ټـــول جهـــان ورپســـې چـــاڼ کـــړه
بیـــا مـــې نـــه مونـــد هـــوده دار د تـــورو زلفـــو[٦٩٧]

او د پاړو ذکر داسې کوي:

چـــې پـــه څنـــګ کـــې دې پـــاړو د وصـــال نشـــته
د بېلتـــون ډنـــداري ځـــه لـــه پـــاره وې[٦٩٨]

کلـــه چـــې د بـــدن پـــه یـــوه حصـــه ولګـــي او دردمنـــده شي، نـــو بیـــا دغـــه دردمنـــد ځـــای تـــه پـــه کـــاڼي ټکـــور ورکـــوي. احمـــد دیـــن طالـــب یې داسې یادونه کوي:

تـــه چـــې کـــاڼی اور کـــې بردې د ځـــان ټکورلـــه
پـــه بـــدل د هغـــه کـــاڼي ازار نـــه شـــې[٦٩٩]

دوست محمد خان دوستی وایي، چې د ازار یا نظر د اثر علاج صرف زیارت ته په

وړلو کې دی:

او د شـــــاه چـــــې پـــرې مــــرض شـــــولو بـــــې شــــانه
دا ازار بــــــــه وي يـــــــا نظــــــــر د يــــــــو انســـــــانه
چـــــې پــــه ازار يــــې ځـــوک مــــريض يــــا پــــه نظـــــر
نــــــور پـــــــه هغــــــه د چــــــا دارونــــــه کــــــړي اثــــــر
بــــې لــــه دې نــــه راتــــه نــــور څــــه نــــه ښــــکاريږي
چـــــــې مــــــــرض د بادشـــــــــاه دا رنـــــــګ زيـــــــاتيږي
اوس کـــــــه خوښـــــــه وي کـــــــوو دا هســـــــې کـــــــار
چـــــې زيــــــارت لــــــه يــــــې چرتـــــه اوړلــــــو پــــــه تلـــــوار
کرامــــــــــت د اوليـــــــــــاو دي ښـــــــــــه حـــــــــــق
شــــک تـــــه مــــه کــــوه پــــه دا کـــــې هـــــېڅ مطلـــق[700]

دواياني به يې له پنسارياتو نه اخستې، لکه حسين چې وايي:

چـــــــې اســـــــپه د خـــــــوږ و زړونــــــو پــــــرې رغيــــــږي
مونـــــــــدي نــــــــه شي دا دارو پــــــــه پنســــــــاري[701]

په پښتو ادب کې د مختلفو بيمارو او د هغوی د علاج ذکر موندل کېږي. له دې مثالونو نه پته ولګېدله چې په هغه زمانه کې به په سوات کې د مختلفو بيمارو علاج يا په دارو درملو کېده او يا به په دم درود او د بابا ګانو د مزارونو په زيارت کولو.

## حکومت

د سوات د ادبې روايت په وړومبي دور کې د تاريخ او ادب له پاڼو نه پته لګي، چې دلته يو باقاعده او منظم حکومت نه دی جوړ شوی، لکه دوست محمد خان دوستی چې وايي:

او بـــــــل دا کـــــــه څـــــــوک زمـــــــا اوکـــــــړي تپـــــــوس
ولــــــې د شـــــــاه صـــــــفت دې رانـــــــه وړه لســـــــان کـــــــې
وجــــــــه څــــــــه وه کــــــــل احــــــــوال راتــــــــه ووايــــــــه
زه د دې خـــــــــبرې يمـــــــــه پـــــــــه ارمـــــــــان کـــــــــې

زه ځـــــواب ورلـــــــه ورکومـــــــه پـــــــه دا رنـــــــګ
ای ســــائله چــــې زمـــــا نـــــه یـــــې پرســـــان کـــــې
چـــــــې دا کتـــــاب کـــــړو مــــــا شروع واوره ســـــائله
نـــــه و مســــــلم عـــــادل بادشـــــاه هغـــــه دوران کــــــې
مګــــــــر دا چــــــــې بادشـــــــاهې د نصـــــــارا وه
مـــــا د کفـــــر صــــــفت نـــــه راوړ دهـــــان کـــــې
ځکـــه کتـــاب کـــې مـــې د شـــاه صـــفت ونـــه کـــړه
چـــې د کـــافر صـــفت عـــذاب دی هغـــه جهـــان کـــې[۷۰۲]

له دې نه هم پته لګي چې په دغه وخت کې دلته څه حکومت نه و. البته له سوات نه بهر د نصاراو (انګرېزانو) بادشاهي وه. یوسفزو د مغلو حکومت نه منلو ځکه خوشحال وایي:

زه نـــــو کــــــر ووم یوســـــــفز یـــــــه روګــــــردان وو
ځکـــــــه ورغلـــــــه ترســــــواته زمـــــــا ګـــــــران وو[۷۰۳]

او په بل ځای کې وایي:

هـــــر هـــــر ځـــــای د ســـــوات د ملـــــک ملوکانـــــه دی
بـــــې سرداره بـــــې حاکمـــــه کـــــوه خانـــــه دی[۷۰۴]

چــې دلتــه څــه حکومــت نــه و، نــو پــه دې خلکــو څــه ټــېکس وغــیره هــم نــه وو، ځکه خوشحال وایي:

نـــه پـــرې حکـــم نـــه و چـــا څـــه ورکوینـــه
واړه ځـــان لـــره ګټـــي پـــه ځـــان یـــې خورینـــه[۷۰۵]

له دې ټولو خبرو نه پته لګي چې د دیر، سوات او بونېر خلکو دهلي یا کابل ته ټیکس نه دی ورکړی او دوی هېڅ کله هم د بهرنۍ عملدارۍ ماتحت نه دي پاتې شوي.[۷۰۶] په سوات کې د سید اکبر شاه د حکومت د ناکامۍ په وجوهاتو کې یوه وجه دا هم وه چې د سوات خلک د حکومت د پابندیانو نه نا اشنا وو ځکه چې دلته چرې حکومت نه وه پاتې شوی، ځکه دوی د خپلې مرضۍ ازادانه ژوند تېرول غوښتل او د سیداکبر شاه د ځوی مبارک شاه د حکومت د جوړولو هڅه ناکامه شوه.[۷۰۷]

پیر بابا چې کله د بایزید انصاري له مقبولیت نه خبر شه، نو ویې ویل په پښتنو

مضبوطه بلا نازله شوه خیال مې نه شي چې ورکه شي، ځکه چې په دې حدودو کې د اسلام بادشاه نشته. د دین وضاحت علماء کوي او د دین طاقت په امیرانو وي. [۷۰۸] محمد اکبر په یو شعر کې دا وایي چې دلته حکومت او عدالت نشته:

د ظالمـــــانو پـــــه مـــــا بانـــــدې انبـــــوه پـــــه څـــــه ده
د زمـــــانې ملـــــک یـــــې مـــــل شـــــه عـــــدالت نـــــه لـــــري[۷۰۹]

دلته حکومت او باقاعده قوانین نه وو او فیصلې به د رواج مطابق کېدلې.رواج د یوې خبرې عام کېدلو او شهرت موندلو ته وایي، یعنې چې یوه خبره دومره عامه شي او دومره شهرت وموميي چې هر سړی یې بیا بې دلیله مني. د عظیم صواتي له دې شعرونو نه د رواج په مفهوم سړی پوهېدی شي:

پـــــــــه رواج د اولیـــــــــــاو زور کمیـــــــــــــــړي
د اخفـــــــا مرتبـــــــه ښـــــــه ده لـــــــه شـــــــهرته
پـــــــه رواج او پـــــــه شـــــــهرت چـــــــې ضرر مـــــــومي
بزرگـــــــان دي اکـــــــثر پـــــــټ لـــــــه دې جهتـــــــه[۷۱۰]

او په بل ځای کې وایي:

پـــــــــه رواج پســـــــــــې روان واړه عـــــــــــالم دی
فـــــــرق کـــــــولی شي هـــــــېڅ دتـــــــور و ســـــــپین[۷۱۱]

اخون قاسم پاپین خېل هغه رسم ورواج ته ډېر بدګوري کوم چې د اسلامي شریعت مخالف وي.[۷۱۲]

په سوات کې وخت پر وخت د حکومت جوړولو هڅې شوي، خو د دې هر څه باوجود دلته په دغه دور کې یو منظم ریاست او حکومت نه دی جوړ شوی. په وړومبي ځل په سوات کې منظم او باقاعده ریاست په ۱۹۱۵م کال کې جوړ شوی دی د کوم تفصیل چې په ورپسې باب کې راروان دی او څه ذکر یې په درېیم باب کې شوی دی.

**معیشت**

د یو قوم معیشت د هغوی پر تهذیب او ثقافت اثر غورزوي او دغه رنګ د یو قوم تهذیب او ثقافت د هغوی پر معیشت هم اثر پرېباسي. د سوات له ادب، تهذیب او ثقافت نه د هغه وخت د سوات د خلکو د معیشت پته په اسانه لګي. د سوات د خلکو د معیشت په باره کې خوشحال وایي:

آســــــوده پــــــه مـــــــال و ملــــــک پــــــه زردینـــــــار دي
د دنیـــــا روزگــــــار یـــــې نــــــه زده بــــــد روزگــــــار دي[۷۱۳]

او محمد اکبر وایي:

چــــــې میشـــــــته پــــــه کوکـــــــارۍ وي قـــــرار نــــــه وي
همېشــــــــــه لــــــــه اتېوســـــــــتو وزگـــــــار نــــــــه وي
پـــــــه موســـــــــــم د شـــــــــــالیزارو سرگشـــــــــته وي
هـــــــر روزگــــــار یــــــې پــــــه طـــــــرح د روزگـــــــار نـــــه وي[۷۱٤]

لـه دې لـړو حوالـو نـه هـم مـونږ پـه اسانه دا معلومـولی شـو، چـې د سـوات خلـک ډېـر خـواري کښ وو او زیـات دارومـدار یـې پـه کرکیلـه و. دوی تجـارت هـم کولـو او پـه هغه وخت کې دوی ښه خوشحاله ژوند تېرولو.

## قلنگ

د کروندې لپاره د چا زمکه داسې استعمالول چې د زمکې مالک ته د زمکې په بدل کې نغدې پیسې ورکول کېږي، دې ته قلنگ یا اجاره وایي. قلنگ او اجاره په عمومي توگه په یوه معنی کې راځي او که فرق ته یې وگورو نو فرق یې دا دی چې قلنگ په اصل کې د زمکې مالک ته نه خو حکمران ته ورکولی شي، خو دا اصطلاح د کور وغېره د کرایه لپاره هم استعمال شوې ده. د قلنگ ذکر مختلفو شاعرانو داسې کړی دی:

ولاړېـــــــړي د عشـــــــق ســــــود مـــــــدام لـــــــه یـــــــار نـــــــه
ورکومــــــــــه سر او مـــــــــال پــــــــه قلنـــــــــگ ســـــــــتا[۷۱۵]

تـــــــن خرابــــــــه لــــــــه جملـــــــه افتــــــــه خـــــــلاص وي
پــــــه ابــــــــاده زمکــــــــه تــــــــل د چــــــــا قلنــــــــگ وي[۷۱٦]

چـــــې پـــــردۍ دوتـــــرې خـــــورې قلنـــــگ یـــــې ورکـــــړه
گنــــــــــي مــــــــه شـــــــــړه څـــــــاوري د بـــــــــل د وړ[۷۱۷]

راشـــــه تـــــه سر لـــــه بادشـــــاه مـــــه اخلـــــه قلنـــــگ قبـــــول کـــــړه
دا چـــــې مـــــخ روښـــــی تـــــر بادشـــــاه ورشـــــې ای قلنـــــدره[۷۱۸]

د کـــــوټې قلنـــــګ یـــــې بیـــــل د مزکـــــې بیـــــل وي
بـــې لـــه وېشـــه یـــې بـــل رنـــګ سریکـــار نـــه وي[719]

بادشـــــاهان کلـــــه قلنـــــګ د ملنـــــګ غـــــواړي
یـــار زمـــا نـــه سرومـــال غـــواړي خـــراج[720]

د استعمال لپاره له چا نه یو څیز راخستل او د هغې قیمت له چا سره اېښودل او بیا له استعمال نه وروسته دغه څیز واپس کول او هغه قیمت واپس اخستلو ته ګاڼه وايي. دا قیمت صحیح قیمت نه وي، بلکې له دغه څیز نه پیسې زیاتې هم کېدی شي او کمې هم. احمد دین طالب د ګاڼې ذکر داسې کوي:

پـــه هـــنر بـــه سرو مـــال درنـــه ګاڼـــه کـــړي
چـــې دې نـــه زده د لبـــاس جـــواري پرېـــږده[721]

د قلنګ او د ګاڼې د دې مکرر ذکر نه دا پته لګي چې په هغه زمانه کې به خلکو زمکې په قلنګ او په ګاڼه ورکولې.

## مزد

په ژرنده د دانو اوړه کولو معاوضه چې د ژرندې مالک اخلي هغې ته مزد یا مز وايي. عام طور د محنت معاوضې ته هم مزد وايي. میاداد یې داسې ذکر کوي:

او صـــوفیان چـــې شراب وڅښـــي د عمـــل څـــیرې کـــا څـــیرې
عابـــد چـــې بنـــدګي کانـــدي د جنـــت د مـــزد دپـــاره[722]

چـــې پـــه خـــدای مئـــین دی هغـــه واصـــل دی
د عشـــق شراب دې ورکـــړل ویړیـــا بـــې مـــزده[723]

تـــه بنـــدګي لکـــه ګـــدای پـــه شرط د مـــزد مـــه کـــوه
کـــرم تـــه یـــې ګـــوره پـــه عمـــل اعتبـــار مـــه کـــوه[724]

د دې دور د ادب لـه مطـالعې نـه د دې دور ډېـر تهـذیبي او ثقـافتي اړخونـه پـه ډاګه شول، خـو ډېرې خبرې داسـې هـم شـته چـې د سـوات لـه کلتـور سره تعلـق لـري، خـو بیا هم په ادب کې واضح نه دي، ځکه چې په دې دور کې مطبوع ادب ډېر کم دی:

## د دې دور د ځينو ليکوالانو پېژندګلو

### دوست محمد خان دوستی

دوست محمد خان د بر سوات د مټې علاقې د خرېړۍ نومې کلي اوسېدونکی و.(رحيم، رحيم شاه، د سوات ورک شاعران (شپږم ټوک)، مقاله مشموله مياشتينۍ پښتو، جلد: ۱۲، شماره: ۱۱، (دسمبر ۱۹۸۰)، مخ: ۴۸). د دوستي په باره کې بدرالحکيم حکيمزی ليکي چې د دوست محمد خان دوستي د ژوند په حقله يوازې "د بر سوات تاريخ" يوه لنډه خبرتيا راکوي...له دې نه پرته يې کوم بل دستاويز کې ذکر نشته. کوم لږ ډېر معلومات چې تر لاسه کېږي هغه ټول په ټوله د دوستي په خپلوانو پورې اړه لري."(حکيمزی، بدرالحکيم، گنجةالگوهري، مصنّف دوست محمد خان دوستی، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزی، سوات، مشال پختو ټولنه، ۲۰۱۴، مخ: ۱۱) له دې نه مخکې رحيم شاه رحيم په يوه مقاله کې د دوستي ذکر کړی و، خو داسې معلومېږي چې د بدرالحکيم حکيمزي له نظره دغه مقاله نه ده تېره شوې. د دوست محمد خان د پلار نوم امير محمد خان و. د نيکه نوم يې حيات خان او د مشر نيکه نوم يې قمر الدين و دی د سوات شاميزو په اغل نومې کلي کې په ۱۸۷۵کال کې زېږېدلی و. د پينځه کم شپيته کالو په عمر کې په کال ۱۹۳۰ کې وفات شوی دی. دوست محمد خان د پښتو شعرونو يو ضخيم کتاب پرېښی دی. د ده د شعري مجموعې نوم گنجت الگوهري دی. په دې مجموعه کې څلور زره او درې نيم سوه شعرونه دي،دا کتاب ده په ۱۳ربيع الثاني ۱۳۳۲ هجري کې سر ته رسولی دی. (رحيم، رحيم شاه، د سوات ورک شاعران (شپږم ټوک)، مقاله مشموله مياشتينۍ پښتو، جلد: ۱۲، شماره: ۱۱، (دسمبر ۱۹۸۰)، مخ:۴۸، ۴۹) دا کتاب په ۲۰۱۴ کال کې د بدرالحکيم حکيمزي په ترتيب او تدوين سره چاپ شوی دی)

### حسين

کوم ديوان چې همېش خليل په ۱۹۵۸م کال کې چاپ کړی دی، دغه ديوان هم د سوات د دې حسين دی. دا حسين په خپل ديوان کې پخپله وايي:

په معنی کې ستا خاکروب حلقه بگوش یم
گني ملک مې دی پکلی استوگنه سوات

حسين د مغل بادشاه اورنګزېب هم عصر و. حسين د رحمان بابا د مکتب شاعر دی او لکه د حميد بابا نازک خيال او موشګاف دی. په ديوان کې يې د پښتون کلتور هنداره وړاندې کړې ده. د مېلمه دوستۍ، جرګې، دستار او تره تربور وغېره ذکر يې په دې مقاله کې سره له مثالونو بيان شوی دی. حسين يو عام کليوال قبايلي سړی و او د عامو خلکو د روزمرې او محاورې ژبه يې استعمال کړې ده. په خپل کلام کې يې له کرکيلې سره تړلي الفاظ لکه ستري، قلبه، هل پېره او نور استعمال کړي دي.کومو څېړنکارانو چې د حسين تعلق د هزارې د علاقې پکلۍ او ملکپور سره ښودلی دی نو دغه رايه هم د غور قابله ده او نورې څېړنې ته اړتيا لري.

شجره نسب

د پير بابا د ځوی ميا مصطفیٰ دوه بيبيانې وې. له مشرې بي بي نه يې يو ځوی ميا عبدالله و، چې په ميا عبدل مشهور و. د دوېمې بي بي نه يې دوه ځامن وو، د يو نوم ميا قاسم او د دويم نوم ميا حسن وه. د ميا حسن د يو ځوی نوم حسين وه. دی د خپل سيادت په وجه خپل نوم سيد حسين ليکي.[۷۲۵] د ده شجره نسب مخکې داسې بيانيږي، د پير بابا دوه ځامن وو، سيد عبدالله او سيد مصطفی محمد (۱۵۶۴—۱۶۱۵) د سيد مصطفی محمد قبر په کونړ کې دی.[۷۲۶] سيد عبدالله اول وفات شوی وه.[۷۲۷] د سيد مصطفی محمد دوه بيبيانې وې، له مشرې بي بي نه يې يو ځوی ميا عبدالله وه چې په ميا عبدل مشهور دی او قبر يې په شلبانډۍ بونېر کې دی. له کشرې بي بي نه يې دوه ځامن وو، د يو نوم ميا قاسم او د بل نوم ميا حسن وه. د ميا قاسم قبر په پير کلي کې دی او د ميا حسن قبر په کوکړۍ کې دی. د ميا حسن څلور ځامن وو اول سيد يوسف وه، چې په ميا شيخ بابا مشهور دی او قبر يې په جهان اباد منګلور کې دی. دويم سيد نادان، د ده اولاد نه وه او قبر يې په کوکړۍ کې دی. دريم سيد ميا جي، د ده هم اولاد نه وه او قبر يې په غاليګي کې دی. څلورم سيد حسين وه، د ده قبر په امازو شهباز ګړه کې دی. د سيد حسين شپږ ځامن وو، نومونه يې دادي: سيد ابدال، سيد اياز، سيد بياض، سيد غازي شاه، سيد کريم شاه، سيد واصل الدين.[۷۲۸] د سيد حسين مشر ځوی سيد ابدال د تيرات په غزا کې په ۱۰۷۲ هـ کې عېن په زلميتوب کې شهيد شوی و. د ده قبر د خپل نيکه ميا حسن بابا د مزار په چاردېوارۍ کې دننه په کوکړۍ کلي کې دی. سيد حسېن د سيد ابدال په فراق کې ډېره درد ناکه مرثيه ليکلې ده، لکه چې وايي:

های افسوس ارمان ارمان دی زما دله
راته ووایه چې رابه شي بیا کله
هغه وار د سېد ابدال د پګړۍ تېر شه
چې جرګه به د سېدانو پرې کېدله[۷۲۹]

د سید ابدال د یو ځوی نوم میاګل لال وه د هغه قبر په دمغار[۷۳۰]کې دی. د میا ګل لال د یو ځوی نوم سید جلال وه چې په ګالوچ کې اوسېده او قبر یې په کالا کلي[۷۳۱]کې دی.[۷۳۲] د حسین مور په ماشوموالي کې مړه شوه او د ده پالنه د ده ترور وکړه. د خپل یتیموالي ذکر یې په دې شعرونو کې کړی دی:

بې له مینې چې حسین یې خوار خسته کړه
ګڼه میندې ښه ساتي یتیم زوزاد[۷۳۳]
په لباس مینې[۷۳٤] هلک مور مړی خپل کړم
زه کمبخت د شنې مزرۍ په تې لګیا شوم[۷۳۵]
او په یو بل شعر کې دخپل یتیم والي ذکر داسې کوي:
د یتیم په دود لوئېږي زیږ زبېخلی
چې رودلی یې تی د مینې د مور نه وي[۷۳٦]

او د ده پالنه د ده ترور وکړه، لکه په دې شعر کې یې چې یاده کړې ده:

چې ئې په اوچو تو ساتلی یم هلک مور مړی
ځم چې تعظیم اوکړم د مینې مهربانې ترور ته[۷۳۷]

ادبي تخلیقات

د حسین له شجره نسب وروسته به اوس مونږه د حسین د ادبي تخلیقاتو طرف ته راځو. په دې باره کې عبدالحی حبیبي د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې لیکي، چې حسین د" خلاصة الاسلام" په نوم یو کتاب په پښتو کې ترجمه کړی دی چې طرز یې د اخون دروېزه د مخزن اسلام په شان دی او بیا دا هم وایي چې سید حسېن د "جنګنامه حسین" لیکونکی دی.[۷۳۸] عبدالحلیم اثر افغاني لیکي چې د ده کتاب د اتیاو کالو د یو مشر سید عبدالخالق سره دی او هغه وایي چې دا کتاب زمونږ په خاندان کې زما د والدې صاحبې د تره په قلمي ذخیره کښې وه. د دغه تره نوم ېې سید حبیب وه او د ۱۲۰۰ هجري په خواوشا کې ژوندی وه. د دې مطلب دا شه چې سید حبیب ته د خپل مشر نیکه میا قاسم

د وراره سید حسین قلمي تالیف په میراث کې پاتې دی.[۷۳۹] د حسین دیوان د ښاغلي همېش خلیل په سریزه او اهتمام په کال ۱۹۵۸ کې په پېښور کې چاپ شوی دی. دا قلمي نسخه د پېښور د ادبي ټولنې د کتب خانې نه همېش خلیل اخستی وه.[۷۴۰] حسین که هر څومره کتابونه لیکلي وي خو موجود یې في الحال دا یو دیوان دی. د دې دیوان چاپې پاڼې پینځه سوو ته رسېږي او په اخر کې یې یو څو ټپې هم راغلي دي.[۷۴۱] ښاغلی اثر افغاني د جنګنامه حسین لیکونکی سید حسین او دغه دیوان واله حسېن یو ګڼې خو صدیق الله رشتین وایي چې دا قیاس سم نه ښکاري او وایي چې اثر صاحب سید حسېن د میا حسن ځوی او د میا مصطفی نمسی بولي چې هغه د سیدعلي ترمذي پیر بابا ځوی وه. د زمانې په لحاظ په دواړو کې فرق ډېر دی. حسېن په ۱۱۱۸ کې سپین ګیری وه چې د سید حسین د پلار میا حسن هم زمانه ښکارېږي. بله خبره دا ده چې سید حسېن د جنګنامې په اشعارو کې خپل تخلص "سید" راوړی دی او کله سید حسین هم لیکي او حال دا دی چې دې حسېن په خپل ټول دیوان کې د سید تخلص په یو ځای کې نه دی راوړی.[۷۴۲] صدیق الله رشتین په خپل یو بل کتاب "ادبي او تاریخي سمونې" کې لیکي چې دا دیوان د حسین دی او د سید حسین نه دی.[۷۴۳] رحیم شاه رحیم لیکي چې د هغه دوه قلمي نسخې اوس هم په ګهړي امازو (مردان) کښې یو د هغه د نمسو او بل د کفور خېلو خانانو سره پرتې دي. [۷۴۴]داسې معلومېږي چې د حسین دیوان هغه په خپل ژوند مرتّب کړی و. دا لاندیني شعرونه د دې خبرې پخلی کوي:

د زړه موج یې لکه سیند و سر ته اوخوت
همېشه حسېن لري په لاس دیوان لوند[۷۴۵]

او یا لکه دا شعر:

سوز په سوز راباندې پورې سوزان شعر کۀ
سرې لمبې مې نن بلېږي په دیوان کې[۷۴۶]

د سید حسین کوم دیوان چې همېش خلیل صاحب چاپ کړی دی،د دیوان دا قلمي نسخه د مردان نه تر لاسه شوې ده.[۷۴۷] دا دیوان په وړومبي ځل د همېش خلیل په ترتیب او تدوین سره په ۱۹۵۸ کې چاپ شوی دی. هغه د دغه دیوان په دیباچه کې لیکي چې پادري هیوز چې په "کلید افغاني" کې د کوم حسین ذکر کړی دی او دوه غزلونه یې ورله د نمونې ورکړي دي. دا دیوان د کلید افغاني د دغه حسین دیوان نه دی.[۷۴۸]صدیق

الله رښتين  هم داسې ليکي چې پادري هيوز په کليد افغاني کې کوم دوه غزلونه راوړي دي دغه غزلونه د حسين په ديوان کې نشته نو معلومېږي چې حسين او سيد حسين دواړه جدا جدا شاعران وو.[٧٤٩] رشتين وايي چې پادري هيوز چې د کوم حسين شاعر ذکر کړی دی دغه حسين د صوابۍ د علاقې شاه منصور اوسېدونکی وه. عبدالحی حبيبي ليکي چې د حسين د ژوند حالات چا ته پوره نه دي معلوم خو پادري هيوز يې په "کليد افغاني، کې ذکر کړی دی،[٧٥٠] خو اوس پته ولګېده چې د کليد افغاني حسين بل دی.

پيدايش او د ژوند زمانه

اوس به وړاندې مونږه د حسين د پېدايش او د هغه د زمانې په باره کې ګورو چې ده له کومې زمانې سره تعلق لرلو. سيد حسين د بونېر په پاچا کلي کې د ۱۰۵۰ هجري خواوشا پېدا شه  او تر ډېرې مودې پورې د بونېر په ملک پور نومې کلي کې اوسېده.[٧٥١] د مغل بادشاه اورنګزېب د مرګ په وخت يعنې ۱۱۱۸ هجري کې حسين د پنځوسو کالو و، نو په دغه حساب که مونږه وګورو نو په دغه حساب ۱۰٦۸ هجري د حسېن د زېږون نېټه جوړېږي.

د ملک پور ذکر په يو شعر کې داسې کوي:

چې پېدا شوې پکې ستا ملالې سترګې
ځکه پاتې له حسېنه ملک پور شۀ[٧٥٢]

د حسېن د تعليم او ززدکړو په باره کې مختلف روايات موجود دي. داسې ويلې شي چې حسين خپلې ورومبۍ زدکړې د پير بابا په مدرسه عاليه کې وکړې  او د نور علم د پاره د هندوستان دهلي او دکن علاقو ته لاړه.[٧٥٣] په خپلو اشعارو کې د هند او د دکن ذکر داسې کوي:

په رضا مې زړه په زړه له ياره واخست
که ميشته زه په دکن او يا په هند يم

يا لکه دا شعر:

لا به څرګند د ښکلي مخ په مخه راشي کله
د تورو زلفو په ډونډ[٧٥٤] تلم په هندوستان اوختم[٧٥٥]

او يا لکه دا شعر:

واړه عشق دي چې سرې جهان ګشته کا

په اسانه به څوک پرېږدي خپل وطن[٧٥٦]

بل ځای د وطن د پرېښودلو ذکر داسې کوي:

بې وصلته دې ژوندون راباندې گران وه
ستا ملالو سترگو ورک کړم له وطنه[٧٥٧]

په دې شعرونو کې د وطن د پرېښودلو او د هندوستان له ذکر کولو نه دا پته لگي چې حسين دا وطن پرېښودلی و او په هندوستان کې يې وخت تېر کړی و. سيد حسين د اورنگ زېب مغلي بادشاه د زمانې شاعر دی، لکه چې وايي:

دغه تخت وه د دونهې چې ملنگ واغست
که مسند د هندوستان وه اورنگ واغست[٧٥٨]

او يا لکه دا شعر:

لکه چې زه ستا د کوڅې په خاورو فخر کوم
هومره لوئي د هندوستان په تخت اورنگ نه کاندي[٧٥٩]

او بل ځای داسې وايي:

دا په قېنج ډکه نوې پېغله مې له څنگه لاړه
که بادشاهي د هندوستان وه د اورنگه لاړه[٧٦٠]

او بل ځای داسې وايي:

چې پرون د هندوستان د تخت بادشاه وه
نن ئې لور زمانې اوټومبه په ملا کې[٧٦١]

اورنگزېب په ١١١٨ هجري کې وفات شوی دی. په دغه وخت کې حسين د پنځوسو کالو سپين گيری و، لکه چې وايي:

اوس په سپينه گيره څه رنگ ترې توبه کړم
يمه عشق سره اشنا په حيوانۍ کې[٧٦٢]

او يا لکه دا شعر:

کج کردار يم کج گفتاره پټې سترگې
سپينه گيره غاښ وتلي هوښيار نه شوم[٧٦٣]

په دې حساب د سيد حسين د زېږون نېټه١٠٦٨ هجري ټاکل کېږي.[٧٦٤]

دحسېن د اوسېدلو سيمه

له ټولو نه مهمه پوښتنه چې د دې مقالې په مرکزي پوښتنو کې کې یوه پوښتنه ده، هغه دا ده چې حسین د کوم ځای و او په کومو کومو ځایونو کې یې ژوند کړی و او د ژوند زیاته برخه یې په کوم ځای کې تېره کړې ده. په دې باره کې پوهاند صدیق الله رشتین لیکي چې حسین د اباسین نه پورې غاړې د کشمیر او تینول تر مینځ سیمه کې د پکلۍ (ملک پور) نومې کلي اوسېدونکی و، خوپه دي اړه یو بل قول دا دی کوم وخت چې د میا حسن مشر ورور میا قاسم د میا نور محمد په وینا سوات کوهستان ته د اسلام د تبلیغ لپاره د دوما کافرو سره په مدین شاګرام او پکهلۍ کې میشته وه، نو سید حسین هم په خپل تره پسې د بونېر نه پکهلۍ ته لاړ شۀ. پکهلۍ د سوات پخواني بادشاه سلطان پکهل په نوم د کوهستان په علاقه کې د مدین سره نزدې یو کلی دی.[٧٦٥] سید حسین ډېره زمانه په پکهلۍ (سوات) کې د خپل تره میا قاسم د تربیت او صحبت لاندې اوسېده.[٧٦٦] رحیم شاه رحیم وایي کوم دیوان چې همېش خلیل چاپ کړی دی دا هم د سوات د دې حسین دیوان دی او مخکې زیاتوي چې قاضي عبدالحلیم اثر او همېش خلیل صېب چې د دې پکهلۍ نه مراد د هزارې پکهلۍ اخستې ده نو د دې وجه دا ده چې هغوی ته د سوات د پکهلۍ پته نه وه.[٧٦٧] کله چې سید حسین د پکلۍ (مدین، سوات) نه کوکړۍ ته راغی نو دا شعر یې وویلو:

په معنی کې ستا خاکروب حلقه بګوش یم
ګني ملک مې دی پکلۍ استوګنه سوات

په دې اړه داسې ویل کېږي چې هغه وخت کې به یې پکلۍ ته سوات ځکه نه ویلو چې پکلۍ، مدین، شاګرام او تیرات د سوات په طبیعي جغرافیایي حدونو کې نه راتله، لکه څنګه چې راورټي ویلي چې د پیا نه په بره کوهستان په سوات کې نه راځي.[٧٦٨]راورټي وایي چې چوړړۍ [٧٦٩][مدین] او تیرات د شیخ ملي په وخت کې نه دي قبضه شوي، بلکې یو نیم سل کاله وروستو د اخون کریم داد په وخت کې د سوات کوهستان د کافرو نه اخستي شوي دي.[٧٧٠]

حسین چې کله زلمی شو، نو د ترور له لور سره یې مینه پیدا شوه او د دې مینې د زیاتېدو له وجې سوات ته لاړه، لکه چې وایي:

په معنی کې ستا خاکروب حلقه بګوش یم
ګني ملک مې دی پکلۍ استوګنه سوات[٧٧١]

خو رحيم شاه رحيم وايي چې دا ملک پور د پکلۍ (هزاره) ملک پور نه دی، بلکې د بونېر ملک پور دی او په دې شعر کې چې کومه پکلۍ یاده شوې ده دا نوم د هزارې د پکلۍ نه، بلکې د سوات پکلۍ ده. وايي چې څه وخت د ميا حسن مشر ورور ميا قاسم سوات کوهستان ته د اسلام د تبليغ لپاره راغی نو سيد حسين هم په خپل تره پسې له بونېر نه پکلۍ (سوات، مدين) ته لاړه. د سوات کوهستان د تيرات په غزا کې چې کله ميا کريم داد شهيد شو، نو له ميا نور محمد او ميا قاسم سره سيد حسين هم په ډېرو جنگونو کې برخه واخسته. دغه وجه ده چې دی د سيد حسين غازي په نوم هم يادېږي. ميا قاسم په سوات کوهستان کې نوو مسلمانانو ته د اسلامي تعليماتو درس ورکولو لپاره ډېره موده په سوات کوهستان کې اوسېده او څه وخت وروسته ميا قاسم پير کلي ته راغی او سيد حسين يې په پکلۍ (مدين) کې پاتې کړه او بيا څه وخت وروسته سيد حسين د مدين له (پکلۍ) نه سيدو شريف سره نزدې کوکړۍ نومې کلي ته لاړه. په کوکړۍ کې د سيد حسين پلار ميا حسن اوسېده، دی څه وخت وروسته د مرادان د امازو گړۍ د خلکو په دعوت هلته لاړه.

عبدالحليم اثر افغاني ليکي چې سيد حسين د رياست سوات له مرکزي مقام سيدو شريف سره متصل مغرب طرف ته کوکړۍ نومې کلي کې اوسېده او له دغه ځای نه په هغه زمانه کې د امازي قبيلې مشرانو په جرگه بوته او د مردان مشرق طرف ته په مشهور کلي گړهي دولت زي کې اباد شو، همدلته وفات شو او زيارت يې هم په دې کلي کې دی.

وفات

چې کله دی امازو گړۍ ته لاړه، نو د(۱۷۱۷م) ۱۱۳۰ هجري خواو شا هم هلته وفات شوی دی. قبر يې په امازو گړۍ کې د خوړ پر غاړه شهباز گړې ته نزدې په لږه فاصله پروت دی او په سيد حسين بابا يادېږي.[۷۷۲] سيد عبدالجبار شاه وايي چې د سيد حسين قبر سيدو شريف ته نزدې دی.[۷۷۳]

اولاد

د حسين د شپږو ځامنو نومونه دا دي: سيد ابدال، سيد اياز، سيد بياض، سيد غازي شاه، سيد کريم شاه، سيد واصل الدّين[۷۷٤] داسې هم ويلی شي چې د سيد حسين څه اولاد په سوات او څه د سمې په اسماعيله (صوابۍ) او زېده کې اوسېږي او دا هم وايي چې سيد قاسم او سيد حسين او د دوی اولاد د سوات کوهستان په جهاد کې حصه اخستې ده.[۷۷٥] د حسين له مرگ وروسته د ده اولاد په خواو شا علاقو کې خور شو چې په

ګړهي دولت زي تحصيل مردان، اسماعيله، نذر، زېده او هنډ تحصيل صوابۍ کې اباد دي او نور اولاد يې په رياست سوات کې خاص په قمبر کې دی. د رياست سوات د والي صاحب ماما ګان چې په لالا ګانو مشهور دي هغه هم د دې سيد حسين په اولاد کې دي.[۷۷٦] رحيم شاه رحيم ليکي چې کله دی په ګړهي امازو کې وفات شو نو د ده له مرګ نه وروسته د ده څه اولاد سوات ته لاړل او په سوات کې په قمبر، ډهېرۍ، دمغار، کالا کلي، ګالوچ او شلهڼ کې اباد شول. د سيد حسين د يو ځوی سيد ابدال قبر په کوکړۍ کې دی. د سيد ابدال د يو ځوی نوم ميا ګل لال دی او د ده قبر په دمغار کې دی. د ميا ګل لال د ځوی سيد جلال قبر په کالا کلي کې دی.[۷۷۷]

## ميا کريم داد

ميا کريم داد د اخون درويزه مشر ځوی دی. ميا کريم داد د تاريخ او ادب په کتابونو کې په مختلفو نومونو ياد شوی دی لکه اخون کريم داد، کريم داد شهيد ، عبدالکريم او شهيد بابا.[۷۷۸] خلاصة البحر نومې کتاب کې ورته "محقق افغان" ويل شوي دي.[۷۷۹]کريم داد د بونېر په علاقه سلارزي کې پېدا شوی دی.[۷۸۰] د ده د پېدائش نېټه ۹٦٥ هـ بمطابق ۱۵۵۷ عيسوي ښودلې شوې ده.[۷۸۱] رحيم شاه رحيم په خپل ناچاپ کتاب "غټه خزانه" کې د ده د پېدايش نېټه ۹۷۰ هـ بمطابق ۱۵٦۲ عيسوي ليکلې ده.[۷۸۲]دی د لسو کالو په عمر کې د پير بابا په مدرسه عاليه پاچا کلي کې د دين د زدکړې د پاره کېښنولی شه. په ماشومَوالي کې ورته پير بابا دعا وکړه او د علم منزلونه يې ډېر په تېزۍ سره سر کړل، چې کله هلکوالي ته ورسېده، نو د نور علم د پاره هندوستان ته لاړه. په هندوستان کې دی په دهلي، اجمېر شريف او اګره کې پاتې شه.[۷۸۳] په خپل يو غزل کې د هندوستان د سفر حال حال داسې بيا نوي:

دا دنيا ده د هندوانو در ئې پربېرده چې هندوان ئې تېره کا په تماشه کې
زيات د هند خلق چار پائی دی [که پوهېږې] له چارپايه مه ګډېږه په شماره
کې کريمداد چې دا بيان کړ لهٔ چارپايو سره بند وه په اګره کې[۷۸٤]

کله چې دی په هندوستان کې و، نو د يو بزرګ په وينا ده د خپل پلار مرشد کامل پيربابا ته ځان راورسولو او د هغه په لاس يې بيعت وکړ او د هغه په خاصو مريدانو کې شمار شو. پير بابا به د نورو مريدانو په نسبت ده طرف ته د لطف و کرم نظر زيات و. ميا کريم داد

يې هم په خپلو شعرونو کې ځای پر ځای د خپل پير په نامه ستاينه کړې ده. په يو ځای کې ورته د عقيدت پېرزوينې داسې وړاندې کوي:

دا گفتـار د غوّاصـانو شـېخ عـلي غونـدې غـوّاص د تـا بائـده دی
دی غوّاص صاحب د در دی سر بـازل هـنر د ده دی کـريم داد چـې ځـه
وئيـــرې رحـــم شـــوی د خپـــل پـــلار مـــدام پـــه ده دی[٧٨٥]

رحيم شاه رحيم دا شعرونه داسې ليکلي دي:

دی غوّاص صاحب د در دی سر بازل هنر د ده دی د کريم په لبو باندې
جام شيرين کوثر د ده دی کريم داد چې ځه وئيږي د شفقت نظر د دهٔ دی[٧٨٦]

په بل ځای کې خپل پير سيد علي ترمذي ته د عقيدت پېرزونې داسې وړاندې کوي:

مدعي که باور نه کړي ملامت دی چې حديث د پاک رسول
زما برهان دی چې زه الله په وحدت يو وو ولې وس مې د
صورت حجاب تر ميان دی اوس انسان لره بائده دي هر
انسان چې ځه انسان دی کلي سر د خپل الله کا که تحقيق
د حق جريان دی اوس دا هومره خو دې زده کا چې بې سره
صورت وران دی که پر سر ورپوهېږي ای عارفه دا صورت دی
هم په دا ولې ودان دی هر سالک چې په دا هسې سر عارف
شهٔ ځان ئې تن شهٔ تن ئې ځان دی په دا سر کې يوه گرانه
دقيقه ده ولې شېخ سېد علي پکې چلان دی که په دا دقيقه
پوئ ئې لرې مه ځه شريعت او طريقت عېن عرفان دی[٧٨٧]

کريم داد د خپل پلار او د پير بابا دواړو ذکر داسې کوي، لکه له دواړو نه يې چې د سلوک مرسته اخستې وي،شايد چې لاس نيوه يې د خپل پلار نه کړي وي او پير بابا د هغه په واسطه خپل پير گڼي.[٧٨٨]ميا کريم داد د چشتيه سلسلې پيروکار و، لکه چې پخپله وايي:

کريم داد به ځه پرواه کا چې دائم ئې د چشتيانو بدرگه ده[٧٨٩]

د هغه په مريدانو کې خاص طور د هغه خپل دوه ځامن ميا دولت او ميا نور محمد، دوه ورېرونه ميا عبدالسّلام او ميا عبدالحليم، د پير بابا درې لمسي ميا عبدالوهاب او ميا قاسم او ميا حسن خپل يو خورائی ميا الله داد چشتي او ميا قاسم پاپين خېل او د پښتو لوئی شاعر رحمان بابا د ذکر وړ دي.[٧٩٠]اخون کريم داد چې کله د هندستان نه راغی او د

پیر بابا مریدي او شاګردي ئې شروع کړه نو د هغه ورسره هم ډېره مینه پیدا شوه او خپله کشره لور بي بي شاهان ئې هم ورته په نکاح کړه.[۷۹۱] رحیم شاه رحیم په یو بل ځای کې د ده د بي بي نوم بیبي عاشیه لیکلی دی.[۷۹۲] د میا کریم داد دوه ځامن وو، د مشر ځوی نوم یې میا دولت او د کشر نوم میا نور محمد و، دا دواړه ډېر عالمان، فاضلان او سالکان وو، د دې دواړو وروڼو قبرونه د سوات د اسلام پور کلي په مقبره کې دي.[۷۹۳] د میا کریم داد یوه لور هم وه چې د هغې نوم نورالنّساء و، دا د بونېر د بشونۍ کلي په اخون محمد صدیق واده وه.[۷۹٤] د میا کریم داد او د هغه د اولاد شجره داسې بیان شوې ده:

د اخون درویزه څلور ځامن: میا کریم داد، عبدالله، پاینده محمد، میا عبدالخالق

د عبدالله دوه ځامن: میا عبدالحلیم او میا عبدالسّلام

د میا کریم داد دوه ځامن: میا دولت، میا نور محمد

د میا نور محمد درې ځامن: غلام مصطفی محمد، نثار محمد، میا احمد

د میا دولت درې ځامن: میا عبد الرّسول، میا حافظ، میا فاروق

د میا فاروق دوه ځامن: زین العابدین، ابوبکر

د ابوبکر درې ځامن: میا شاه ګدا/میا شاه ایران، سپین ګیری بابا، میا شا درغان[۷۹۵]

د میا کریم داد د تصنیفاتو او تالیفاتو په باره کې رحیم شاه رحیم لیکي چې ده په فارسۍ او پښتو کې ګڼ کتابونه لیکلي دي. یو مستند کتاب یې "تحفة الخانیه" او یو وړوکی کتاب یې د "مسائل النّساء" په نوم لیکلی دی. په دې کتاب کې ده د ښځو د پاره فقهي مسایل راجمع کړي دي. په تصّف کې یې "شرح جام جهان نما" په فارسۍ او "کلمات الوفیات" یې په پښتو کې لیکلي دي. د ده غټه کارنامه د خپل پلار اخون درویزه د تصنیف " مخزن الاسلام" د خپلو اضافو او تصحیح سره دوباره مرتب کول دي.[۷۹٦] ده د وخت د تقاضو مطابق په مخزن الاسلام کې د مانځه سبق، د عقائدو څه ټوټې،د یو دوو ایاتونو تفسیر، د آمنت باالله ترجمه، د جنازې مونځ او د څه فقهي مسائلو اضافه کړې ده ـ دا اضافې ځیني د اخون درویزه په شان په نثر مسجّع کې دي او د اخون درویزه په سبک کې لیکل شوي دي او ځیني وړې وړې مسلسلې قطعې یا دوه بیتیزې دي.[۷۹۷] د کریم داد په دې اضافو کې یوه د هغه خپله الف نامه هم ده. دا یې د اخون درویزه په شان په هر حرف بېله بېله قطعه لیکلې ده او خپل صوفیانه مسلک یې پکې بیان کړی دی. [۷۹۸]له دې ټولو نه اهم د ده د پښتو دیوان دی چې اوس نایاب دی.[۷۹۹] د فارسۍ خطونو مجموعه او د

يو څو عربي کتابونو شرحې يې موندلی شي. د تحفة الخاني او فقه کريم داد په نامه د کتابونو يې صرف نومونه رارسېدلي دي خو چا ليدلي نه دي.[800] د ده د کلام يوه نسخه په مينگوره کې د ده لمسي عبدالرّشيد مرتّب کړې ده. په دې کې د مونځ مکمله منظوم ترجمه، الف نامه او په وړو لويو بحرونو کې ځينې نورې غزلې شاملې دي.

اخون کريم داد اکثر وينا د خپل پلار په شان هغه د "خيرالبيان" په طرز کړې ده، خو له دې نه علاوه يې عروضي قسم شعرونه هم ويلي دي.[801] د ده ټوله شاعري د خدای پاک او د رسول په مينه کې رنگ او د معرفت يوه بېش بها خزانه ده. د عشق حقيقي سوز او د معرفت ساز د هغه کلام له دومره خوزوالی او لطف ورکړی دی چې د لوستونکي يې په بيا بيا لوستو تنده نه ماتيږي.[802] د نمونې په توگه يې دا شعرونه پېش کولی شي:

نا گها شها يواځې ننداره کا چې د دې رحم پرې اوشي و هغو
وته سپينکي دندان ښکاره کا له بادشاهانو سره ناسته پاس پر
تخت ده له گدايه سره گرځي دروېزه کا له عابد سره ولاړه پر
مانځه ده له بنگيانو سره خپسر خماره کا له عاقله سره ناسته ده
خاموشه له کم عقله سره گر ځي مسخره کا له رنځوره سره ناسته
ده بېداره له غافله سره خوب په غړ غړه کا له هندوانو سره ناسته
په بازار ده له حاجيانو سره يون په بخاره کا[803]

د دوی کورنۍ له نظم نه زيات شهرت په نثر کې لري.[804] لکه چې وړاندې ذکر شوي شوي دي کريم داد په نثر کې هم کتابونه ليکلي، خو له بده مرغه زيات پکې ورک دي. په ۹۹۱ هـ (۱۵۸۳م)کې د پير بابا له وفات نه پس چې کله په ۹۹۵ هـ (۸٦۱۵م) کې د اکبر بادشاه لښکرې په سوات او بونېر راخورې شوې او تباهي يې شروع کړه، نو لکه د نورو خلقو غونډې ميا کريم داد هم در په ديکې او د بې سروسامانۍ په حالات کې د خپل پلار سره په کال ۹۹۷ هـ (۱۵۸۸م) کې پېښور ښار ته په جلا وطنۍ مجبوره شه.[805]کريم داد چې کله پېښور ته جلا وطن شه نو دولس کاله يې په پېښور کې تېر کړه او دولس کاله پس چې قلاره قلاري شوه نو بيا واپس يوسفزو ته راغی. څه زمانه يې د دير په سجادي نومې کلي کې تېره کړه او بيا د سوات د نيکپي خېلو علاقې کانجو کلي ته راغی. دلته يې د درس و تدريس او علم و عرفان سلسله شروع کړه.[806] رحيم شاه رحيم په يو بل ځای کې ليکي چې

د مغلو په دې چپاو کې میا کریم داد د بونېر نه اسلام پور (سوات)، هشنغر او له هغه ځای نه واپس بیا سوات ته راغی.[807]

په کانجو کې چې کله ده د درس وتدریس کار شروع کړه نو په ګېر چاپېره علاقو یې هم نظر لرلو. هغه وخت کې د سوات کوهستان خلک لا مسلمانان شوي نه وو، ده د دغو خلکو خلاف د جهاد اعلان وکړ او له نورو ملګرو سره د تیرات (مدین) په علاقه کې د کفارو لښکر ته مخامخ شه. د شپې د کفارو یو مخبّر دې په خپله مورچه کې په مانځه ولاړ شهید کړ. په دې جنګ کې د ده یو وراره میا عبدالحلیم چې د ده مرید هم و، د دېرشو کالو په عمر کې شهید شه. دا د شوال میاشتې نهم تاریخ او د هجري سن یو زر نهه پنځوستم (۱۰۵۹ هـ) کال و.[808] د ده د وفات نېټه رحمان علي په تذکره علماء هند کې ۱۰۷۲ هـ (۱٦٦۱م) لیکلې ده.[809] سید تقویم الحق کاکا خېل هم د ده د وفات نېټه ۱۰۷۲ هـ لیکلې ده.[810] په یو بل ځای کې رحیم شاه رحیم د ده د وفات تاریخ ۱۰۷۲ هـ لیکلی دی.[811] چونکې په تیرات کې دی شهید شوی و، نو هلته د ده د شهادت په ځای د ده یادګاري روضه اباده ده. د تیرات او ګېرچاپېره علاقو د قبضه کولو او په دې جنګ کې د ده د وفات کېدلو په اړه میجر راورټي داسې لیکي:

> It appears that the whole of Suwat, as far north as Pia, was conquered in Shaykh Mali's time; but these few villages just referred to,[Chur-rrai (Madyan) and Tirataey], were acquired from the Kafirs (as all people are termed by the Afghans, who are not of the same faith as themselves) about a hundred and fifty years after, in the time of Akhund Karun Dad [Karim Dad], son of Akhund Darwezah. At the capture of Tirataey Karun Dad [Karim Dad] lost his life.[812]

د ده اصلي روضه په کانجو سوات کې ده.[813] مېجر راورټي وایي د تیرات خلک دا دعوه کوي چې د میا کریم داد لاش له دوی سره دی او قبر یې هم په تیرات کې دی او کله چې دوی ته وویل شول، چې د کانجو خلک خو وایي چې د هغه له مرګ نه وروسته هغه خپل کلي کانجو ته وړل شوی دی او هلته دفن دی، نو د دې په جواب کې د تیرات خلک

وايي چې مونږ له هغوی نه دا لاش راپټ کړی او بيا مو دلته په تيرات کې سپارلی دی. په دې خبرو مېجر راورټي خپله تبصره داسې کوي:

All such statements as these are solely for their own interested purposes, in order to enable them to peel off the skin and flesh of poor people, in the shape of offrings at the shrines.[٨١٤]

چونکې دی په کانجو کې اوسېده او روضه يې هم په کانجو کې ده، نو له دې وجې د کانجو د شهيد بابا په نوم هم ياد شوی دی. اخون ميا داد د ده ذکر داسې کړی دی:

د اخون دعا ده تر سوات قلاته دا ننگ اوکړه ای
کانجو کې کانجو نام د هستۍ غوث اقدره[٨١٥]

د مياں کريم داد شهيد په مرگ حافظ الپوری داسې وايي:

يو عالم وې بل شهيد شوې عجيبه در فريد شوې
د کـانجو ميـاں کـريم داده مـانيولی لمـن سـتا ده[٨١٦]

د ميا کريم داد ژوند او ادبي خدمات د پښتو ادب په تاريخ کې ډېر اهميت لري. پر پښتو ادب د هغه اثرات ښه ښکاره دي او په پښتو ادب د هغه ډېر احسانات دي. هغه په نظم او نثر دواړو کې ليکل کړي دي. په بنيادي توگه د هغه شاعرانه تخليقات له تصوف سره تعلق لري، خو د ژوند له هرې شعبې سره د تعلق لرونکو د دلچسپۍ سامان د هغه په ادبي تخليقاتو کې موندل کېږي.

## ميا عبدالحليم

ميا عبدالحليم د کريم داد شهيد وراره او د عبدالله زوی دی او د اخوند دروېزه بابا لمسی دی. د اخوند دروېزه په اولاد کې له ميا کريم داد نه پس ميا عبدالحليم يو پياوړی شاعر تېر شوی دی. د ميا عبدالحليم څه ملحقات په مخزن کې شامل دي.[٨١٧]

## ميا مصطفی محمد

د ميا مصطفی محمد خپل نوم نثار احمد و. ميا مصطفی د ده قلمي نوم و، خو په عوامو کې نه چا په نثار احمد نوم پېژنده او نه په ميا مصطفی نوم يادېده. په عامو خاصو کې په مياجيو يا ميانجو بابا مشهور دی. دی د ۱۰۵۴ هجري خواو شا د سوات په سلامپور کلي کې د ميا نور محمد ابن ميا کريم داد کره زېږېدلی و. دی د نقشبنديه طريقې يو

کامل پیر و، د عمر زیاته برخه یې په خپل کلي سلامپور کې تېره شوې ده او همدلته د ۱۱۳۴ هجري کال خواو شا وفات شوی دی. قبر یې د خپل پلار میا نور محمد له قبر سره خوا کې لمر خاته لاس ته دی، په میا جو بابا یادېږي. [۸۱۸]

## اخون قاسم پاپین خېل

د اخوند قاسم پوره نوم میا اخوند محمد قاسم و. د کال ۱۰۴۶ هجري، مطابق ۱۶۳۰ عیسوي خواو شا په سوات سیدو شریف کې پیدا شوی و. د پلار نوم یې اخوند محمد صدیق او د نیکه نوم یې محمد شریف و. له پاپیني میاگانو سره د تعلق لرلو په سبب یې له نوم سره لفظ پاپین خېل لیکل کېږي.(رحیم، رحیم شاه، غڼه خزانه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بک سیلرز، ۲۰۱۵، مخ: ٦٠). د اخوند قاسم دوه وروڼه نور هم وو، دی په درېو واړو وروڼو کې مشر و. دی په سیدو شریف کې له خپل پلار او ترونو سره یو ځای اوسېده. په دغه زمانه کې د اخوند درویزه بابا مشر زوی اخوند کریم داد د سوات په کانجو کلي کې اوسېده او د علم او د عرفان دبدبه او شهرت یې په هر طرف خور و. اخوند قاسم پاپین خېل د شپاړسو کالو په عمر کې د میا کریم داد په حلقه کې شامل شو، تقریباً لس کاله یې ترې د ظاهري او باطني علومو فیض حاصل کړ. په کال ۱۰۷۲ هجري کې چې کله میا کریم داد د تیرات په غزا کې د ډوما کافرو له لاسه شهید شو، نو میا قاسم پاپین خېل له کانجو نه د دغې علاقې یو بل کلي ته، چې وروسته بیا د هغه په وجه په اخون کلي مشهور شو ، راغی. میا قاسم تر وفاته پورې په اخون کلي کې استوگن و، قبر یې هم دلته دی د وفات کال یې نه دی معلوم. (رحیم، رحیم شاه، غڼه خزانه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بک سیلرز، ۲۰۱۵، مخ:٦١) میا قاسم پاپین خېل لوی صوفي، بزرگ، عالم، فاضل، د باطني علومو خاوند او د خپل وخت یو صوفي شاعر و. د فواید الشریعت او فواید المومنین په نوم یې دوه کتابونه په پښتو کې لیکلي دي. د پښتو شعرونو یو دیوان یې هم لرلو خو اوس نایاب دی. فواید الشریعت په ۱۰۷٦ هجري کې د تیرات له جنگ نه څلور کاله پس لیکل شوی دی. هغه اگر چې د میا کریم داد شهید شاگرد او مرید و، خو په خپل کلام کې یې له میا کریم داد نه علاوه د اخوند درویزه بابا او پیر بابا سره هم ډېر عقیدت ښکاره کړی دی.[۸۱۹] د اخوند قاسم د کتاب "فواید الشریعت" یوه قلمي نسخه د جرمني په برلن ښار کې په یو کتابتون کې موجوده ده. داکتاب په ۱۰۷٦ هـ خواو شا لیکل شوی دی. په وړومبي ځل په ۱۸۷۵ کې چاپ شوی دی. په ۱۹٦۹ کې پښتو اکیډمی

پېښور یونیورسټۍ دا کتاب چاپ کړی دی. په دې کتاب کې له مختصر الهدایه نه د اسلامي فقهې احکام راخستل شوي، چې په هغې کې د شریعت احکام، د اسلام ارکان، د ایمان شرطونه، د ژبې څلور خامیانې، د الله ذکر، د مشرانو حقونه، د ښځو حقونه، د قران فضائل، د درود شریف فضایل، د مسواک فایدې،د غسل فایدې او نور لیکل شوي دي. دا کتاب د مخزن د اسلوب په طرز لیکل شوی دی، په پښتونخوا کې دې کتاب ته هم د مخزن په شان مقبولیت مېلاو شوی دی. (نسیم، پروفېسر ډاکټر عارف، فهرست مخطوطات پشتو اکیډمي، پشاور، پشتو اکیډمي، ۲۰۱۱، مخ: ۵۴۹) افضل رضا لیکلي چې دا کتاب په ۱۰۷۲ هـ خواوشا لیکل شوی دی. (رضا، محمد افضل، د پښتو د نثر تاریخ، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۱۹۹۵، مخ: ۲۰۳) د دې کتاب په اکثرو نسخو کې د بابونو شمېره دوه اتیا دی. (هېواد مل، زلمی، د پښتو د نثر اته سوه کاله، لاهور، ملت پرنټرز، ۱۹۹٦، مخ: ۸۲). د دې کتاب په تالیف کې اخوند قاسم پاپین خېل له ډېرو کتابونو نه استفاده کړې، چې پکې د ځینو ماخذونو نومونه دا دي : احیا العلوم، مشکوت المصابیح، مطالب المومنین، صحیح بخاري، تفسیر مدارک، تفسیر زاهدي، تفسیر الکشاف، تفسیر حسیني، تفسیر یعقوب چرخي، ذخیرت الملوک، تنبیه الغافلین، رساله قدسیه، ارشادالمریدین، شرعت الاسلام، انیس الواعظین، کیمیای سعادت، تذکرت الاولیا، نفحات الانس، فتاوي قاضي خان، خزانت الفتاوي، فتاوي غرایب او نور.(هېواد مل، زلمی، د پښتو د نثر اته سوه کاله، لاهور، ملت پرنټرز، ۱۹۹٦، مخ: ۱۹۳، ۱۹۴)

## حافظ الپورۍ

د حافظ الپورۍ خپل نوم عبدالصمد و. په ۱۱۵۹ هجري کال بمطابق ۱۷۴٦ عیسوي کې پېدا شوی و. د پیدایش ځای یې د موجوده شانګلې ضلعې الپورۍ نومې کلی دی. په قوم مندڼ یوسفزی دی. د حافظ الپورۍ خپل پلرنی وطن د هشنغر علاقې د اتمانزو نومې کلی دی. له خپلو تربورانو سره د دښمنۍ له وجې د حافظ مشران د غوربند علاقې ته راغلي وو. د حفظ قران لپاره حافظ د سوات د عزیخېل علاقې خوازه خیلې ته راغلی و. په خوازه خېله کې له ابتدایي علم نه پس د مردان او پېښور په علاقو هم ګرځېدلی دی. په ۱۲۲٦ هجري کې د درې کم اویا کالو په عمر کې وفات شوی دی. مزار مبارک یې د الپورۍ په مقام د خوړ پر غاړه دی. د حافظ الپورۍ دوه ځامن او یوه لور وه، د مشر ځوی نوم یې محمد وصال او د کشر ځوی نوم یې محمد اولیا و، د بي بي نوم یې

مهره وه. د محمد اوليا او محمد وصال قبرونه د حافظ الپورۍ له مزار سره جخت نمر خاته طرف ته واقع دي.(رحیم، رحیم شاه، د سوات ورک شاعران، دویم ټوک، مشموله میاشتنۍ پښتو، جلد: ۱۲، شماره: ۵ (جون ۱۹۸۰)، مخ: ۳۹،۳۸)

## احمد دین طالب

احمد دین طالب په ۱۸۵۹م کال کې د هشنغر له اتمانزو کلي سره متصل نوي کلي کې پیدا شوی و. د پلار نوم یې سراج الدین و. دوی په قوم پریچ خېل پښتانه وو. احمد دین طالب د عمر زیاته برخه په سوات کې تېره شوې ده، هغه د پینځه کم څلوېښتو کالو په عمر کې سوات ته راغلی و او د اویاوو کالو په عمر کې له سوات نه بېرته تلی و. هر څو که احمد دین طالب په هشنغر کې پیدا شوی او لوی شوی دی، خو شاعري یې له سوات سره تعلق لري او هم په سوات کې د احمد دین شاعرۍ ته شهرت حاصل دی، نو ځکه یې مونږ د سوات په شاعرانو کې شمېرو. محمد اصف خان وايي چې خلک هم د سوات وو چې د احمد دین د شاعرانه جمالیاتي حس د بېدار ساتلو باعث وو، لکه احمد دین طالب چې وايي:

زه طالـــب احمـــد دیـــن ځکـــه ســـوات کـــې خـــوښ یـــم
چـــــــې وطـــــــن د ښـــــــاپېرو مـــــــې دی مونـــــــدلی
او بـــــــــل ځـــــــــای کـــــــــې داســـــــــې واي:
مینګـــــــوره کـــــــې شـــــــاګرد عبدالحمیـــــــد مـــــــې
کـــــــړي ښـــــــکاره بـــــــه دی زمـــــــا شـــــــعر و کـــــــمال

په ۱۹۳۴م کال کې د پینځه اویا کالو په عمر وفات شوی دی. قبر یې د مردان شهیدانو بازار سره نزدې د بنجاري بابا په مقبره کې دی. (رحیم شاه ، د سوات ورک شاعران دریم ټوک، میاشتنۍ پښتو جلد ۱۲، شماره ٦ (جولايي ۱۹۸۰، مخ: ۳۰)

## ابراهیم

ابراهیم د سوات د مشهور بزرګ پیر پرنده صیب په اولاد کې تېر شوی دی او د اخون درویزه د سبک په پیروکارانو کې ښکلی لیکونکی دی. [۸۲۰]

## خیری

خیرالله خان چې په خیري مشهور و په قام نعمت خیل و، چې د زبرخیل ښاخ دی او زبرخېل په عائشه خېل ورگډېږي او عائشه خېل د نیکبي خېل یو ښاخ دی. د بر سوات په چاچو ډهېرۍ کې اوسېده. نن ورځ د چاچو ډهېرۍ نوم بدل شوی او په شاډهېرۍ یادېږي. خیرالله خان په خپلو شعرونو کې خیری تخلص استعمال کړی دی. د سوات په شاعرانو کې یې شهرت لرلو، تقریباً د پنځوسو کالو په عمر کې په ۱۹۰۸ کې په حق رسېدلی دی. (اثر، قاضي عبدالحلیم، تېر هېر شاعران، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹٦۳، مخ: ۲۱۸) د ده د یوې معمه چاربېتې سر رحیم شاه داسې لیکلی دی:

ځلور مې خاله اینښي پینځه ټیکې گرځوم
شپږ به گلونه په وربل ورته قطار کړمه    موزي به خوار کړمه ـ[۸۲۱]

[575] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران،۱۵۸مخ.

[576] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, ۲۰۰۹, p.۱۸.

[577] ډارمستيټر، جيمز. د پښتونخوا د شعر هار وبهار، کابل، پښتو ټولنه، (دريیم چاپ)، ۱۹۷۷، ۳۲مخ.

[578] Bellew, H.W., A General Report on the Yusufzais, Lahore, Sang-e-Meel Publications, ۲۰۰۱, pp.۲۱٤,۲۱۵

[579] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقیق او سمون د همېش خلیل، اکوړه خټک، مرکزي خوشحال ادبي و ثقافتي جرگه، ۱۹۸٦، ٦۰مخ.

[580] همدغه اثر ، ٦۷مخ.

[581] همدغه اثر ، ۹۲مخ.

[582] همدغه اثر ، ۹۸مخ.

[583] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, ۲۷۵Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸٦۲), p.

[584] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران،۱۷۹مخ.

[585] پاپین خېل، اخون قاسم. فوائدالشریعت، پېښور، رحمٰن گل پبلشرز، ۲۴مخ.

[586] دیوان حافظ الپوری سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مینگوره، اسلام بک سټور، ۱۲۴مخ.

[587] طائر، محمد نواز. په برټش میوزیم لندن کښې یو نایاب پښتو دیوان دیوان اکبر، مشموله، میاشتنی پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۹، شماره: ۱،۲ (فروري، مارچ ۱۹۷۷)، ۵۹ مخ.

[588] همدغه اثر ، ۵۹ مخ.

[589] همدغه اثر ، ٦۰مخ.

[590] همدغه اثر ، ٦٦مخ.

[591] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران، ۲۸مخ.

[592] همدغه اثر ، ٦۷مخ.

[593] همدغه اثر ، ۱۰۷مخ.

[594] همدغه اثر ، ۱۱۳مخ.

[595] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, ۲۵۰Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸٦۲), p.

[596] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقیق او سمون د همېش خلیل، اکوړه خټک، مرکزي خوشحال ادبي و ثقافتي جرگه، ۱۹۸٦، ۵۰ مخ.

[597] Bellew, H.W., A General Report on the Yusufzais, Lahore, Sang-e-Meel ۲۱٤ Publications, ۲۰۰۱, p

[598] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقیق او سمون د همېش خلیل، ۴۸ مخ.

[599] دیوان حافظ الپوری سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مینگوره، اسلام بک سټور، ۱۱۵مخ.

[۶۰۰] میاداد، اخون. د اخون میاداد دیوان، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف، ۹۶مخ.

[۶۰۱] همدغه اثر ، ۱۲۷مخ.

[۶۰۲] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے،۲۹۲، ۲۹۳ مخونه.

[۶۰۳] همدغه اثر ، ۳۸۶مخ.

[۶۰۴] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے،۲۹۲،۲۹۳ مخونه.

[۶۰۵] همدغه اثر ، ۳۸۷مخ.

[۶۰۶] همدغه اثر ، ۳۸۸مخ.

[۶۰۷] همدغه اثر ، ۳۸۹مخ.

[۶۰۸] همدغه اثر ، ۳۹۰مخ.

[۶۰۹] دیوان حافظ الپوری سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مینگوره، اسلام بک سټور، ۱۹۰مخ.

[۶۱۰] پاپین خېل، اخون قاسم. فوائدالشریعت، پېښور، رحمٰن گل پبلشرز، ۱۷۴مخ.

[۶۱۱] همدغه اثر ، ۱۷۳مخ.

[۶۱۲] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے، ۳۷۹،۳۸۰ مخونه.

[۶۱۳] Ahmad, Makhdum Tasadduq, Social Organization of Yusufzai Swat: A Study in Social Change, Lahore, Punjab University, ۱۹۶۲, p.۳۹

[۶۱۴] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸۶۲), p.۲۶۵.

[۶۱۵] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے،۳۷۲،۳۷۳ مخونه.

[۶۱۶] همدغه اثر ، ۳۷۳مخ.

[۶۱۷] همدغه اثر ، ۳۷۳مخ.

[۶۱۸] پاپین خېل، اخون قاسم. فوائدالشریعت، پېښور، رحمٰن گل پبلشرز، ۱۷۱مخ.

[۶۱۹] دیوان حافظ الپوری سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مینگوره، اسلام بک سټور، ۹۲مخ.

[۶۲۰] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران، ۱۸۱مخ.

[۶۲۱] حسین، دیوان حسین. (مرتّب: همېش خلیل)، پېښور، پبلک ارټ پریس پېښور، ۱۹۵۸، ۴۸۲مخ.

[۶۲۲] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران،۵۳ مخ.

[۶۲۳] همدغه اثر ، ۷۵ مخ.

[۶۲۴] همدغه اثر ، ۱۸۲مخ.

[۶۲۵] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے،۴۳۹، ۴۴۰ مخونه.

[۶۲۶] رحیم، رحیم شاه. محمد اکبر څوک وۀ ؟، مشموله، میاشتیزه پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي، جلد: ۹، شماره: ۸، (ستمبر ۱۹۷۷)، ۳۰مخ.

[۶۲۷] میاداد، اخون. د اخون میاداد دیوان، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف،۱۳۸مخ.

[٦٢٨] رښتين، صديق الله. پښتني لارښود، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ٣٤،٢٠٠٠ مخ.
[٦٢٩] خادم، قيام الدّين. پښتونولي، ١٩٥٢، ٣٩مخ.
[٦٣٠] نصر، نصرالله خان. اخون صاحب سوات، پېښور، تعليمي اداره پبلشرز کريم پوره، ١٩٦۴، ٦٩مخ.
[٦٣١] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے،٣٠٥،٣٠٦ مخونه.
[٦٣٢] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل،٦۴ مخ.
[٦٣٣] طالب، احمددين. ديوان احمد دين طالب: ترتيب لائق زاده لائق او محمد اقبال حيران،١٥ مخ.
[٦٣٤] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل،٥٠ مخ.
[٦٣٥] مياداد، اخون. د اخون مياداد ديوان، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف،٨٨ مخ.
[٦٣٦] همدغه اثر ، ٩۴مخ.
[٦٣٧] همدغه اثر ، ١٥١مخ.
[٦٣٨] طائر، محمد نواز. په برټش ميوزيم لندن کښې يو ناياب پښتو ديوان ديوان اکبر، مشموله، مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ٩، شماره: ١،٢ ، (فروري، مارچ ١٩٧٧)، ٥٩ مخ.
[٦٣٩] اثر، قاضي عبدالحليم. تېر هېر شاعران، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، اپرېل ١٩٦٣، ٢١٩مخ.
[٦٤٠] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل،٥٩،٦٠ مخونه.
[٦٤١] همدغه اثر ، ٦٠مخ.
[٦٤٢] درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سېّد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٩١مخ.
[٦٤٣] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل،٦۴مخ.
[٦٤٤] ديوان حافظ الپورى سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مينگوره، اسلام بک سټور، ٩٧مخ.
[٦٤٥] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل،٥٧مخ.
[٦٤٦] همدغه اثر ، ٦٣مخ.
[٦٤٧] صواتے [سواتے]، عبدالعظيم. ديوان عبدالعظيم، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ١٩٥٩، ۴٧مخ.
[٦٤٨] ديوان حافظ الپورى سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مينگوره، اسلام بک سټور، ٦٠مخ.
[٦٤٩] درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سېّد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٧٠مخ.
[٦٥٠] طائر، محمد نواز. په برټش ميوزيم لندن کښې يو ناياب پښتو ديوان ديوان اکبر، مشموله، مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ٩، شماره: ١،٢ (فروري، مارچ ١٩٧٧)، ٦٦مخ.
[٦٥١] همدغه اثر ، ٧٧مخ.
[٦٥٢] مياداد، اخون. د اخون مياداد ديوان، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف، ٨٧ مخ.
[٦٥٣] همدغه اثر ، ١٨٧مخ.
[٦٥٤] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ٣١ (No. ٣, ١٨٦٢), p. ٢٦٧

[٦٥٥] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ٣١ (No. ٣, ١٨٦٢), p. ٢٦٨

[٦٥٦] حبيبي، عبدالحی. د سوات نامې سريزه، ١٠مخ.
www.alamahabibi.com/pdfs/A_Book_da%٢٠swatbamee%٢٠sareza.pdf retrieved on ١٠/١١/٢٠١٦

[٦٥٧] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل، ٧٠مخ.

[٦٥٨] حسين، ديوان حسين. (مرتّب: همېش خليل)، پېښور، پبلک ارټ پريس پېښور، ٣،١٩٥٨ ۵مخ.

[٦٥٩] همدغه اثر ، ١٦٢مخ.

[٦٦٠] همدغه اثر ، ۴۵٩مخ.

[٦٦١] حبيبي، عبدالحی. د سوات نامې سريزه، مخ:
www.alamahabibi.com/pdfs/A_Book_da%٢٠swatbamee%٢٠sareza.pdf ١٠ retrieved on ١٠/١١/٢٠١٦

[٦٦٢] همدغه اثر ، ۵٠ مخ.

[٦٦٣] طائر، محمد نواز. په برټش ميوزيم لندن کښې يو ناياب پښتو ديوان ديوان اکبر، مشموله، مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ٩، شماره: ١،٢ (فروري، مارچ ١٩٧٧)، ۵۵، ۵٧ مخونه.

[٦٦٤] ډارمسټېټر، جيمز. د پښتونخوا د شعر هار وبهار، کابل، پښتو ټولنه، (دريم چاپ)، ١٩٧٧، ٣٢مخ.

[٦٦٥] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[١٩۴١]، ٢۵۴مخ.

[٦٦٦] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلد دويم)،١٣٧۵ هـ ،۵ مخ.

[٦٦٧] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ٣١ (No. ٣, ١٨٦٢), p. ٢٧٠

[٦٦٨] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل، ٦۴ مخ.

[٦٦٩] همدغه اثر ، ٦١مخ.

[٦٧٠] همدغه اثر ، ٦۵مخ.

[٦٧١] صواتے [سواتے]، عبدالعظيم. ديوان عبدالعظيم، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ١٩۵٩، ٧٨مخ.

[٦٧٢] درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سېّد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ۵٣، ۵٨، ٦٠، ١٠٨، ١٠٩، ١٢٩، ١٣٠، ١٩٢ مخونه.

[٦٧٣] معظم شاه، پير. تواريخ حافظ رحمت خاني، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٩٧١/ ١٩٨٧، ۴٨، ٨٠، ١٠۴ مخونه.

[٦٧٤] صواتے [سواتے]، عبدالعظيم. ديوان عبدالعظيم، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ١٩۵٩، ١٠٣مخ.

[٦٧۵] پاپين خېل، اخون قاسم. فوائدالشريعت، پېښور، رحمٰن گل پبلشرز، ۴٩مخ.

[٦٧٦] دوستي، دوست محمد خان. گنجةالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے،٢۵٠مخ.

[٦٧٧] همدغه اثر ، ٢٣١مخ.

[٦٧٨] مياداد، اخون. د اخون مياداد ديوان، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف، ١١٨مخ.

[٦٧٩] دوستي، دوست محمد خان. گنجۀالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، ٣٣٣مخ.
[٦٨٠] طالب، احمددين. ديوان احمد دين طالب: ترتيب لائق زاده لائق او محمد اقبال حيران، ١٥٣ مخ.
[٦٨١] مياداد، اخون. د اخون مياداد ديوان، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف، ١٤٨ مخ.
[٦٨٢] صواتے [سواتے]، عبدالعظيم. ديوان عبدالعظيم، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ١٩٥٩، ٧مخ.
[٦٨٣] همدغه اثر ، ٢٣مخ.
[٦٨٤] همدغه اثر ، ١٠٠مخ.
[٦٨٥] طالب، احمددين. ديوان احمد دين طالب: ترتيب لائق زاده لائق او محمد اقبال حيران،١٣٩مخ.
[٦٨٦] همدغه اثر ، ١٦١مخ.
[٦٨٧] ديوان حافظ الپورى سره د شرحې د ابو حسين چندا خوري، مينگوره، اسلام بک سټور، ٦٨مخ.
[٦٨٨] حسين، ديوان حسين. (مرتّب: همېش خليل)، پېښور، پبلک ارټ پريس پېښور، ١٩٥٨،٣٢٧مخ.
[٦٨٩] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل، ٦٩،٧٠ مخونه.
[٦٩٠] همدغه اثر ، ٦٥مخ.
[٦٩١] مياداد، اخون. د اخون مياداد ديوان، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف،٨٨مخ.
[٦٩٢] همدغه اثر ، ٩٥مخ.
[٦٩٣] همدغه اثر ، ١٢٨مخ.
[٦٩٤] درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سيد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٩٧مخ.
[٦٩٥] همدغه اثر ، ٢٠٢مخ.
[٦٩٦] طائر، محمد نواز. په برټش ميوزيم لندن کښې يو ناياب پښتو ديوان ديوان اکبر، مشموله، مياشتنى پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ٩، شماره: ١،٢ (فروري، مارچ ١٩٧٧)، ٦٤مخ.
[٦٩٧] طالب، احمددين. ديوان احمد دين طالب: ترتيب لائق زاده لائق او محمد اقبال حيران، ١٤٠ مخ.
[٦٩٨] همدغه اثر ، ١٧٧مخ.
[٦٩٩] همدغه اثر ، ١٧٢مخ.
[٧٠٠] دوستي، دوست محمد خان. گنجۀالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، سوات، ١٨٣،١٨٤ مخونه.
[٧٠١] حسين، ديوان حسين. (مرتّب: همېش خليل)، پېښور، پبلک ارټ پريس پېښور، ١٩٥٨، ٤٢٦مخ.
[٧٠٢] دوستي، دوست محمد خان. گنجۀالگوهري، سمونه او څېړنه بدرالحکيم حکيمزے، ٤٣مخ.
[٧٠٣] خټک، خوشحال خان. سوات نامه سره د مقدّمې تحقيق او سمون د همېش خليل، ٤٧ مخ.
[٧٠٤] همدغه اثر ، ٤٩مخ.
[٧٠٥] همدغه اثر ، ٦٧مخ.
[٧٠٦]Sultan-i-Rome, Mughuls and Swat, Historicus, Karachi, Journal of Pakistan Historical Society Karachi, Vol. L, No. ٤, pp. ٤٤,٤٥.

[707]Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, ۲۰۰۹, p.۳۸

[708]کاکا خېل، سید محمدتقویم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف : اخون دروېزه، پېښور، پښتو اکېډمي، ک مخ.

[709] طائر، محمد نواز. په برټش میوزیم لندن کښې یو نایاب پښتو دیوان دیوان اکبر، مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۹، شماره: ۱،۲ (فروري، مارچ ۱۹۷۷)، ۷۱ مخ.

[710] صواتے [سواتے]، عبدالعظیم. دیوان عبدالعظیم، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ۱۹۵۹، ۱۵ مخ.

[711] همدغه اثر ، ۷۰ مخ.

[712] پاپین خېل، اخون قاسم. فوائدالشریعت، پېښور، رحمٰن گل پبلشرز، ۲۵مخ.

[713] خټک، خوشحال خان.سوات نامه سره د مقدّمې تحقیق او سمون د همېش خلیل، ٦٦مخ.

[714] طائر، محمد نواز. په برټش میوزیم لندن کښې یو نایاب پښتو دیوان دیوان اکبر، مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۹، شماره: ۱،۲ (فروري، مارچ ۱۹۷۷)، ۵۵ مخ.

[715]حسین، دیوان حسین (مرتّب: همېش خلیل)، پېښور، پبلک ارټ پریس پېښور، ۷،۱۹۵۸ مخ.

[716]همدغه اثر ، ۴۵۷مخ.

[717] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران، ۴۳ مخ.

[718] میاداد، اخون. د اخون میاداد دیوان، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف،۱۰۴ مخ.

[719] طائر، محمد نواز. په برټش میوزیم لندن کښې یو نایاب پښتو دیوان دیوان اکبر، مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۹، شماره: ۱،۲ (فروري، مارچ ۱۹۷۷)،۷ ۵ مخ.

[720] طالب، احمددین. دیوان احمد دین طالب: ترتیب لائق زاده لائق او محمد اقبال حیران، ۳۲ مخ.

[721] همدغه اثر ، ۴۰ مخ.

[722] میاداد، اخون. د اخون میاداد دیوان، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزے، لاهور، اداره نشرالمعارف، ۷۹ مخ.

[723] همدغه اثر ، ۹۱مخ.

[724] همدغه اثر ، ۱۴۹مخ.

[725] اثر، قاضي عبدالحلیم. تېر هېر شاعران، پېښور، پښتو اکیډمي، ۱۹٦۳، ۳۴مخ.

[726]ستهانوي، عبدالجبار شاه،. کتاب العبرة، اسلام اباد، پورب اکادمي، ۲۰۱۱، ۲۳۲ مخ.

[727]همدغه اثر، ۲۳۲ مخ.

[728]رحیم، رحیم شاه. غټه خزانه (غیر مطبوع)، ۴۹مخ.

[729]همدغه اثر، ۴۸،۴۹ مخونه.

[730] دمغار د سوات کبل تحصیل یو کلے دے

[731] گالوچ او کالا کلے د سوات د کبل تحصیل دوه کلي دي ـ

[732]رحیم، رحیم شاه. سید حسین، مقاله مشموله میاشتینی پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي، جلد: ۱۸، شماره: ۸، (ستمبر ۱۹۸٦)، ۲۴مخ.

[733]حسین. دیوان حسین، مرتّبه همېش خلیل، پېښور، پبلک ارټ پریس، ۱۹۵۸، ۱۰۴ مخ.

[٧٣٤] لباسي مينه يعني ظاهري مينه په کومه کښې چې د زړهٔ مينه او اخلاص نهٔ وي شامل
[٧٣٥]حسين. ديوان حسين، مرتّبه همېش خليل، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ٣٠٧مخ.
[٧٣٦]همدغه اثر، ۴١٣مخ.
[٧٣٧]همدغه اثر ، ۵٢ مخ.
[٧٣٨]رحيم، رحيم شاه. سيد حسين، مقاله مشموله مياشتينى پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ١٨، شماره: ٨، (ستمبر ١٩٨٦)، ٢۴مخ.
[٧٣٩] اثر، قاضي عبدالحليم. تېر هېر شاعران، پېښور، پښتو اکيډمي، ١٩٦٣، ٣۴،٣۵ مخونه.
[٧٤٠] رشتين، صديق الله. پياوړي شاعران، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ١٩٩٣، ۴٠مخ.
[٧٤١]همدغه اثر ، ۴١،۴٢ مخونه.
[٧٤٢]همدغه اثر ، ۴٣مخ.
[٧٤٣]رشتين، صديق الله. ادبي او تاريخي سمونې، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ١٩٩٢، ٨٦ مخ.
[٧٤٤] رحيم، رحيم شاه، غټه خزانه (غير مطبوع)، ۵٠ مخ.
[٧٤٥]حسين، ديوان حسين. مرتّبه همېش خليل، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ١٢٣مخ.
[٧٤٦]همدغه اثر ، ٢١٠مخ.
[٧٤٧]همېش خليل. (مرتّب)، (پس منظر) ديوان حسېن، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ط مخ.
[٧٤٨] همېش خليل. (مرتّب)، (خاکه) ديوان حسېن، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨،هـ مخ.
[٧٤٩] رشتين، صديق الله. پياوړي شاعران، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ١٩٩٣، ۴٣مخ.
[٧٥٠]حبيبي، عبدالحی. پښتانه شعراء، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ١۵٩مخ.
[٧٥١] رحيم، رحيم شاه. سيد حسين، مقاله مشموله مياشتينى پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ١٨، شماره: ٨، (ستمبر ١٩٨٦)، ٢٢مخ.
[٧٥٢]حسين. ديوان حسېن، مرتّبه همېش خليل، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ١٩۴مخ.
[٧٥٣]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (غير مطبوع)، ۴٧مخ.
[٧٥٤] لټون
[٧٥٥]حسين. ديوان حسېن، مرتّبه همېش خليل، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ٣١۴مخ.
[٧٥٦]همدغه اثر ، ٣٦٢مخ.
[٧٥٧]همدغه اثر ، ٣۵۵مخ.
[٧٥٨]همدغه اثر ، ۵٩ مخ.
همدغه اثر ، ١٠٨مخ.
[٧٦٠]همدغه اثر ، ١۵٠مخ.
[٧٦١]همدغه اثر ، ٢٠۵مخ.
[٧٦٢]همدغه اثر ، ٢٠٣مخ.
[٧٦٣]همدغه اثر ، ٣٣٩مخ.
[٧٦٤] رشتين، صديق الله. پياوړي شاعران، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ١٩٩٣، ۴١مخ.

[٧٦٥]رحيم، رحيم شاه. سيد حسين، مقاله مشموله مياشتينۍ پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ١٨، شماره: ٨، (ستمبر ١٩٨٦)، ٢٣مخ.

[٧٦٦]همدغه اثر ، ٢٣مخ.

[٧٦٧]همدغه اثر ، ٢۴مخ.

[٧٦٨]Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ٣١ (No. ٣, ١٨٦٢), p. ٢٦٣.

[٧٦٩] د مدين زوړ نوم چوړړۍ و، کوم چې د سوات د رياست حکمران، مياګل عبدالودود د چوړړۍ پر ځای په مدين بدل کړ.

[٧٧٠]Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ٣١ (No. ٣, ١٨٦٢), p. ٢٦٣.

[٧٧١] حسين. ديوان حسين، مرتّبه همېش خليل، پېښور، پبلک ارټ پريس، ١٩٥٨، ۵٨مخ.

[٧٧٢]رحيم، رحيم شاه. سېد حسين، مقاله مشموله مياشتينۍ پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ١٨، شماره: ٨، (ستمبر ١٩٨٦)، ٢٣مخ.

[٧٧٣]ستهانوي، عبدالجبار شاه. کتاب العبرة، اسلام اباد، پورب اکادمي، ٢٠١١، ١٣٣ مخ.

[٧٧۴]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (غر مطبوع)، ۴٩مخ.

[٧٧۵]ستهانوي، عبدالجبار شاه. کتاب العبرة، اسلام اباد، پورب اکادمي، ٢٠١١، ٢٣٣مخ.

[٧٧٦] اثر، قاضي عبدالحليم. تېر هېر شاعران، پېښور، پښتو اکيډمي، ١٩٦٣، ٣۵مخ.

[٧٧٧] رحيم، رحيم شاه. سيد حسين، مقاله مشموله مياشتينۍ پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ١٨، شماره: ٨، (ستمبر ١٩٨٦)، ٢۴مخ.

[٧٧٨] رحيم، رحيم شاه. د کانجو ميا کريم داد، مشموله، مياشتيزه پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ١٠، شماره: ۴، (مئي ١٩٧٨)، ٢٢مخ.

[٧٧٩]حبيبي، عبدالحی. پښتانه شعراء (اوله حصه)، پېښور، يونيورسټي بک ايجنسي، ۵٨ مخ.

[٧٨٠]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپ)، ۴مخ.

[٧٨١] رحيم، رحيم شاه. د کانجو ميا کريم داد، مشموله، مياشتيزه پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ١٠، شماره: ۴، (مئي ١٩٧٨)، ٢٢مخ.

[٧٨٢]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپ)، ۴مخ.

[٧٨٣]همدغه اثر۴،۵ مخونه.

[٧٨۴]درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سيد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٦۵مخ.

[٧٨۵] همدغه اثر، ١۵٨ مخ.

[٧٨٦]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپه)، ۵ مخ.

[٧٨٧]درويزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سېّد تقويم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ١٦٢مخ.

[٧٨٨]کاکاخېل، سيد محمدتقويم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف : اخون درويزه، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، ١٩٦٩/ ١٩٨٧، عد مخ.

[۷۸۹]درویزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سیّد تقویم الحق کاکا خېل، پېښور، پښتو اکېډمي، ۱٦٦مخ.
[۷۹۰]رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران (څلورم ټوک)،مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۷، (اگست ۱۹۸۰)، ۳۹مخ.
[۷۹۱]رحیم، رحیم شاه. غټه خزانه (ناچاپ)، ۵ مخ.
[۷۹۲]رحیم، رحیم شاه. د کانجو میا کریم داد، مشموله، میاشتیزه پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، ۲۳مخ.
[۷۹۳]همدغه اثر، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، ۲۵مخ.
[۷۹٤]رحیم، رحیم شاه، غټه خزانه (ناچاپ)، ٦مخ.
[۷۹۵]رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران (پینځم ټوک)، مشموله میاشتینۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد:۱۲، شماره: ۹ (اکتوبر ۱۹۸۰)، ۴۴مخ.
[۷۹٦]رحیم، رحیم شاه. د کانجو میا کریم داد، مشموله، میاشتیزه پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، ۲٦مخ.
[۷۹۷]کاکاخېل، سید محمدتقویم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف : اخون درویزه، پښتو اکېډمي، عب مخ.
[۷۹۸]همدغه اثر، عج مخ.
[۷۹۹] رحیم، رحیم شاه. د کانجو میا کریم داد، مشموله، میاشتیزه پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، ۲٦مخ.
[۸۰۰]کاکاخېل، سید محمدتقویم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف : اخون درویزه، پښتو اکېډمي، عب مخ.
[۸۰۱]حبیبي، عبدالحی. پښتانه شعراء (اوله حصه)، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۵۸ مخ.
[۸۰۲]رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران (څلورم ټوک)،مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۷، (اگست ۱۹۸۰)، ۴۰مخ.
[۸۰۳]درویزه،اخون. مخزن سره د مقدّمې د سیّد تقویم الحق کاکا خېل، پښتو اکېډمي پېښور، ۱۹۴ مخ.
[۸۰٤]حبیبي، عبدالحی. پښتانه شعراء (اوله حصه)، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۵۸ مخ.
[۸۰۵]رحیم، رحیم شاه. غټه خزانه (ناچاپ)، ۵، ٦ مخونه.
[۸۰٦]همدغه اثر، ٦ مخ.
[۸۰۷]رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران (څلورم ټوک)،مشموله، میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۷، (اگست ۱۹۸۰)، ۳۹مخ.
[۸۰۸]رحیم، رحیم شاه. د کانجو میا کریم داد، مشموله، میاشتیزه پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۰، شماره: ۴، (مئي ۱۹۷۸)، ۲۴،۲۵ مخونه.
[۸۰۹]حبیبي، عبدالحی. پښتانه شعراء (اوله حصه)، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۵۸ مخ.
[۸۱۰]کاکاخېل، سید محمد تقویم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف : اخون درویزه، پېښور، پښتو اکېډمي، عب مخ.
[۸۱۱]رحیم، رحیم شاه، غټه خزانه (ناچاپ)، ٦ مخ.
[۸۱۲] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸٦۲), p.۲۵۱.

[۸۱۳]ستهانوي، سېد عبدالجبّار شاه، کتاب العبرة، اسلام اباد، پورب اکادمي، ۲۰۱۱، ص: ۲۳۳

[۸۱۴] Raverty, H.G., An Account of Upper and Lower Suwat, and the Kohistan to the source of the Suwat River with an account of the tribes inhabiting those valleys, Journal of the Asiatic Society (Calcutta) Vol. ۳۱ (No. ۳, ۱۸۶۲), p.۲۵۱,۲۵۲

[۸۱۵]میایداد، اخون، داخون میایداد دیوان، سمونه او څېړنه بدرالحکیم حکیمزی، لاهور، اداره نشرالمعارف، ۱۰۵مخ.

[۸۱۶] دیوان حافظ الپورۍ سره د شرحې د ابو حسېن چندا خوري، مینگوره، اسلام بک سټور، ۳۱مخ.

[۸۱۷]رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران، څلورم ټوک، مشموله میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي، جلد: ۱۲، شماره: ۷ (اګست: ۱۹۸۰)، ۴۰مخ)

[۸۱۸]رحیم، رحیم شاه. غټه خزانه، ۵۰ مخ.

[۸۱۹]رحیم، رحیم شاه. غټه خزانه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بک سیلرز، ۲۰۱۵،۲ ٦ مخ.

[۸۲۰] افضل رضا، پټ ستوري، ۴۹۲مخ.

[۸۲۱]رحیم شاه. د سوات ورک شاعران دویم ټوک، میاشتنۍ پښتو، جلد: ۱۲، شماره: ۵، (جون ۱۹۸۰)، ۳۰مخ)

[۸۲۲]Bellew, H.W., A General Report on the Yusufzais, Lahore, Sang-e-Meel Publications, ۲۰۰۱, pp.۲۲۷،۲۲۸

# پينځم باب

## په رياستي دور کې د سوات پښتو ادب اوثقافت

## (۱۹۱۵-۱۹٦۹ )

### د ټولنيز (سماجي) بدلون دور

کله چې سيد عبدالجبار شاه په ۱۹۱۵م کې په باقاعده توګه د رياست سوات بادشاه شو، نو له دې سره د سوات د رياست بنياد په رسمي توګه کېښودل شو او بيا مياګل عبدالودود په ۱۹۱۷م کې د سوات بادشاه غوره کړی شو او په ۱۹۴۹م کې هغه خپل ځوی مياګل جهانزېب ته اقتدار وسپاره او دغه رنګ تر ۱۹٦۹م پورې هغه د سوات والي پاتې شو، نو په دې دور کې د سوات په ټولنيز ژوند کې ډېر بدلون په نظر راځي. د سوات په تاريخ او په تېره د پښتو ژبې او ادب په تاريخ کې دا دور ډېرې ځانګړتياوې لري. د مياګل عبدالودود او مياګل جهانزېب په دور کې چې په سوات کې کوم بدلون راغلی> د هغې په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې ليکي:

Both of them slowly and gradually altered the centuries old social organization and introduced drastic changes. Although autocrat, they evolved government machinenry and mechanism that not only controlled but also served the people; provided quick disposal of the disputes and cases; standard civic amenities like education, health care and communication system; and ensured peace, security and order. These changed the outlook behaviour and temperament of the people, and obliterated the tribal ingredients of the society.[۱]

ترجمه: دغو دواړو له پېړو راهيسي زوړ ټولنيز تنظيم په قلاره قلاره بدل کړ او غټ بدلونونه يې متعارف کړل. اګر چې دوی مطلق العنان وو خو بيا هم دوی حکومتي مشينري او طريقه کار وضع کړل، چې له هغې سره نه صرف خلک قابو شول، بلکې د خلکو خدمت هم وشو. د تنازعو فيصلې به زر تر سره کېدلې، خلکو ته بنيادي ټولنيز حقونه لکه د تعليم، صحت او د مواصلاتو نظام ورکړل شو، د خلکو امن و امان او تحفظ يقيني کړی شو، دې خبرو د خلکو مزاج او رويه بدله کړه او د ټولنې قبايلي عناصر ختم شول.

د پښتو دور کې به ډېرې جګړې کېدې، خو د رياست په دور کې دې حالاتو کې کافي بدلون راغی. دا بدلون د سوات د حکمرانانو په وجه راغی چا چې د سوات ټولنيز تنظيم او د خلکو رويې بدلې کړې.[۲] د پښتو د دور او د رياستي دور موازنه چې کله وکړل شي، نو پته لګي چې د رياستي دور له شروع کېدو سره د يوسفزو په وطن يو نوی دور شروع شو، د پښتو دور زاړه رواجونه، ډلې پرې او وېشونه ختم شول. له رياستي دور نه وړاندې واريز يا ګرځنده وېش و، له باقاعده حکومت سره توري وران وېش جوړ شو. د حکومت او د توري وران وېش فايدې دا وې چې خلک په ځای شول او له کډو ګرځولو نه خلاص شول. د حکومت د وېرې له وجې نه قتلونه او شوکې ډاکې هم ختمې يا کمې شوې او امن و امان شو، اګر چې دغه وخت څه ليکلی قانون نه و، خو بيا هم څه نيمچه غوندې شريعت و، قاضيان ناست وو په هر تحصيل کې يې تحصيلداران، حاکمان کېنول. د يوې انې په درخواست به په دوه ورځو کې فيصلې کېدلې، هائي کورټ بادشاه يا والي صيب پخپله و. په تش درخواست به اپيل وشو او هغوی به زر فيصله وکړه. ټولې نه، خو زياتره به په انصاف فيصلې کېدلې، ټولې فيصلې، ان د ښځو فيصلې به هم حکمرانانو په خپل طبعيته کولې، خو دغه به زياتره د پښتو له رواج او شريعت سره برابرې وې.په يو وخت درې قسمه قانون چلېده، د پښتو جرګه او رواج و، شريعت او قاضيان وو، بلخوا حکمران او د هغه خپل طبعيت او مرضي وه.[۳]

## د انګرېزانو حکومت او سوات

په ۱۹۱۵م کې د رياست سوات له بنياد ايښودو سره عبدالجبار شاه د رياست بادشاه شو او په ۱۹۱۷م کې مياګل عبدالودود باچا شو، خو رياست په صحيح معنو کې ترقي له هغه وخت نه شروع کړه، له کله نه چې دا رياست انګرېزانو تسليم کړ. کله چې د سنډاکی ملا د انګرېز حکومت خلاف د جهاد اعلان وکړ، نو د هغه وخت د سرحد انګرېز حکومت پر سوات تجارتي څيزونه بند کړل. په دې باره کې تاج محمد زېب سر داسې وايي:

د سرحـــــد حکومـــــت بنـــــد د ســـــوات اولـــــس کـــــه
دې اولـــس تـــه یـــی غـــم پـــېښ هـــم یـــو پـــه لـــس کـــه
مالگـــــه ټـــــوکی او هـــــم نـــــور تمـــــام اســـــباب
ســـوات تـــه بنـــد هـــم هغـــه دم شـــو پـــه شـــتاب[٤]

د ۱۹۲٦م کال د می پر ۳مه نېټه چیف کمشنر سیدو شریف ته راغی او یو دربار یې ولگولو او میاگل عبدالودود یې په باقاعده توگه د سوات والي ومنلو.[٥]

## خدايي خدمتگار تحریک او سوات

ستر قام پرست لاربنود عبدالغفار خان چې په باچا خان مشهور دی، هغه د پښتنو د اصلاح لپاره د انجمن اصلاح افاغنه[٦] په نوم یو تنظیم جوړ کړ. د انجمن اصلاح الافاغنه په باره کې خلیق صیب داسې لیکي:

اتمـــــانزو کـــــې چـــــې جـــــوړ شـــــوی انجمـــــن وه
او مقصـــــد یـــــې لـــــوی خـــــدمت د خپـــــل وطـــــن وه
هغـــــه هـــــم وه پـــــه دې کـــــال[٢٠]کـــــې بنـــــا شـــــوی
د انگرېـــــــز د پـــــــاره دا وه بـــــــلا شـــــــوی
دا مرکـــــــــز وه د وطـــــــــن د حریـــــــــت
د پښـــــتون قـــــام ده بـــــدل کـــــړو ذهنیـــــت
پـــــه صـــــوبه کـــــې ډېـــــر د دې مرکـــــز ښـــــاخونه
لکـــــه جـــــال وو خـــــواره شـــــوي پـــــه ســـــوونو
وه بـــــانی د دې تحریـــــک فخـــــر افغـــــان
ورسره ملگـــــري نـــــور وو مخلصـــــان
احمـــــد شـــــاه، عبداللـــــه شـــــاه، عبـــــدالاکبر
ورسره محمـــــد اکـــــبر، اکـــــرم، جعفـــــر[٧]

[٢٠] خلیق صیب چې په ۱۹۲۱م کال کې د عدم تعاون د سر خط لاندې د کومو واقعاتو ذکر کوي هم په هغه واقعاتو کې د انجمن اصلاح افاغنه ذکر کوي.

او بیا وروسته یې په ۱۹۲۹ کال کې[۸] د خدايي خدمتګار په نوم یو تحریک شروع کړ. له دې تحریک سره په پښتو ادب کې نوي رجحانات پیدا شول او پښتو ادب په دې دور کې ډېره وده هم وکړه. کله چې مونږ د سوات د ریاستي دور تاریخ ګورو، نو پته لګي چې په ریاستي دور کې په سوات کې دې تحریک ته په ښه سترګه نه دي کتل شوي، بلکې د دې تحریک باني هم په سرکاري تاریخ کې په ښو لفظونو نه دی یاد شوی، لکه زېب سر چې وایي:

د مـــــیر جعفـــــر او د صـــــادق قیصــــې لاهېــــرې نــــه دي
خپـــــل بـــــدانجام تــــه فکــــر ولــــې دا غــــدار نــــه لــــري
چــــې د نفــــاق تخــــم کــــري د اتفــــاق پــــه مزکــــه
طمــــع د خــــیر دې خــــان صــــاحب عبــــدالغفار نــــه لــــري
زرده چــــــې اومــــــومي شکســــــت د هندوســــــتان فوځونــــــه
هنــــــدو طاقــــــت د پښــــــتنو د یــــــو ګزارنــــــه لــــــري[۹]

د باچا خان تحریک ته هم د سوات ریاستي حکمرانانو په ښه نظر نه دي کتلي او په سوات کې په یو دکان کې د "پښتون" رسالې په موندلو هغه دکاندار[۲۱] مړ کړی هم وه[۱۰] د "پښتون" رسالې په باره کې خلیق صیب داسې لیکي:

رســــــــاله چــــــــې میاشــــــــتنۍ وه د پښــــــــتون
د دې کــــــال[۲۲] نــــــه شــــــوه جــــــاري پــــــه ښــــــه مضــــــمون
چلــــــــــــونکی د دې خــــــــــــان عبــــــــــــدالغفار وه
او خــــــــادم صــــــــاحب د دې دویــــــــم واکــــــــدار وه
دې خــــــدمت د وطــــــن اوکــــــړو پــــــه ښــــــه شــــــان
هېــــــر بــــــه نــــــه کــــــړي پښــــــتانه دغــــــه احســــــان[۱۱]

[۲۱] د دې دکاندار نوم رېفول استاذ و. د ده په سوات کې د کتابونو اولنز دکان و. دز د ماسټر مظفر حسڅن پلار و، ماسټر مظفر حسېن د ریاست سوات په دور کې یو کتاب هم لیکلی دی.

[۲۲]خلیق صیب چې د کال ۱۹۲۸ د سر خط لاندې د کومو واقعاتو ذکر کوي په هغې کې د پښتون رسالې ذکر هم کوي.

د هغه وخت حکومت "پښتون" رساله تقسيمېدو ته هم نه پرېښوده، په خصوصي توګه د ډاکخانو مشرانو ته دا ويل شوي وو چې په ډاکخانه به دا رساله نه تقسيموئ او کله چې د حکومت له دې راز نه باچا خان خبر شو نو هغه ګاندهي ته وويل او هغه په خپل اخبار کې په دې خبره ليکل وکړل، نو بيا حکومت دا پابندي ختمه کړه. [۱۲] د انجمن اصلاح افاغنه او خدايي خدمتګار تحريک او د سوات د رياست د حکمرانانو په پاليسيانو کې له نورو خبرو علاوه يوه شريکه خوبي دا وه چې دواړو د پښتو ژبې د ترقۍ لپاره کار کولو او همدغه وجه ده چې پښتو د سوات د دربار ژبه ګرځېدلې وه، په سوات کې به د پښتو کتابونه چاپ کېدل، د دې کتابونو په باره کې پوهاند صديق الله رشتين صيب د ميا ګل عبدالودود د خولې بيان کې ليکي چې:

> مونږ د سوات تاريخ او فتاوي ودوديه اول په اردو ليکلي وو خو خان عبدالغفار خان چې دلته راغلی و هغه ما ته وويل چې ښايي دغه کتابونه په پښتو نشر شي، نو بيا ما په پښتو هم خپاره کړل. وايي چې د سوات تاريخ اول تاج محمد زېب سر په اردو برابر کړی و بيا سيد عبدالغفور قاسمي په پښتو واړوه او هغه د مخه کتابونه هم ده په پښتو کړي دي.[۱۳]

د سوات په تاريخونو کې چې کله هم د پښتو ژبې د دفتري کېدلو يا په سوات کې د پښتو کتابونو د چاپ خبره راغلې، نو د باچا خان څه ذکر پکې نشته. بله خبره دا ده چې د سوات په اړه وړومبی تاريخ سيد عبدالغفور قاسمي په پښتو کې ليکلی، چې په ۱۹۳۹م کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې دا خبره نشته چې د دې نه اول تاج محمد خان زېب سر په اردو کې هم تاريخ ليکلی دی، البته له دې نه مخکې په ۱۹۳٦م کې سيد عبدالغفور قاسمي د "هديه ودوديه" په نوم يو کتاب د سوات د تاريخ په باره کې ليکلی دی، د هغه کتاب په باره کې داسې ليکي:

> ما په دې وجوهاتو يو کتاب "هديه ودوديه" په اردو ژبه کې تاليف کړی دی، ليکن د عامو خاصو پښتنو وروڼو د فايدې او د معلوموتو د پاره "تاريخ سوات" او د هغوی د اميرانو مختصر حالات متعلق مې دا کتاب په پښتو ژبه کې وليکه.

د عبدالغفور قاسمي دا کتاب" تاريخ سوات" چې په ۱۹۳۹م کې چاپ شوی دی، په دې کې ځای پر ځای له تاج محمد خان زېب سر منظوم تاريخي واقعات هم درج دي. له دې نه علاوه تاج محمد خان زېب سر په دوه جلدو کې د سوات منظوم تاريخ په پښتو کې ليکلی، چې په وړومبي جلد ۱۳٦۰هجري ليکل شوي او په دويم جلد ۱۳٦۱ هجري

بمطابق ۱۹۴۱ عیسوي لیکل شوي، خو په دې کتاب کې هم یو ځای دا نشته چې دا کتاب اول په اردو کې و، نو له دې نه پته لګي چې د دې کتابونو په پښتو کې په لیکلو کې د باچا خان څه لاس نه و او بله خبره دا ده چې که د باچا خان په خوله میاګل عبدالودود د تاج محمد خان زېب سر د اردو لیکلی تاریخ په پښتو کې ترجمه کولو، نو بیا د زېب سر په لیکل شوي تاریخ کې ولې باچا خان ته په ښه نظر نه دي کتل شوي.

له دې خبرو نه پته لګي د سوات په ریاست کې چې په هغه دور کې کوم ادب مخې ته راغلی دی په هغې کې د خدایي خدمتګار تحریک اثرات یا ذکر د نشت برابر دي. له دې حقیقت نه انکار نه شي کېدی، چې د دومره لوی تحریک اثر نه سوات څنګه محفوظ پاتې شو، خو تر کومه پورې چې د مطبوعه ادب تعلق دی، نو د دې تحریک ذکر پکې لکه چې وړاندې وویل شول د نشت برابر دی، کېدی شي ځینو خلکو د دې تحریک د اثر لاندې څه داسې لیکل کړي وي چې هغه د سوات د ریاست له پالیسیانو سره د سمون نه خوړلو په وجه په هغه وخت کې نه وي چاپ شوي، خو مونږ صرف د عبداللطیف شاهین په شاعرۍ کې د باچاخان (عبدالغفار خان) ستاینه وینو، لکه چې وایي:

پښـــتون پخـــوا خـــو داســـې نـــه وه خدایـــه څـــه پـــرې اوشـــو
پـــــه ســــــپینه ږیـــــره ننګیـــــالي فخـــــر افغـــــان اوژړل
بـــې پتـــه تـــا خـــو هـــډو پـــت د پښـــتو او نـــه پـــالو
پـــــه دې لـــــوی غـــــم د پښـــــتونخوا بلوچســـــتان اوژړل[۱۴]

او دارنګې په خپل بل یو نظم "سرې نخښې" کې د فخر افغان یادونه داسې کوي:

فخــــــر افغــــــان پـــــــورې خنـــــــدلي دي تـــــــا
دغــــــه دې ډېـــــــر د ســــــپکو کــــــار کــــــړی دی
پـــــه کـــــارنومو بانـــــدې قایـــــل یـــــې نـــــه شـــــوې
د حقیقـــــــت نـــــــه دې انکـــــــار کـــــــړی دی
دښـــــــمن قایـــــــل دی پـــــــه غـــــــیرت د هغـــــــه
د ده پـــــه تـــــوره یـــــې اقـــــرار کـــــړی دی[۱۵]

او بیا وړاندې داسې وایي:

د دې وطـــــــــن د جوړېـــــــــدو د پـــــــــاره
زمـــــــونږ پلرونـــــــو دي وهـــــــل خـــــــوړلي

تاســــــو خـــــو ناســـــــت وئ پـــــه بنګلـــــو دننــــــه
مـــــــونږه جبلونـــــــه یـــــو پـــــه ســــــل خـــــوړلي
تاســــــو پـــــه کومــــــه خولـــــه خـــــــبرې کـــــوئ
تاســــــو کــــــوم غشيــــــ پـــــه ګوګــــــل خــــــوړلي[16]

د سوات د ریاست په دور کې چې کوم کتابونه چاپ شوي، په هغو کې د اکثرو کتابونو ترون یا خو د والي سوات له نوم سره شوی او یا پکې د والي مدحې په څه نه څه قسم موجود دي، خو د عبداللطیف شاهین "شغلې" یو داسې کتاب دی چې په ریاستي دور کې چاپ شوی، خو نه یې ترون د والي په نوم شوی او نه پکې د والي صفت شوی دی. په دې کتاب کې د شاهین صیب له پښتون نیشنلزم نه علاوه د ترقي پسند ادب نمونې په نظر راځي او د ځپلي ولس اواز پکې موجود دی. د خانۍ او د خانیزم خلاف خبرې پکې شوي دي، دا هغه موضوعات دي چې د ریاستي دور په ادب کې کم مېلاویږي.

لکه چې وایي:

په "تش تور خان " نومې نظم کې په خان داسې طنز کوي:

چـــــې ســـــودا د کاســـــیرې کـــــولی نـــــه شـــــم
تـــش تـــور خـــان کـــه پـــه بـــازار راغلـــم نـــو څـــه[17]

او په بل ځای کې د خان د جبر او غصب یادونه داسې کوي:

تنــګ شــوم پــه دنیــا کــې دا بــه پــاتې کــړم ســتا خــان تــه زه
نیــت مــې دی نــن کــړی چــې درځمــه ســتا جهــان تــه زه[18]

او غریبان چې د مالدارو د کومو ظلمونو ښکار دي هغوی ته داسې اشاره کوي:

وینــــــې څښــــــي زمــــــا پــــــه غوښــــــو کــــــوي لــــــوبې
زه غریــــــــــب دي د مالــــــــــدارو کرونــــــــــده کــــــــــړم[19]

او د دهقان د محنت او خوارۍ اعتراف په خپل یو نظم "دهقان" کې په دې لفظونو کوي:

آفـــرین ســـتا پـــه همـــت شـــه شاباشـــی ســـتا پـــه مړانـــه
د خپـــل قـــام خیـــال درسره دی لـــه تـــا زار شـــمه دهقانـــه[20]

دا او داسې ګڼ شمېر نور ترقي پسندانه موضوعات د شاهین صیب د شاعرۍ خاصه ده او دا قسمه خیالات او موضوعات مونږ د خدایي خدمتګار تحریک د اثر لاندې په تخلیق شوي ادب کې وینو.

دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي چې د پاکستان تر جوړېدو پورې، یعنې چې کله پورې د سوات د ریاست د حکمرانانو له برتانوي حکومت سره دا معاهده وه چې څوک هم د انګرېز خلاف وي نو د سوات په خاوره به ورته اجازت نه ورکول کېږي، نو خدایي خدمتګار خو د انګرېزانو خلاف وو نو ځکه د سوات له حکمرانانو سره یې تعلق ښه نه دی پاتې شوی، البته چې کله برتانوي تسلط ختم شو، نو بیا باچا خان او غني خان سوات ته راغلي، چې کله د ون یونټ خبره کېدله او په دغه سلسله کې باچا خان سوات ته راتلو، نو د مغربي پاکستان ګورنر امیر محمد خان په هغه وخت کې د سوات والي ته دا ویلي وو چې باچا خان چې سوات ته په دې سلسله کې درشي نو تاسو یې خیال وساتئ او ملګرتیا یې وکړئ.[23] غني خان د سوات د باچا میاګل عبدالودود د سوانح لیکلو اراده هم کړې وه او په دې سلسله کې یې د هغه انټرویوګانې هم کړې وې.[24] له دې نه پته ولګېده چې د پاکستان له جوړېدو نه مخکې د خدایي خدمتګار او د ریاست سوات د حکمرانانو تعلق ښه نه و او له ریاستي دور نه وروسته یې تعلق برابر و. دغه وجه هم کېدی شي چې د عبداللطیف شاهین په کتاب کې مونږ د باچا خان ستاینه وینو او د تاج محمد خان زېب سر په کتاب کې یې مونږ په بدو لفظونو یاد وینو.

## سوات او متعلقات

میاګل عبدالودود د وخت په تېریدو سره د سوات ګېر چاپېر علاقې هم قبضه او په سوات کې یې شاملې کړې، نو له دې وجې نه هغه په سرکاري کاغذونو کې د ریاست نوم "ریاست سوات او متعلقات" ولیکه. دې ته یوسفزي ریاست هم ویل شوی دی، خو د سوات

[23] د باچا خان د ون یونټ په سلسله کې سوات ته د راتګ دا خبره ما ته ډاکټر سلطا روم په جهانزېب کالج کې د ۲۰۱۶م کال د دسمبر پر ۲۰ مه نېټه وکړه او دا یې وویل چې دا معلومات ماته د باچا صیب سوانح لیکونکي محمد اصف خان راکړي وو.

[24] دا خبره هم ډاکټر سلطان روم د اصف خان له خولې وکړه چې غني خان ما پورې خندا کوله چې زه درباري سوانح نګار یم، نو چې کله یې پخپله د باچا صیب د سوانح لپاره انټرویوګانې شروع کړې، نو د هغه وخت د جمعیت علما پاکستان (نوراني ګروپ) یو لیډر عبدالستار نیازي ورته پېغور ورکړ، چې په نورو پورې چې تا په کوم کار خندا کوله هغه کار دې پخپله شروع کړ، نو بیا هغه د دغه سوانح لیکلو نه قلار شو.

او متعلقات نوم د سوات په سرکاري او غير سرکاري کاغذونو او کتابونو کې ډېر په نظر راځي دلته يې يو څو مثالونه وړاندې کوو:

پـــــه تفصـــــيل دې شي ښـــــکاره ټـــــول اصـــــلاحات
دا خـــــدمت دی هـــــم د ســـــوات متعلقـــــات[۲۱]

نـــــه د ســـــوات متعلقـــــات د قـــــوم محـــــزون
څـــــه صـــــحيح حـــــالات مونـــــدې شي نـــــن پـــــرون[۲۲]

د زېب سر په کتاب نوی سوات او شاه جهانزېب" جلد اول کې هم سوات او متعلقات ذکر شوي[۲۳] او د دې کتاب په دويم جلد کې يې ذکر راغلی دی[۲۴] او په افغاني ديوان زېب سر کې يې د سوات متعلقات په نوم يو پوره نظم هم شامل دی.[۲۵]

## پښتو ژبه،ادب او رياست سوات

سوات هغه واحد رياست و، چرته چې پښتو سرکاري ژبه وه. د رياست د وخت يو ليکوال زېب سر ليکي چې د رياست دفتري ژ به خپله مورنۍ پښتو ده، تمام دفتري او معاملاتي احکام په پښتو ژبه ليکلی شي، د مقدمو اندراج، عريضې، سټامپ او تمسکات وغيره ټول په پښتو کې ليکل کېږي. سيد عبدالجبار شاه هم کوښښ کړی و، چې د هغو شاعرانو او ليکوالانو مالي مرسته وکړي کومو چې د هغه تعريفونه کول. په دې سلسله کې د شموزو محمود نومې يو شاعر د هغه قصيده ليکلې وه نو هغه ورته په شعر پسې د دوه څټې غلې برات مقرر کړی وه.[۲۶]شاه عبدالودود په خپل دوران کې په رياستي دفترونو کې د فارسي ژبې پر ځای پښتو ته رواج ورکړ او نور يې هم د پښتو ژبې د ترقۍلپاره لارې چارې ولټولې. د تاريخ هندوستان او انوار سهيلي په پښتو ژبه کې ترجمې هم د ده په حکم وليکل شوې او د ده په هداياتو فتاويٰ ودوديه هم وليکل شوه، چې يو جلد يې په معاملاتو او بل په عباداتو مشتمل دی. د سوات متعلقات تاريخونه په نظم او نثر کې ليکل شوي دي. شاه جهان زېب د پښتو ژبې ترقۍ طرف ته په خاص طور متوجه و او د قومي ليکوالو او اديبانو قدر او عزت به يې کولو، د خپلې مورنۍ ژبې د دفتري کېدو فايدې دا شوې چې په عدالتونو کې د وکيلانو د پېش کېدو ضرورت نه و، هر چا به خپل مافي الضمير ظاهر ويلی شو او خپله مقدمه به يې چلولی شوه او همدا وجه وه چې په سوات کې به مقدمو څه

پیچیده صورت نه اختیارولو.[۲۷] تاج محمد خان زېب سر دا حالات په نظم کې داسې بیانوي:

اول ژبـــــــه د فارســـــــــی هـــــــــم دفـــــــتري وه
عـــــــامو خلقـــــــو لـــــه هـــــم دا لویـــــه خـــــواري وه
اوس پښـــــــتو دفـــــــتري ژبـــــــه کـــــــړه ســــــلطان
شـــــــه د عـــــــامو خلقـــــــو دا مشـــــــکل اســـــــان
پـــــه پښـــــتو تـــــاریخ تصـــــنیف هـــــم شـــــه د ســـــوات
شـــــه دې قـــــام وتـــــه معلـــــوم هـــــم خپـــــل حـــــالات

د پښـــــــــــــــــتو د ادب دور د کـــــــــــــــــمال دی
چـــــې ســـــلطان د پښـــــتنو دا نېـــــک خصـــــال دی[۲۸]

میاګل عبدالودود په خپل سوانح کې د مورنۍ ژبې پښتو په باره کې وایي:

له پښتو ژبې سره زما د دلچسپۍ مطلب دا نه دی چې زه ګني د نورو ژبو د اهمیت او ترقۍ نه انکار کوم خو صرف دومره خبره ده چې پښتو زمونږ خپله مورنۍ او علاقائي ژبه ده نو بیا د پښتو سره مینه یو قدرتي امر دی. زه چې د سوات حکمران شوم نو بیا څه موده پس زه په دې نتیجې ورسېدم چې هرې علاقې او هر قام د پاره خپله ژبه خپلول ښه وي، خپلې ژبي او خپل تهذیب ته په سپک نظر کتل د پرېوتي غلام ذهن کار دی او له خپل قومي وقار او قومي غیرت سره دشمني کول دي نو ما د خپل ریاست د فتري او عدالتي ژبه پښتو مقرره کړه، سرکاري فارمونه، اسټامونه، رجسټرونه، کتابونه دا هر څه مې پښتو کې چاپ کړل. دې کې شک نشته چې د پښتو ژبي خپلولو کې مونږ ته ډېرې اسانۍ او ډېرې فائدې حاصلې شوې. د دې نه علاوه ما څه کتابونه هم پښتو کې چاپ کړل، هغې زمانه کې د فیرنګي بادشاهي وه نو د پښتو خوارې تپوس چا کوه، ما زړه کې سوچ وکړ چې د پښتو نه د تعلیم یافته پښتنو د بېزارۍ وجه هم دا ده چې یو خو پښتو د سرکاري سر پرستۍ نه محرومه ده بله دا چې د پښتو کتابونه او لټرېچر په داسې بدرنګه طریقه چاپ کېږي چه هېڅ دلکشي نه لري. هغې زمانې کې به اکثر هندوانو او سیکهانو دکاندارانو د تجارت دپاره په ډېر ناکاره کاغذ د پښتو کتابونه چاپ کول نو ماضروري اوګڼله چې پښتو کې یو څو ښکلي او معیاري کتابونه چاپ کړم او

بیایې په خلقو مفت وېش کړم چې پښتو سره د خلقو د لچسي پیدا شي او ذهني فائده هم ترې حاصله شي.[۲۹]

بیا په دې سلسله کې چې کوم کتابونه چاپ شوي، په هغو کې قابل ذکر کتابونه دا لاندې دي:

## انوار سهیلي

دا یو مشهور کتاب دی چې د دې پښتو ترجمه د باچا صیب په وینا وکړل شوه، بیا په ولایتي کاغذ په ښکلي خط او خایسته جلد بندۍ سره شایع شو. ددې کتاب په زرگونو جلدونه چاپ شوي وو.

## تاریخ فرشته

دا د هندوستان مشهور تاریخ دی، دا هم په دوو ضخیمو جلدونو کې همدغسې په اعلٰی طریقه د زرگونو په تعداد په پښتو کې ترجمه شوی او چاپ شوی دی.

## فتاویٰ ودودیه

د ریاست سوات له طرف نه په پښتو ژبه کې دا ډېر مهم کتاب پېش شوی دی. دا کتاب ډېر کار امد مفید او مقبول ثابت شوی دی، اوله حصه کې د اسلامي فقهې احکامات دي، دویمه حصه بېې له قضا سره تعلق لري. دا کتابونه هم دغسې په اعلٰي طریقه چاپ شوي دي. دا کتاب هم په هغه کتابونو کې شامل دی کوم چې به مفت وېشل کېدل، فتاوه ودودیه حصه اول جلد دویم محمد اصف خان له پښتو نه اردو ته په ۱۹۶۰م کال کې ترجمه کړې ده.

## میزان الصرف

د طالبانو لپاره د گردانونو یو کتاب دی، دا هم د ریاست سوات په دور کې چاپ شوی او په طالبانو به مفت تقسیمېده.

د دې کتابونو د چاپ او تقسیم په باره کې میاگل عبدالودود په خپل سوانح کې لیکلي، چې دا ټول کتابونه به له چاپ کولو نه وروسته خلکو ته مفت ورکول کېدل. هغه وړاندې وایي چې د تقسیم دا سلسله لا تر اوسه جاري ده. فتاویٰ پکې دوه زره جلدونه دویم

ځل چاپ شو. اکثر د حکمرانۍ مصروفیت داسې وي چې سړی پکې هر وخت ذهني مصروف وي بله دا چې ځینې نور وجوهات هم داسې وي چې سړی مجبور شي هغه څه چې یې زړه غواړي هغه هم نه شي کولی. بیا د وخت او د عمر تقاضې داسې هم پېښې شي چې له انسان سره د اختیاره مجبور غوندې پاتي شي، ګنې له کتابونو سره زما ډېره مینه شته او زه غواړم چې د علم ادب او د خپلې ژبې زیات نه زیات خدمت مې کړی وی او اومې کړی، خو لکه څنګه چې ما وویل اکثر داسې هم وي، زما لپاره اوس دا احساس هم د شکر او د خوشحالۍ باعث دی چې د پښتو ژبې له خدمت نه بالکل محروم نه یم پاتې، د خپلې مورنۍ او علاقائي ژبې ترویج او ترقۍ کې د خدمت څه حصه خو مې اخستې ده.[۳۰] مولانا عبدالقادر په خپل یو خط کې والي سوات ته لیکلي، چې تاسو د اوس نه د قامي تعلیمي کمېشن د هغه رپورټ په سفارش د ریاست سوات په حدودو کې دننه عملاً اقدام وکړئ په کوم کې چې کمېشن دا ویلي چې تر پینځم جماعت دې ذریعه تعلیم په هره علاقه کې په مورنۍ ژبه کې وي، د دې لپاره دا ضروري ده چې تر پینځمه پورې دې د هر مضمون ژبه د اردو نه پښتو شي.[۳۱] په دغه خط کې مولانا عبدالقادر وړاندې لیکي چې دا افتخار الله تعالٰی د سوات د ریاست د چلونکي خاندان په برخه کې لیکلی و، چې پښتو په حیثیت د سرکاري ژبې هم په سوات کې ده. کابل چې ډېرې لوړې دعوې کوي او د پښتونستان ساندې وایي تش په توره دعوې کوي حقیقي امتیاز خو د ریاست سوات حق دی نه د کابلیانو.[۳۲]

د ریاست په شاعرانو کې د سیف الملوک صدیقي انداغ کتاب د پېښور یونیورسټۍ د پښتو په نصاب کې شامل وه.[۳۳] سوات کې پښتو ژبې ته د دفتري ژبې د حیثیت مېلاوېدو او په دې ژبه کې د تالیف او تصنیف په باره کې زېب سر وایي:

پــــــــه غـــــــــرض د اســــــــــانۍ د هرافغـــــــــان
کـــــــــړه پښـــــــتو دفــــــــتري ژبــــــــه دې ســـــــــلطان
د دې قــــــــــام د ترقــــــــــــۍ پـــــــــــه دې مطلــــــــــب
د پښـــــــــــتو ترقـــــــــــــي غـــــــــــواړي روز وشـــــــــــب
پـــــــه پښـــــــتو کــــــې سلســـــــله هـــــــم د تصـــــــنیف
اوس شروع شــــــــوه پــــــــه دوران د شــــــــاه شریــــــــف
پـــــــه دې ملـــــــک کـــــــې هـــــــم فقـــــط دې حکمــــــران

د پښـــــــتو تصـــــــنيف تـــــــاليف اوکـــــــړه فرمـــــــان
د پښـــــــتو يـــــــو مســـــــتند نـــــــه وه کتـــــــاب
چـــــــې قـــــــومي تـــــــاريخ هـــــــم وي هغـــــــه حســـــــاب[٣٤]

تاج محمد خان زېب سر د قامونو ترقي او مورنۍ ژبه لازم او ملزوم ګڼي. هغه وايي حقيقي ترقي هله حاصلېږي چې د روح طاقت، دزړه د استقامت د ذهن او خيال د پاکيزګۍ او د فکر د صفايۍ سامان موجود وي، قوم خود کفيل، ژبه خپله، روايات خپل، عادتونه خصلتونه او ملکي دستور خپل وي. هغه دا هم ويلي چې دا د شرم ځای دی او خپل ځان او خپلې ژبې ته سپک کتل دي چې يو پښتون له بل پښتون سره په پښتو کې خبرې نه کوي، که له دې نه مطلب خپله پوهه، علم او لويي ظاهرول وي نو دا نه لويي ده او نه پوهه، بلکې ځان سپکول، قوم ورکول او قومي ژبې ته د حقارت په نظر کتل دي.که ځوک ځان ته پښتون وايي نو خبرې دې په پښتو ژبه کوي، ليکل لوستل دې په پښتو کوي. زېب سر په پښتو ژبه په خط ليکلو هم تاکيد کوي، په دې اړه هغه وايي چې ځوک پښتون وورته خط ليکي نو په پردو ژبو کې د خط د ليکلو ضرورت څهٔ وي که د نورو قومونو ژبې په دي خيال زده کوي چې خپلې ژبې او ادب ته پرې ترقي ورکړي او د عام قوم د اصلاح او فايدې کار ترې واخلي نو دا خو يو مبارک او نېک کار دی، نه چې خپل قوم او خپلې ژبې ته پرې نقصان ورسوي او د نفرت او حقارت په نظر ورته وګوري. هغه وړاندې وايي چې انګرېزانو قريب قريب په نيمې دنيا حکومت حاصل کړی و، خو د هېڅ قوم ژبې او ادب ته يې په خپله ژبه او ادب اهميت ورنکړ، بلکې د نورو قومونو ادب او ژبې يې هم د خپلې ژبې غلام وساتلې او خپله  ژبه يې دېره عزت منده او اوچته کړه، چې د ټولې دنيا قومونه ورته محتاج دي او که ديو ملک انګرېزي سياسي اقتدار ختم شي خو بيا هم د انګرېزۍ ژبې اقتدار باقي وي او قوم ورته د کافي حده پوري حاجت مند وي. زه په دعوې سره دا خبره ويلی شم که د پښتو پوهان پښتو ژبه اوچته کړي او د پښتو وسيع ترويج او ترقۍته مخه کړي نو پښتون قوم به ورسره هم سم دم اوچت شي او که د غير قومونو د ژبو محتاجي ورکه شي نو بيا به پښتون له زماني د نوې فتحې، نوې خوشحالۍ او نوې ترقۍ نوی بشارت ورکړي. هغه د ټول قوم نه دا وعده اخلي او وايي چې راشئ مونږ دا وعده وکړو چې پښتو به لولو، پښتو به ليکو، د پښتو د ليکوالو به قدر او عزت کوو او له نورو ژبو سره به صرف دومره قدرې تلعق ساتو چې زمونږ د قوم د فائدې دپاره ورته څومره ضرورت وي يا ترې

د څه حده پوري قومي فایده حاصلیږي. د هغه په خیال پوهه او مهذب قامونه بیشک د نورو قومونو په ژبو کې په لیکلي شوي علمونو هم ځان پوهه کوي خو صرف په دی غرض چې خپل قوم او خپلې ژبې ته فائده ورسوي.[۳۵] پښتو ژبې ته د سرکاري حیثیت ورکولو په باره کې تفصیلي ذکر په درېیم باب کې شوی دی.

## د پښتو ژبې تدریس

د ۱۹۳۷م کال له جون مخکې دلته عدالتي او سرکاري ژبه فارسي وه، خو له کوم وخت نه چې دلته پښتو سرکاري ژبه شوه نو بیا هم تدریس په نورو ژبو کې کېده. د میډیم آف انسټرکشن په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې لیکي:

> The medium of instruction in educational institutions in the state, however, was not Pukhto but was the one taught in British India and later in Pakistan, as the educational institutions were affiliatied there and the curriculum was also the same as in the rest of the country. Neverthless, all Swatis educated in these institutions were fluent in reading and writing Pukhtu[۳۶]

ترجمه: بیا هم د ریاست په تعلیمي ادارو کې پښتو د درس و تدریس ژبه نه وه، خو هغه ژبه به وه کومه چې د برتانوي هند یا بیا وروسته د پاکستان وه، ځکه چې د تعلیمي ادارو الحاق هلته شوی و او نصاب به هم هغه و کوم چې په نور ملک کې و، خو د دې باوجود ټول سواتیان چې په دې تعلیمي ادارو کې به یې سبق ویلو هغوی به پښتو په روانۍ ویلی او لیکلی شوه. د سوات په ریاست کې به په سکولونو کې له نورو مضامینو سره سره پښتو هم یو مضمون و، چې ښودلی به شه، په دې باره کې د هغه دور په یو کتاب کې داسې لیکل شوي دي:

> په سوات کې دوه پنځوس ابتدائي او څلور متوسطه مکتبونه او یو هائي سکول شته. د متوسطو مکتبونو نصاب یې تاریخ، جغرافیه، انشاء، ادب، علم الاشیاء، حساب، عربي، فارسي، پښتو او انګریزي دي.[۳۷]

جهانزېب کالج په ۱۹۵۲م کې جوړ شوی او څه وخت وروسته پکې پښتو د یوولسم دولسم په سطحه دا ختیاري مضمون په حیث ښودل کېده او داسې معلومېږي چې تر ۱۹٦۹م کال پورې پښتو ته په ډګري کلاسونو کې د ویلو اجازت نه و. د جهانزېب کالج د

ایلم رسالې د ۱۹۶۹م د دسمبر په ګڼه کې د پښتو برخې مدیر په دې حواله په اداریه کې داسې لیکي چې تر اوسه پورې په دې کالج کې پښتو د یو اختیاري مضمون په حیث صرف د دولسم جماعته پورې د اخستو اجازت وه، د ډګري په کلاسونو کې په دې پابندي وه.[۳۸]

## صحافت

په دې دور کې چې مونږ په سوات کې د صحافت ارتقاء ته ګورو نو هېڅ قسمه اخبار په دې دور کې نه دی چاپ شوی، البته په دې دور کې یو څو رسالې چاپ شوي، چې د هغو تفصیل داسې دی:

## ایلم رساله

په باقاعده توګه چې په سوات کې وړومبۍ کومه رساله په لاس راځي هغه د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله "ایلم" ده ـ دا رساله په ۱۹۵۸م کال کې شروع شوې ده[۳۹] او تر دې دمه جاري ده.

## خانداني منصوبه بندي رساله

په سوات کې په ۱۹۶۶کې د فیملي پلاننګ ډیپارټمنټ نه به د صحت د معلوماتو متعلق یوه رساله چاپ کېدله، د دې ایډیټر ګل نواب خان و.[۴۰]

## جائزه ریاست سوات

والي سوات د سوات د ریاست د ترقۍ نه د عوامو د خبرولو لپاره په ۱۹۶۷ کال کې د سوات نه یوه رساله د جائزه ریاست سوات په نوم شروع کړې وه. د دې رسالې وړومبۍ ګڼه په اردو ژبه کې چاپ ده، په ټائټل مخ یې ورله "ریاست سوات تاریخي و ترقیاتي جائزه" لیکلي دي او دا د دفتر اطلاعات ریاست سوات سیدو شریف له اړخه چاپ شوې ده. د دې رسالې په بېک ټائټل یې پهلي اشاعت جون ۱۹۶۷لیکلی دی. د دې رسالې په باره کې ویلی شي چې دا به په اردو او پښتو دواړو ژبو کې چاپ کېدله.[۴۱]

## سوات ډائجسټ

په ذاتي توګه د سوات په رياستي دور کې د صحافت شروع فضل خالق ماډرن کړې وه. هغه په ۱۹٦٨م کال کې د سوات نه د سوات ډائجسټ په نوم يوه مياشتيزه او معياري رساله ويستله.[٤٢] دا رساله به په اردو ژبه کې چاپ کېدله او وايي چې د مالي مشکلاتو په وجه دا بيا بنده کړی شوه. والي سوات د هېڅ قسمه رسالې يا اخبار اجازت نه ورکولو خو د دې رسالې په لار کې يې هېڅ قسمه رکاوټ نه و پيداکړی، بعضې خلق دا وايي چې د دې رسالې اخراجات به والي سوات برداشت کول او دا يې د خپلو خاصو مقاصدو دپاره چاپ کوله. په دې رساله کې به ادبي او تاريخي مضامين هم چاپ کېدل.[٤٣]

## ادبي اصناف

د سوات د رياستي دور په پښتو ادب کې چې کوم ادبي صنفونه موندل کېږي، هغه دا دي:

## چاربيته

چار بيته د ولسي ادب يو مقبول صنف و. دې صنف ډېره ترقي کړې وه، خو له بدقسمتۍ نه چار بيتي شاعران اکثر نالوستي وو نو ځکه د هغوی دا قيمتي ملغلرې سمبال شوې نه دي. د دغه وخت د يو چاربيتي شاعر سيد عثمان طالب[٢٥] او د هغه وخت د چاربېتو په باره کې رحيم شاه رحيم ليکي چې سيد عثمان طالب په داسې ماحول کې سترګې غړولې وې چې په سوات کې هر طرف ته د عوامي چاربيتي شاعرانو د مقابلو او معرکو بازار ګرم و. د سيد عثمان طالب پر شاعرۍ هم د چاربيتي شاعرانو اثرات پرېوتي

[٢٥] سيد عثمان طالب د سوات په ګدا کوټ نومې کلي کې په ۱۸۹۰م کې پېدا شوی و. دی د ګدا کوټ بابا نمسی وه څوک چې له اصله سيد و او د ببرې خوشاب نه ګدا کوټ ته په ميشته راغلی و. (رحيم، رحيم شاه، د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (۱۹۸۱جنوري)، ۴۹مخ). سيد عثمان طالب په ۱۹٦٢ م کال کې د دوه اويا کالو په عمر کې وفات شوی دی. قبر ئې په مينګوره کې دی. (رحيم، رحيم شاه، د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (۱۹۸۱جنوري)، ۵۰مخ) د ده د ديوان د قلمي نسخې په باره کې حنيف خليل ليکي چې په دې کې درې سوه او پنځوس مخونه دي او دا په ۱۹۱۴م کال کې ليکل شوې ده.(اے کيټلاګ اف پشتو مينوسکرپټس، ۹۸مخ)

وو، دغه وجه وه چې که يو خوا سيد عثمان طالب د کلاسيکي شاعرانو په تتبع کې د شاعرۍ بنيادي صنف خپل کړی و، نو بل اړخ ته يې د چاربېتې په ميدان کې نه صرف پوره کار کړی و، بلکې په دغو مقابلو کې يې عملي حصه هم اخستې وه. د دې قسم مقابلو په لړ کې هغه د خپل وخت شاعرانو ته ځنګه پتون ټپوي:

که شـاعر يـې مخـامخ شـه پـه ميـدان کـې
سـيد عـثمان طالـب دې پېـژني منـاف[٤٤]

د عبداللطيف شاهين په کتاب شغلې کې هم چاربيتې شته[٤٥] او له دې نه علاوه په سوات کې د نورو ډېرو ليکوالانو چاربېتې هم موندلی شي، خو اکثر ناچاپ دي.

## غزل

لکه ځنګه چې په ټوله پښتونخوا کې په پښتو ادب کې غزل مقبول او مشهور دی دغه رنګ د سوات په رياستي ادب کې هم غزل د شاعرۍ يو مقبول صنف پاتې شوی دی، په غزل کې مختلف موضوعات ځای کړی شوي دی، قاضي عبداللطيف ګالوچي د خپل تفسير "تفسير تيسير" د دويم جلد په درېيم مخ دا لاندينی حمديه "غزل" ليکلی دی:

اللـه پـاک زمـونږ رحـيم او هـم رحـمان دی
د ده لـوی قـدرت تـه کـل مخلـوق حيـران دی
دعـدم نـه يـی کـل اشـياء پيـدا کـړه
يـه تسـبيح سره يـی هـر يـو شـی ګويـان دی
دا مخلـوق چـې يـی پـه خپـل قـدرت پيـدا کـه
معـزز يـې پـه دا واړو کـې انسـان دی
لکـه فـرش يـې ښـکته زمکـه غـوړولې
بنـا کـړی يـې پـرې پـاس چـت د اسـمان دی
لـوی يـې ذات لـوی يـې حکمـت لـوی يـې قـدرت دی
لا يعـد لا يحصٰيـ د ده لـوی شـان دی
ورتـه زمکـه ده پرتـه پـه ډېـر خشـوع
پـاس اسـمان يـې پـه فرمـان کـې سرګـردان دی
دا عظمـت او دا جـلال د ده پـټ نـه دی
لکـه نمـر سـپوږ مـی هـر چـا ورتـه عيـان دی

چــــــې زمــــــونږه اسره نشـــــــته بـــــې لـــــه دنـــــه
دم پـــــه دم یــــــی قـــــاضي ځکــــه ثنـــــا خـــــوان دی
شــــــکر شـــــکر چــــــې یــــــې مــــــونږ تـــــه رالیږلــــــی
پـــــــاک حبیـــــب خپــــــل محمــــــد اخـــــــر زمــــــان دی
بیــــــا یـــــــې امـــــــر پــــــه صـــــلٰوة دی راتـــــه کــــــړی
راشــــــــه او گـــــــوره نـــــــازل پـــــــه دې قــــــران دی[٤٦]

د غزل صنف د سوات د ادب په دې دور کې ډېر زیات په نظر راځي. کله چې مونږ د دې ادبي صنف موازنه له وړومبي دور سره کوو، نو په دې دور کې پکې نوې نوې تجربې هم په نظر راځي.

**حمد**

حمد هم د سوات د دې دور په ادبي اصنافو کې یو اهم صنف دی. په ډېرو کتابونو کې حمد موندلی شي. یو حمد دلته وړاندې کوو:

حمـــــــــد وایمـــــــــه د هغـــــــه پـــــــاک احـــــــــد
چـــــــــــې صـــــــــــمد دی لم یلـــــــــد ولم یولـــــــــــد
کـــــــل اشـــــــیاء یـــــــې پـــــــه تســـــــبیح سره گویــــــا دي
کـــــه ســـــفلي کـــــه علـــــوي څـــــوک پـــــه ســـــما دی
ثنــــــا خــــــوان یـــــې دي ملــــــک څـــــوک پـــــه رکــــــوع
څـــــوک پراتـــــه دي پـــــه ســـــجود پـــــه ډېـــــر خشـــــوع
بعضیـــــــــ وایـــــــــي د ده ذکـــــــــر پـــــــــه قیـــــــــام
غفلـــــــت نـــــــه کـــــــوي پـــــــه ذکـــــــر باالـــــــدوام
اســـــــمانونه یـــــــې پیـــــــدا کـــــــړه پـــــــه قـــــــدرت
عـــــرش لـــــه یـــــې ورکـــــړه پـــــه دا واړو کـــــې عظمـــــت
خړنــــگ مزکــــه یــــې پیــــدا پــــه ډېــــر زینــــت کــــړه
څــــه لمــــده او څــــه یــــې وچــــه پــــه حکمــــت کــــړه
ابـــــــه یـــــــې کـــــــړه د حیوانـــــــاتو بعضـــــــو کـــــــور
بعضیــــــ کانــــــدي پــــــه وچــــــو بــــــه زوږ او شــــــور

کلـــــه کـــــړي پیـــــدا بهــــار کلـــــه خــــزان
اوړی ژمــــــــی راولي پــــــه خپـــــل خپـــــل ان
حــــیراني ده د ده داســــــې لــــوی قـــــدرت تــــه
پـــه هــــر کـــار کـــې د ده داســـې لـــویی طاقـــت تــــه
کــــه هــــر څـــو قلـــم دوات کاتـــب پــــه لاس کـــا
کلـــه ځـــان بـــه پـــه ثنــــا د ده کـــې پـــاس کـــا
بلکــــــې فیـــــل بـــــه وي هــــــر دم الي الا بـــــد
کـــــه هــــر څـــو وایـــــي ثنــــا د پـــاک صـــمد
نــــو بایــــده دي چــــې اوس وایـــــو مــــــونږ درود
پـــه هغـــه ذات چــــې مخلـــوق کـــې دی مســـعود[٤٧]

له دې نه علاوه نور هم په ډېرو کتابونو کې د حمد نمونې موندل کېږي.

**نعت**

د نعت روایت هم د سوات په پښتو ادب کې موجود دی. دلته د نمونې لپاره دا یو نعت وړاندې کوو:

محمــــــد دی هـــــم احمـــــد دی هــــــم محمـــــود دی
پـــه قــــران کښـــی ډېـــر ســــتائېلی پـــاک معبـــود دی
مـــــولٰی ده وتـــــه خطـــــاب کــــــه پـــــه لــــــولاک
لــــه ډېــــر حـــب نـــه یـــې کـــه دی پـــاس پـــه افـــلاک
خــــدای خپلـــه یـــې د ده پــــه مــــخ ظـــــاهر کـــــړه
مرتبـــــه د ده یــــــې خلقــــــو تــــــه ظــــــاهر کــــــړه
عاشــــــقان یــــــې د دیــــــدن د ده نبیــــــان کــــــړه
غلامــــــان ئـــــــی د دیــــــدن د ده ولیــــــان کــــــړه
ورلــــــه یــــــې ورکـــــــړه لــــــوی مقــــــام د شــــــفاعت
گنهگـــــار چــــــې خلاصــــــوي بــــــه پــــــه قیامــــــت
پـــــه نامـــــه د ده یـــــې کـــــړه حـــــوض کـــــوثر
چـــــې ســـــېراب پـــــرې مومنــــان کـــــه پـــــه محشـــــر
درود دې وي پــــــــه ال پـــــــــه اصــــــــحابانو

ورپســـــــــــې دې وي پـــــــــه ټولـــــــــــو تابعـــــــــــانو
پـــــــــــیروي د دې نېکـــــــــانو ربـــــــــــه راکـــــــــړه
لـــــــــه زوالـــــــــه د ایمـــــــــان پـــــــــه امـــــــــان مـــــــــاکړه
تـــــــو بنـــــــه نـــــــه لـــــــرم مـــــــرگ راغـــــــی عنقریـــــــب
شـــــــفاعت د پـــــــاک حضرـــــــت مـــــــې کـــــــړه نصـــــــیب[48]

د سوات د پښتو ادب په دې دور کې په ډېرو مطبوعه کتابونو کې نعتونه موندلی شي، په دې دور کې یو بل چاپ کتاب د جنت حوره کې هم ډېر نعتونه راغلي دي.[49]

## مثنوي

په تفسیر تیسیر کې ځای پر ځای د مثنوي تر سرخط لاندې اشعار موندل کېږي، لکه دا شعرونه:

چـــــې پـــــه زړه یـــــې وي یـــــوه پـــــه خولـــــه یـــــې بلـــــه
منـــــــــــافق دی پـــــــــــه کتـــــــــــاب سره ای دلـــــــــــه
کـــــه پـــــه ژبـــــه کـــــه اقـــــرار پـــــه زړه منکـــــر وي
خـــــــدای پـــــــوهیږي ولـــــــې شرع تـــــــه کـــــــافر وي
کـــــه انکـــــار کـــــه هـــــم پـــــه زړه هـــــم پـــــه زبـــــان
دی کـــــــــافر دی راشـــــــــه اوگـــــــــوره قـــــــــران
چـــــې پـــــه زړه کـــــې وي عاشـــــق د خـــــدای رســـــول
هـــــم پـــــه ژبـــــه یـــــې کـــــا کـــــل احکـــــام قبـــــول
دی مـــــــــــومن دی مســـــــــــتحق د جنتونـــــــــــو
پـــــه امـــــان بـــــه یـــــې کـــــړه مـــــولٰی د زخمتونـــــو
ربـــــه خـــــتم مـــــې پـــــه خـــــیر او پـــــه ایمـــــان کـــــا
لـــــه غارتـــــه د شـــــیطان نـــــه مـــــې پـــــه امـــــان کـــــا[50]

د مثنـوي صـنف اگرچـې پـه دې دور کـې دومـره عـام نـه دی، خـو بیـا یـې هـم نمونې په لاس راځي:

## رباعي

د دې دور په ادبي اصنافو کې رباعي هم یو مهم صنف دی. د نمونې لپاره دا لاندینۍ دوه رباعیانې وړاندې کولی شي:

ماتـــــه کړلـــــه مـــــې بېـــــړۍ د مســـــکینانو
چـــــې ور نشيـــــ دا پـــــه لاس د غاصـــــبانو
مـــــات اســـــباب چـــــې وي پـــــه لاس کـــــې د مالـــــک
ډېـــــر بهـــــتر دی د قبضـــــې د ظالمـــــانو
بعضيـــــ کـــــار د دښـــــمنۍ وي پـــــه ظـــــاهر
ډېـــــر خفګـــــان تـــــرې عـــــار ضـــــیرې پـــــه خـــــاطر
پـــــه حکمـــــت کـــــې د قـــــدیر هغـــــه فائـــــده وي
نېـــــک عـــــوض تـــــه دې مـــــومن اوسي نـــــاظر[۵۱]

پـه تفسـیر تېسـیر کـې دا قسـمه رباعیـانې ډېـرې ورکـړل شـوي دي. د دې ټولـو رباعیانو موضوعات مذهبي او دیني دي.

## مرثیه

د ریاستي دور په پښتو ادب کې مرثېې هم شته چې ځینې مرثیې پکې ډېرې زیاتې مشهورې شوي دي، لکه د سیف الملوک صدیقي دا غزل نما مرثیه ډېره مشهوره ده:

زه انتظـــــار کومـــــه ســـــتا د ســـــترګو
ولي پنـــــاه شـــــوې تـــــه زمـــــا د ســـــترګو
چـــــې پـــــه ګلونـــــو د دنیـــــا کـــــړم نظـــــر
مثـــــال مـــــې نشـــــته د اشـــــنا د ســـــترګو
کـــــه پـــــه ســـــلګو یمـــــه یـــــواځې نـــــه یـــــم
اوښـــــکې بهیـــــږي د هـــــر چـــــا د ســـــترګو

خـــــومره ښائســـــت چـــــې ســـــتا پـــــه ســـــتوګو کـــــې وه
نشـــــته نـــــرګس او د لالا د ســـــترګو
هـــــر چاتـــــه ګورمـــــه دنیـــــا لټـــــوم
نشـــــته هغـــــه چرتـــــه خنـــــدا د ســـــترګو

صـــــــــديقي خـــــــوښ دی پــــــه خلــــــوت د دنيــــــا
چرتـــــــه بــــــه پــــــټ شي د دنيــــــا د ســــــــترگو[52]

دا مرثيه سيف الملوک صديقي د خپل يو دوست محمد کرم په مرگ ويلې وه. فيضان[26] سوات د محمد کرم په مرگ دا شعر ويلی دی :

لاړ محمــــــد کـــــرم د گلــــو لختــــه د عقبٰــــي پــــه لـــور
نشـــته نازېـــدل خلقـــه پـــه دې دنيـــا فـــاني بانـــدې[53]

شېرمحمد مينوش د سيف الملوک صديقي د مرثيو په باره کې ليکي چې د صديقي ټول کلام د وفادارۍ نتيجه ده نو ځکه يوه مرثيه ده. که چرې دا د چا د حق گزارۍ نتيجه وې نو دا به د قصيدو مجموعه وه خو دا د يو محبت يادگار دی چې د اشنا مينه پرې ماتوي.[54] تاج محمد خان زېب سر هم د خپل ځوانيمرگ ځوی محمد شريف په غم کې مرثيې ليکلي دي. د يو ې مرثيي څو شعرونه دا دي:

بيـــا نـــازل شـــوی پـــه چمـــن د غـــم خـــزان دی زمـــا
بيـــا هـــم پـــه کـــور بانـــدې نـــازل د غـــم طوفـــان دی زمـــا
ســـترگې زمـــا چـــې د وصـــال پـــه شـــب کـــې بنـــدې شـــولې
څـــه عجيبـــه ده چـــې اوس ســـتاليده ارمـــان دی زمـــا
رحمانـــه اوس بـــه پـــه کـــوم ځـــای کـــې اقامـــت نيســـمه

فيضان په ۱۹۲٦ کې په عالم گنج کې پيدا شوی و. د دخ خپل نوم فضل الرحمان و، د پلار نوم يې عبدالرّحمان و او د نيکه نوم يې شيخ حبيب الله و. په قوم ټکريا خېل و. د پينځلسو کالو په عمر کې ئې د نعتونو وړومبی کتاب "نوبهار مدينه" ليکلی و. په مردان (جمال گړهی) او شامنصور کې يې زدکړې کړې وې، په نوښار (چوکي درب) کې به د شاه افضل استاذ په جماعت کې اوسېده او د خوشنويسی فن يې د هغه نه زده کولو. په رياستي دور کې والي سوات مرزا واخسته، څه وخت وروسته د ځينو خلکو په سازش دی له نوکرۍ نه وويستی شو او په ۱۹۵۰م کال کې پېښور ته لاړ شه. په پېښور کې له راحت زاخيلي سره دېره شو. په دغه وخت کې د جهاد او افغان اخبارونو کاتب خاص مقرر شو. څه وخت وروستهٔ چې کله والي صېب تحقيقات وکړ، نو په ۱۹۵۱ کې يې دی دوباره سوات ته راوسته او والي صيب په خپل دفتر کې مرزا ولگولو. د خادم محمد اکبر او بادشاه گل نيازي په مشوره يې فيضان تخلّص خوښ کړ. له دې نه وړاندې د دهٔ تخلّص طالب و، بې شماره کتابونه يې کتابت کړي او په يو شمېر کتابونو ئې مقدّمې ليکلي دي.(دا معلومات د فيضان د مشر ځوی شمس الاقبال شمس نه تر لاسه شو)

ښـــاښ هغـــه پريکـــړی شـــه هلتـــه کـــې مکـــان دی زمـــا[55]

د والي سوات کشر ورور مياګل فضل قادر شاه روم عين په ځوانۍ کې په اسلاميه کالج کې د سبق دوران کې له دې فانې دنيا رخصت شو. د هغه مرثيه زېب سر ليکلې ده، يو څو شعرونه يې دا دي:

دويـــــــم ځـــــــوی د ســـــــلطان وه شـــــــاه روم
چـــــې ســـــفرله دنيـــــا کـــــړی دی مرحـــــوم
شـــــهزاده فضـــــل قـــــادر شـــــاه روم نـــــوم
دغـــــه نـــــوم د ده هـــــر چاتـــــه وه معلـــــوم
د ده عمـــــر هرګـــــز اونـــــه کـــــړه وفـــــاهم
چـــــا وفـــــا مونـــــدلې نـــــه ده پـــــه دنيـــــا هـــــم
وولـــــس کالـــــه د ده عمـــــر مختصـــــر وه
لا طالـــــب دی د کـــــالج د پېښـــــور وه
بيـــــا هـــــم دی پـــــه پېښـــــور کـــــې شـــــه وفـــــات
څـــــه فـــــاني دی د فـــــانۍ د نيـــــا حيـــــات
د جمعـــــې شـــــپه وه د بزرګـــــې مياشـــــت اولـــــه
ديـــــارلس ســـــوه څلوېښـــــت ســـــن د هجـــــر دلـــــه
لـــــه دنيـــــا چـــــې دې ســـــفير وکـــــه ســـــفر
څـــــه بـــــاور دی پـــــه دې عمـــــر مختصـــــر[56]

د سوات د پښتو ادب په هر دور کې د مرثيو روايت موندل کېږي، په چاپ ادب کې په دې دور کې هم ډېرې مرثيې موجود دي.

## داستان

د سوات د رياستي دور په پښتو ادب کې د داستان ګويۍ نمونې هم شته. مولوي مختيار الدين[27] د فلبل خان او نسيم جان په نوم يوه قيصه ليکلې ده. د دې قيصې په باره

[27] مولوي مختيارالدّين د نمر خاته طرف ته د کوکارۍ په دره کې په دنګرام نوي کلي کې په ۱۹۰٤ کال کې زېږېدلی و.[27] مختيار الدّين په ۱۳۵۹ هـ (۱۹۴۰ء) " د فلبل خان او نسيم جان" په نوم د پښتو يو منظوم روماني داستان ليکلی و. دا د ښاپېرو، ديوانو او شهزادګانو يوه ډېره خوندوره قيصه وه. دا قيصه په ۲٥٦ مخونو مشتمله وه او په قلمي شکل

کې رحیم شاه رحیم لیکي چې مختیار الدین په ۱۳۵۹هـ کې د" فلبل خان او نسیم جان" په نوم د پښتو یو منظوم روماني داستان لیکلی دی. دا د خاپېرو، دیوانو او شهزاد گانو یوه ډېره خوندوره او ارتښتک قیصه ده. دا قیصه په ۲۵٦ صفحاتو مشتمله ده او لاتر اوسه پورې په قلمي شکل کې په مینگوره کې د مختیار الدین د یو ځوی ښاغلي صلاح الدین[۲۸] سره ده. د دې قیصې په اخر کې مصنف د خپل کور کلي او د قیصې د تصیف په اړه دا رنگ اظهار کړی دی:

---

کې په مینگوره کې د هغه د ځوی صلاح الدّین سره وه [۲۷] خو بیا دغه قلمي نسخه د صلاح الدّین دلې په کور کې سوځولې شوې وه.[۲۷] د دې قیصې یو نقل رحیم شاه رحیم حاصل کړی و[۲۷] د قیصې په اخر کې مصنّف د خپل کور کلي او د قیصې د تصنیف په اړه داسې وایي:

یویشـــــــــــتمه د روژې وه پـــــــــــه ښـــــــــــۀ شـــــــــــان
خـــــــتم شـــــــوه قیصـــــــه پـــــــه فضـــــــل د منـــــــان
قیصـــــــه خلاصـــــــه د فلبـــــــل د نســـــــیم جـــــــان شـــــــوه
راوي ډېـــــــــر پـــــــــه مینـــــــــه کـــــــــړے دی بیـــــــــان
دا قیصـــــــــــه مـــــــــــې اوربـــــــــــدلې د اســـــــــــتاذ وه
څـــــــه لیـــــــدلې پـــــــه کتـــــــاب مـــــــې وه عیـــــــان
پـــــه یـــــو مـــــزي مـــــې ســـــفته کـــــړه دې کتـــــاب کښـــــې
کـــــم و زیـــــات بـــــه پکښـــــې وي یمـــــه انســـــان
کـــه څـــوک کلـــی مـــې پوښـــتي اصـــلي دنگـــرام دی
یـــــــم حـــــــالاً پـــــــه مینگـــــــوره درخشـــــــان
تېـــره ســـو یـــو کـــم شـــپېته ســـن هجـــري وه
خـــــلاص داســـــتان شـــــۀ د فلبـــــل د نســـــیم جـــــان
مخـــــره نـــــوم مختیـــــار الـــــدّین زمـــــا یـــــادیږي
پـــلار مـــې ابښـــی پـــه طفـــلي کښـــې خـــوش الحـــان

(رحیم، رحیم شاه، د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله میاشتینی پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۲ مخ)

[۲۸] صلاح الدّین، محمد،( تاریخ پیدایش: ۱-۴-۱۹۴٦،حاجي بابا، مینگوره، د مولوي مختیار الدّین ځوی دی. له پرائمري سکول نه ریټائرډ استاد دی. مینگوره قلندر مارکیټ د صلاح الدّین د جم سټون دکان) انټرویو: ۲۹ جنوري ۲۰۱۵ . دی وایي چې دغه قلمي نسخه د هغه ښځې هغه وخت سوزولې ده کله چې په کور ښې د اور بلولو لپاره وچ لرگي نه وو . هغې شنو لرگو ته په اسانۍ سره د اور لگولو لپاره دا قلمي نسخه استعمال کړه. هغې وویل چې دا خو ماته یو زوړ او بېکاره کتاب ښکارېده نو ځکه مې وسېزه.

يــــــو يشـــــــتمه د روژې وه پـــــــه ښـــــــع شـــــــان
خـــــتم شــــــوه قيصـــــه پـــــه فضـــــل د منــــــان
قيصـــــه خلاصـــــه د فلېـــــل د نســــيم جـــــان شــــوه
راوي ډېـــــــر پـــــــه مينـــــــه کــــــړی دی بيــــــان
دا قيصـــــــــه مــــــــــې اوربـــــــــدلې د اســـــــتاذ وه
ځـــــه ليـــــدلې پـــــه کتــــاب مــــــې وه عيــــان
پـــه يـــو مـــزي مـــې ســـفته کـــړه دې کتـــاب کـــې
کـــــم و زيـــــات بـــــه پکـــــې وي يمـــــه انســــــان
کـــه څـــوک کلـــی مـــې يښـــتي اصـــل د نگـــرام دی
يـــــــم حالاًپـــــــــه مينگـــــــوره در خشــــــــان
تېـــره ســـو يـــو کـــم شـــپېته ســـن هجـــري وه
خـــــلاص داســــتان شـــــه د فلېـــــل د نســــيم جـــــان
وروره نــــــوم مختيــــــار الــــــدين زمــــــا يــــــاديږي
پلارمــــي ايخـــی پـــه طفلـــی کـــې خـــوش الحـــان[٥٧]

ملنگ عبدالغفار د شهزاده گلشن او بي بي هارون قيصه ليکلې ده. دا قيصه په ۱۹۵۵ کې د خورشيد عالم پريس لاهور نه چاپ شوې ده.[٥٨] له منظومو داستانونو علاوه "د سوات زړې قيصې" په نوم يو کتاب د سوات ميوزيم د هغه وخت ډايريکټر عنايت الرحمان ليکلی دی. دا کتاب د اټلي په مرسته چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د سوات زړې قيصې په پښتو او انگرېزۍ دواړو ژبو کې ليکل شوي دي. دا کتاب دوه جلدونه لري وړومبی جلد يې ۱۹٦٨ء کې چاپ دی.

## منظومې مذهبي قيصې

له داستانونو علاوه منظومې مذهبي قيصې هم په سوات کې ليکل شوې دي. د يوې قيصې سر خط پکې دا دی "د حضرت موسٰی سره د يو فقير په بيابان کې ملاقات کېدل يوه رښتينې عبرت ناکه قيصه". [٥٩] يوه بله منظومه قيصه د دی سر خط لاندې ليک ده" د يو رشتيني عاشق مينه چې خپل مال او جان يې د رسول کريم په مينه کې قربان کړل، د وزارت عهده يې ترک کړه او د يو لېوني په شان مدينې پاکې ته د براع د ملک نه راروان شه"[٦٠]

## نثري ادب

په رياستي دور کې مونږ ته دوه قسمه نثر په نظر راځي، يو قسم زوړ نثر دی، چې د مخزن او فوائدالشريعت نثر ته په گرانوالي کې نزدې دی او دا مسجع او مقفی نثر دی. دا قسمه نثر يا د تاريخي او نيم ادبي کتابونو، د ترجمو او يا د کتابونو د ديبا چو په شکل کې مېلاويږي.

او بل قسم نوی نثر دی چې هغه روان او ساده نثر دی، محاوره او روزمره يې د سوات د يوسفزی لهجې دي، ژبه يې اسانه او د عربی، فارسی استعمال پکې نشته، دا قسم نثر په ناولونو او نورو ادبي کتابونو کې ليکل شوی دی.

د رياستي دور د زوړ نثر څه نمونې دلته وړاندې کوو:

> پس له دې نه وائي فقير قاضي عبداللطيف گالوچي مولداً او لابتوي مسکناً او حنفي مذهب او جېلاني منسب چې هر کله اجل پۀ علوموکې علوم ديني او شرعي دي او بيا بهتر پۀ دوي کې علم تفسير چې تبين دی د معانيو د قران چې کتاب منزل معجز دی د قاد [قادر] سبحان پۀ محمد اخر زمان باندي ـ[٦١]

دا لا نديني نثري نمونه مقفٰي او مسجع ده او لکه د مخزن رنگ لري:

> وايم حمد و ثنا بې شمار ـ د هغه قادر کردگار ـ چې راوباسي د کتم د عدم نه مېدان د ظهورته پۀ وار وار ـ سره دارنگارنگ گل وخار ـ د عالم پۀ قدرت جباري سره يو عجب گلزار ـ بيا داسي خالق پاک چې يې پېدا کۀ د خاک ادم ـ او پۀ ټول مخلوق يې کۀ اولاد د دۀ مکرم ـ او بيا پۀ مينځ له دوي کې يې څوک پۀ رسالت او څوک پۀ مکالمت او څوک پۀ خلت او څوک پۀ محبت او څوک پۀ داسې نورو نورو مرتبوسره کړل معظم ـ سبحان الله داسې لوئی ذات دی چې مخلوقات د زمکې اود سٰمٰوت پۀ تسبيح لۀ ده کې کل ژبې دي لکه خار ـ"[٦٢]

د نثر يوه بله نمونه دا ده:

> پس د حمد او د درود وائي بنده ضعيف عاصي اٰسي قاضي محمد عبداللطيف جالوجي هر کله تحريرکۀ دې فقير پۀ فعل د فياض خبير قدير سره جلد اول د دې تفسير نو پۀ التماس د بعضي ـ دوستانو سره يې شروع اوکړه پۀ جلد اخير کې پۀ تو فيق د رب عليم بصير سره او اميد وار دی له دنه د اختتام او د لو ستونکو د دې تفسيرنه د دعا پۀ اخلاص او پۀ کوشش تام سره چې راته نصيب کړي مولاشربت د مرام پۀ وخت د نزع او پۀ سخت ساعت کې د قيام ـ"[٦٣]

په دې دور کې چې په نورو کومو نثري اصنافو کې لیکل شوي هغه سوانح عمري، ناول ، ډرامه، افسانه، ادبي تنقید او نور دي.

## سوانح عمري

محمد آصف خان د سوات تاریخ او د میاګل عبدالودود(باچا صاحب) سوانح حیات د " تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میاګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صیب" په نامه لیکلی دی. دا کتاب په ۱۹۵۸م کې چاپ دی. حلیم سرحدي په ۱۹٦۷م کې د سوات د مشهور شاعر فیضان سوات مختصر سوانح لیکلې او له دې نه علاوه حلیم سرحدي د ډهېرۍ باباجي سوانح هم لیکلې ده. عبدالغفور قاسمي د "اعلیحضرت حکمران ریاست سوات کی سوانح حیات" په اردو کې هم لیکلی دی.

## ناول

په سوات کې په ریاستي دور کې د پښتو دوه ناولونه لیکل شوي دي. دا دواړه ناولونه شېرمحمد شېر لیکلي دي. په دې کې وړومبی ناول "نوی ژوند" او دویم ناول "لوظ" دی. دا دواړه ناولونه په ترتیب سره په ۱۹٦۴م او ۱۹٦٦م کې لیکل شوي دي. له دې علاوه چې په سوات کې نور کوم ناولونه لیکل شوي، هغه له ریاستي دور نه وروسته لیکل شوي، چې ذکر به یې په ورپسې باب کې راشي.

## ډرامه

په ریاستي دور کې د سټېج ډرامو هم یو روایت موجود دی. په جهانزېب کالج کې په باقاعده توګه یو ډرامېټک کلب مو جود و. د دې کلب د سیوري لاندې ډېرې یادګاري ډرامې سټېج شوې وې. په دې کې په ۱۹۵۷ کال او په ۱۹۵۸ کې د والي سوات د تاجپوشۍ د جشن په موقعه دوه یادګاري ډرامې هم شاملې دي.[٦٤] د ډرامې د فن او تکنیک د پوخوالي لپاره وخت پر وخت تنقیدي مضمونونه هم لیکل شوي دي. د ډرامې د وخت په باره کې د دې قسمه تنقیدي مضامینو په باره کې سحر یوسفزی داسي لیکي:

"د دی نه زما مطلب دا وه چې په سوات کې د خوشحالۍ په موقعه کومې ډرامې سټېج کیږي په هغو کې دې د فن خدمت ته هم پام

وکړی شي نو د ادب په میدان کې به د سوات د لوري یو ناشونی کار وشي.[٦٥]

سیف الملوک صدیقي په پښتو کې درې ډرامې، پیغور، ګټه بېلاد او زرابه لیکلې وې او د جشن سوات په موقعه یې سټېج کړې هم وې خو افسوس چې دا شائع شوې نه وې"[٦٦] په رسالو کې وخت په وخت د پښتو ډرامې هم لیکل شوي دي، لکه د جهانزېب کالج د ایلم رسالې د ۱۹٦۲ په ګڼه کې محمد همایون د "جذبات" په نوم یوه ډرامه لیکلې[٦٧] او داسې نورې لیکلې ډرامې هم موندل کېږي.

## ادبي تنقید

د تخلیقي ادب د ودې او پرمختګ د پاره تنقید یا تنقیدي ادب لازمي څیز دی. دغه وجه ده چې په سوات کې په ریاستي دور کې لیکوالانو تنقید ته هم پاملرنه کړې ده. په دې لړ کې د تنقید د ټولو نه اهم کتاب د سحر یوسفزي"ادب څه دی" دی. د افسانې[٦٨] او د ډرامې[٦٩] د فن متعلق هم ډېر ښه ښه تنقیدي مضامین لیکل شوي دي. له دې علاوه د نظم او نثر د کتابونو په مقدمو او دیباچو کې هم ډېر تنقیدي مضامین لیکل شوي دي.

## ترجمې

د ریاست په وخت کې د ډېرو مهمو کتابونو پښتو کې ترجمې شوي، چې پکې د قران پاک د پښتو ترجمه او تفسیر د قاضي عبداللطیف ګالوچي او د انوار سهیلي او تاریخ فرشته ترجمې سید عبدالغفور قاسمي کړي دي. د انوار سهیلي د ترجمې په باره کې سید عبدالغفور قاسمي داسې وایي:

"د دې عظیم الشان کتاب ترجمې په څو څو واره په مختلفو ژبو کې شوي دي مونږ به د دې ترجمو یو شجره دلته پېش کړو تاسو ته به دهغې نه د دې کتاب د اهمیت پته اولګي هم دغه وجوهات وو چې اعلیٰ حضرت باچا صیب حکمران د سوات د دې کتاب په پښتو ترجمه زه مامور کړم، ما دا کتاب د فارسۍ نه په پښتو دا علیٰ حضرت میاګل ګل شهزاده بادشاه صیب په حکم ترجمه کړه."[٧٠]

د باچا صیب د علمي قدردانۍ او ترجمو په باره کې عبدالغفور قاسمي مخکې داسې لیکي:

د سوات د بادشاه صيب د علمي قدرداني اندازه د دې نه اولګوئ چې دوی په هر علم کې د يو اهم کتاب د ترجمې مکمل بندوبست کړی دی، څه کتابونه خو ترجمه شوي دي او چاپ شوي دي او څه ترجمه کيږي. بادشاه صيب دا يو داسې يادګار په دنيا پر پښود چې تر قيامته به ياديږي.[۷۱]

د پښتو له ترجمو علاوه د سوات تاريخونه د محمد آصف خان او د عبدالغفور قاسمي په انګريزۍ کې هم ترجمه شوي دي. دغه رنګ په اردو کې هم د کتابونو ترجمط شوي او له اردو نه پښتو ته هم کتابونه ترجمه شوي دي.

## د سوات قومي ترانه

د رياست سوات خپله جنډه او مونوګرام[۷۲] موجود دي. له دې علاوه د رياست سوات خپله قومي ترانه هم وه کومه چې سمندر خان سمندر د والي سوات په وينا ليکلې وه.[۷۳] سمندر خان سمندر د پښتو يو کثير التصانيف شاعر دی، ده ته د ملک الشعرا خطاب هم ورکړی شوی و[۷٤] او د دې ترانې دهن هم هغه تيار کړی وه[۷۵]څوک وايي چې دهن د اول نه موجود وه، خو هغه ورته د الفاظو جامه واغوستوله. [۷٦]د دې ترانې ذکر سمندر خان سمندر په خپل يو ناچاپ کتاب "لوګېدلی ژوند" کې کړی دی.[۷۷] "لوګېدلی ژوند" کې سمندر خان سمندر د خپل هاغه عشق قيصه کړې ده په کوم کې چې هغه د رياست سوات د کوهستان علاقې د ګبرال کلي په يو هلک دلاور ميېن شوی و[۷۸] په پينځم جون چې به کله رياستي فوج والي سوات ته سلامي کوله نو دا ترانه به غږېده.[۷۹] په رياستي دور کې په سکولونو يا کالجونو کې دا ترانه په اسمبلۍ کې نه ده غږول شوې.[۸۰] فضل رازق شهاب وايي چې دا ترانه ما په وړومبي ځل په ۱۹٦۴ يا ۱۹٦۵ کې په تحريري شکل کې ليدلې وه.[۸۱] له کافي تلاش وروسته دا ترانه ما ته له امجد علي سحاب[۸۲] نه په لاس راغله، ترانه دا ده:

کـــــل ثنـــــا ربـــــه ســـــتا
ربنـــــــــا دا دعـــــــــا ده
تـر حيـات سـوات زيـات کـړې لـه دې
لـه دې نـه يـو پـه سـل گـل گـل
بادشـــــــاه مـــــــو لـــــــرې
لـــــرې دنيـــــا څـــــو ابـــــاده
ربنـــــــــا دا دعـــــــــا ده
وي امــام قــام تــام دې خوشــحال
خوشـــحال دې وي تـــل تـــل تـــل
کـــــل ثنـــــا ربـــــه ســـــتا ده
ربنـــــــــا دا دعـــــــــا ده

کـــــل ثنـــــا ربـــــه ســـــتا
دا زمـــــــــونږ التجـــــــــا ده
تـر حيـات سـوات زيـات کـړې لـه دې
لـه دې نـه يـو پـه سـل گـل گـل
بـــــاد شـــــاه مـــــو لـــــرې
لـــــرې دنيـــــا څـــــو ابـــــاده
دا زمـــــــــونږ التجـــــــــا ده
وي امــام قــام تــام دې خوشــحال
خوشـــحال دې وي تـــل تـــل تـــل
کـــــل ثنـــــا ربـــــه ســـــتا ده
دا زمانږ التجا ده

کله چې د سوات رياست په پاکستان کې ضم کړی شو، نو ورسره دا ترانه هم له خلکو نه هېره شوه او بيا به خلکو د پاکستان ترانه ويله.

## د سوات جشن او پښتو ادب

مياگل عبدالودو (باچا صيب) د ۱۹۴۹م کال د دسمبر پر ۱۲مه خپل ځوی مياگل عبدالحق جهانزېب ته د سوات د رياست اقتدار حواله کړ او لکه څنگه چې مخکې ويل شوي دي بيا به هر کال د دسمبر پر ۱۲مه د سوات د والي د تاجپوشۍ جشن نمانځل کېده. د والي سوات د تا جپوشۍ د جشن د يادگارې ورځې په موقعه به د ټولې پښتونخوا شاعران او اديبان په سوات کې راجمع کېدل او د جشن په مناسبت به يوه مشاعره کېدله چې هغې ته به يې جهانزېبي مشاعره ويله. اگر چې په دې موقعه به صرف د والي سوات مدحې او صفتونه کېدل خو بيا هم د سوات په پښتو ادب د داسې موقعو ښه اثرات ضرور پرطوتي دي، ځکه چې له دې سره د شاعرانو او اديبانو حوصله افزائي به کېدله او په نتېجه کې به يې د سوات پښتو ادب ترقي کوله. څه وخت وروسته د موسمي حالاتو د بدلون په وجه به د سوات جشن په پينځم جون کېدلو.[۸۳] پينځم جون د والي سوات د پيدائش ورځ وه. د دولسم دسمبر او پينځم جون ورځې د رياست سوات په ادبي تاريخ کې ډېر اهميت لري. دولسم دسمبر ته ليکوالانو قومي اختر هم ويلی دی. په دې اړه زېب سر ليکي چې

په دولسمه ورځ د دسمبر میاشتې دې خوش قسمت حکمران ته د حکومت مبارکي ورکړې شوې ده. اوس دا د قومي اختر ورځ ده او کال په کال په ډېر شان شوکت سره نمانځلی شي. په دغه ورځ د ریاستي ولس د اختر په شان د خوشحالو مجلسونه به کېدل او ټول ملک به لکه د ناوې په نوي نوي زینتونو سره اراسته شوی و. اخباراتو به د جهانزېب د کارنامو متعلق خاص خاص نمبرونه چاپ کول او خواصو به د شاه د عمر دارازۍ د پاره مناسب خیراتونه کول.[٨٤] لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي دي تاج محمد زېب سر دې ورځې ته قومي اختر ویلي او د دې قومي اختر قومي ترانه یې لیکلې ده، چې یو څو اشعار یې دا دي:

دا بــــــاره دســــــمبر قــــــومي اخــــــتر د پښــــــتنو دی
تــــــاریخ دا پــــــه دنیــــــا زمــــــونږ د لــــــو یــــــو افســــــانو دی
نــــن کېښناســــته غــــازي ملــــت پــــه تخــــت هــــم د اقبــــال
ټــــول قــــوم د یوســــفزو هــــم پــــه دې ورځ شــــه خوشــــحال
رحــــمان دروازې بیرتــــه پــــه دې قــــام کــــړې د رحمــــت
نصــــیب د ســــوات بــــونېر شــــه پــــه عــــزت کــــې بــــل غــــیرت
نــــه غــــم شــــته نــــه ســــتم شــــته روښــــنایي ده د انصــــاف
دنیــــا د جهانزېــــب د انصــــاف اوکــــړه اعــــتراف
روښــــانه ملــــک د ده د انصــــاف عــــدل پــــه افتــــاب شــــه
دښــــمن د قــــوم او ملــــک د خپــــل شــــامته اوس خــــراب شــــه
ای قومــــــه دا دوران لائــــــق د ډېــــــر وشــــــکرانو دی
تــــــاریخ دا پــــــه دنیــــــا زمــــــونږ د لویــــــو افســــــانو دی[٨٥]

لکه څنګه چې مخکې وویل شول چې د موسمي حالاتو د خرابۍ په وجه دا جشن د دسمبر ١٢مې پر ځای د جون ۵ مې ته بدل شو او بیا به د جون ۵ مه د سوات د تاریخ یوه مهمه ورځ وه. د دې ورځې اهمیت شاعران داسې بیانوي:

پیــــــنځم د جــــــون تــــــاریخ وه اوصــــــدۍ وه نولســــــمه
قــــدرت لــــه رحــــم وراغــــی د ســــوات پــــه دې حالــــت
اســــمان کــــې ملائــــک وخندېــــدلو هــــم یوبــــل تــــه
چــــې رحــــیم خــــدای مهربــــان شــــولو د ســــوات پــــه مملکــــت

يـــو بـــل تـــه فرشـــتو ووئيـــل د ســـوات نصـــيب بيـــدار شـــه
پيـــدا چـــې نـــن پـــه ســـوات كـــې جهانزېـــب عـــالي وقـــار شـــه[86]

او په بل ځاى كې داسې وايي:

تـــاريخ د پيـــنځم جـــون وه چـــې تقـــدير د ســـوات بـــدل شـــه
فخـــــر د ملـــــت شـــــه جهانزېـــــب عـــــالي وقـــــار ثابـــــت
لـــــرې ورځـــــې پـــــس د فرشـــــتو وينـــــا پـــــوره شـــــوله
ځكـــه عبـــدالحق چـــې شـــه د ســـوات د قـــوم معـــمار ثابـــت[87]

په بل ځاى كې داسې ليكي:

ځكـــــه دا تـــــاريخ د ســـــوات تـــــاريخ كـــــې اهميـــــت لـــــري
ځكـــــه دې تـــــاريخ سره نـــــن هـــــر څـــــوک عقيـــــدت لـــــري
پـــــه دا ورځ پيـــــدا شـــــه چـــــې د ســـــوات هغـــــه عظـــــيم انســـــان
قـــــــوم سره خپـــــــل لكـــــــه اولاد چـــــــې محبـــــــت لـــــــري
پيـــــنځم جـــــون د ســـــوات تـــــاريخ كـــــې لـــــري ډېريـــــو بختـــــور تـــــاريخ
ډېـــر د ســـوات پـــه حـــق كـــې مبـــارک دى ، دې لـــه هـــر تـــاريخ[88]

د پينځم جون په باره كې عبدالحليم اثر افغاني داسې ليكي:

د رياست سوات روښانه نمر د سوات د عروج او ترقۍ د تهذيبي، تمدني، معاشي او معاشرتي سر لوړى روح روان اعلیٰ حضرت مياګل عبدالحق شهرېار جهانزېب خان صېب والي رياست سوات او متعلقات په تاريخ ۵ جون ۱۹۰۸م دې دنيا ته تشريف راوړى وه ـ د غه مباركه ورځ د سوات د ملک او قوم دواړو د پاره د نېک بختۍ او سعادت ځلانده ورځ وه ـ ددې ورځې نه د سوات د عروج او ترقۍ يو نوى دور شروع شه ـ او واقعاتو او حقائقو ثابته كړه چې دا بختوره ورځ په هر لحاظ سره تاريخي وه ـ د دې مباركې او تاريخي ورځې په ياد كې په رياست سوات او متعلقات كې او په ټول پاكستان د اعلیٰ حضرت والي صېب په حضور كې د خراج عقېدت پېش كولو پې طور د ښادۍ او خوشحالۍ جشن او كليزه كولې شي.[89]

په دولسم دسمبر او پينځم جون چې به كومې مشاعرې كېدلې په دې مشاعرو كې به له سوات نه د بهر علاقو شاعرانو هم ډېر په خوشحالۍ برخه اخستله. دا مشاعرې به بيا په كتابي شكل چاپ كېدلې، چې جهانزېبي مشاعرې به يې ورته ويلې.

## دجشن په ورځ د والي مدح خواني

لکه څنګه چې مخکې ذکر شو د دسمبر پر ۱۲مه او د جون پر ۵ مه به د والي د جشن په موقعه شاعرانو او لیکوالانو والي سوات ته منظوم او منثور عقیدت پېش کولو. کومې مشاعرې چې به په دې موقعه وشوې هغه به د جهانزېبي مشاعرو په نوم چاپ کېدلې. په سوات کې له مشاعرو علاوه به په دې ورځ له سوات نه بهر شاعرانو لیکوالانو د والي سوات په عقیدت کې د نظم او نثر کتابونه هم چاپول او هغه ته به یې په دې ورځ پېش کول. په هغې کې یو څوکتابونه دا دي:

## سوغات : عبدالحلیم اثر افغاني

سوغات: دا د عبدالحلیم اثر افغاني کتاب دی. دا کتاب هغه د ۵ جون په موقعه د والي سوات په خدمت کې پېش کړی دی. په دې کتاب کې هغه داسې لیکې:

د دې مبارکې او تاریخي ورځې په یاد کې په ریاست سوات او متعلقات کې د اعلٰي حضرت والي صېب په حضور کې د خراج عقېدت پېش کولو په طور د ښادۍ او خوشحالۍ جشن او کلیزه کولې شي مونږه هم د دارالا شاعت باجوړ قبائېلي علاقه ملاکنډ ایجنسۍ پاکستان د مطبوعاتو په سلسله کې دا ۱۲ نمبر کتاب د "سوغات" په نوم سره د اعلٰي حضرت والي صېب خلدالله ملکه په حضور کې د عقېدت نذرانه پېش کوو ـ په دې مجموعه کې د ملک د مشهورو ادیبانو او شاعرانو د کلام انتخاب درج کړی شوی دی.[۹۰]

## پټ: سمندر خان سمندر

پټ: دا کتاب د بدربښو سمندر لیکلی دی، په دې کتاب کې هغه له والي سوات سره د خپل تعلق او مینې محبت ذکر کړی دی؟ د دې کتاب په سر ورق یې دا شعرونه لیکلي دي:

د فقـــــــیر او د بادشـــــــــاه تـــــــر مینځـــــــه پـــــــت
دا پـــــــه دواړو دی دلــــــــوی اللـــــــــه رحمـــــــــت
زر،لعلونــــــــــه، جــــــــواهر فـــــــاني دولـــــــــت دی
چـــــــې وي تـــــل بـــــاقي، دی پـــــت هغــــه دولـــــت[۹۱]

## درویش باچا: رشید علي دهقان

درویش باچا: دا کتاب رشید علي دهقان او اشرف دراني لیکلی دی. دا ټول کتاب د والي سوات په مدح او عقیدت مشتمل دی، دا نثري کتاب دی، د کتاب ترون یې د ګران شهزاده ولیعهد په نوم کړی دی. په دې کتاب کې د جشن سوات د دستورې په باره کې داسې لیکل شوي دي:

مونږ هر کال د حضور د جشن په دې مبارکه دستوره کې په څه نه څه رنګ شرکت کوو او له خپله جانبه د حضور سره د خپل عقیدت اظهار هم کوو۔ خو د دې باوجود هم مونږ هر کال دا محسوسوو چې مونږ د هغو په حقله لاهیڅ نه دي وئیلي او لا ډېر څه لیکل پاتې دي."[۹۲]

د سوات د جشن په موقعه د جهانزېب کالج د ایلم رسالې هم خصوصي نمبرې ویستل شوي دي. له دې علاوه د ملک له نورو حصو نه د رسالو خصوصي نمبرونه شائع شوي دي، لکه د والي سوات د نهه شپېتمې دستورې په موقعه د "مجلس پښتون ریاست سوات" کراچۍ نه د "مجله سوات" په نوم خصوصي نمبر شائع شوی دی. له سوات نه بهر او په سوات کې دننه د ډېرو کتابونو ترون هم د والي سوات له نوم سره شوی دی. په دې کتابونو کې د شېرمحمد شېر ناولونه، نوی ژوند او لوظ، د تاج محمد خان زیب سر کتابونه، د سیف الملوک صدیقي کتابونه او نور شامل دي.

## جهانزېبي مشاعرې

دا مشاعرې طرحي او غیر طرحي دواړه قسمه شوي دي. د ۱۹۵۴م کال د دسمبر د ۱۲مې د جهانزېبي مشاعرې لپاره څلور طرحې منتخب شوې وې، هغه دا دي:

١. یو زه یواځې نه یم چې په دې یمه خوشحاله[۹۳]
٢. طوطیان په ګلستان کې په خندا کېناسته جمع[۹٤]
٣. هر سړي مونډلې لویه برخه ستا د لاسه ده[۹٥]
٤. دروغ نه دي رښتیا دي په رښتیا که دې یقین شي[۹٦]

د ١٩٦٥م کال د جون د ٥ مې د جهانزېبي مشاعرې طرح داسې وه"ختلی قوم شي د پستۍ نه خو رهبر غواړي."[۹۷] د ١٩٦٦م کال د جون د ٥ مې د جهانزېبي مشاعرې دوه طرحي مصرعې دا دي:

۱. نور درله څه اوکړي چې پرې ستا مينه پېدا شي
۲. لاړ شه هغه ځای ته چې پرې تل بهار ليدی شي[۹۸]

د جهانزېبي مشاعرو او د والي صيب په عقيدت کې له ليکل شوو کتابونو علاوه په ځينو نورو کتابونو کې هم د والي سوات مدح خواني مونډل کېږي، لکه تفسير تيسېر او فتاويٰ ودوديه کې د والي سوات او باچا صيب د مدح خوانۍ نمونې لاندې ورکړل شوې دي. د تفسير تيسير د مصنف ځوی محمد صالح چې په دويم ځل يې دا تفسير چاپ کړی دی هغه په ديبا چه کې داسې ليکي:

نــو ځکــه مــې تحفــه کــه هغــه ذات تــه چــې بــاني د حکومــت دی
پــه ســوات کــې رائــج کــړی ده انصــاف پــه ډېــر جــرات دی
يـــو داســـې وخـــت راغلـــی وه پـــه ســـوات د جهالـــت
چــــې پېشــــه د خــــونريزۍ وه همېشــــه د دوی عــــادت
چــــې نــــور د هــــدايت پکــــې ســــيدو بابــــا پيــــدا شــــه
نــــو شــــپه د ظلــــم لاړه زر پــــه دوی بانــــدې صــــبا شــــه[۹۹]

او بيا مخکې ليکي چې د ۱۹۴۹م کال د دسمبر په دولسم تاريخ کې د سوات او د ملحقاتو ټول مشران (باچا صيب)راجمع کړل او د پاکستان وزيراعظم لياقت علي خان مرحوم په مخکې يې د حکومت عاليه ټول اختيارات خپل فرزند عقلمند محمد عبدالحق جهانزېب خان ته حواله کړل چې هغه لايق او فايق د زمانې خپلې دی او موصوف دی په هغو صفاتو سره چې د طالوت بادشاه د حقدارۍ لپاره خدای پاک په قرا ن شريف کې بيان کړي دي، چې صفت د علم او جسم دی نو ځکه وايي دا فقير :

دی پــــه علــــم او پــــه جســــم کــــې بــــې مثلــــه عاليشــــانه
پــــه سياســــت اوشــــجاعت کښــــې ډېــــر اوچــــت دی د هــــر چانــــه
ځکــــه حوالــــه شــــه حکومــــت دوی تــــه د ســــوات
د طرفــــه د بادشــــاه نــــه هــــم پــــه حــــال کښــــې دحيــــات
د ډېــــرې هوښــــيارۍ پــــه وجــــه نــــور اوځلېــــدلو
شــــهرت يــــې تــــر افاقــــه تېــــز د بــــرق اورســــېدلو
نــــن چــــې دا زېــــب و زينــــت د ســــوات نصــــيب شــــه
دا پــــه دې چــــې حکمــــران يــــې جهانزېــــب شــــه

دی مونـــــدلی یـــــې شـــــهرت پــــه هـــــر وطــــن
پــــــه ســـــــواتیانو دی رحمـــــــت د ذوالمـــــــنن
چــــې د ســــوات نــــه یــــې جــــوړ کــــړی دی چمـــن
تماشـــــــــې لــــــه یــــــــې راز غــــــلي مـــــرد و زن
شــــکر دا چـــــې خـــــدای ورکـــــړی لـــوی دبـــدب دی
پــــــه والي ســــــوات سره مشـــــــهور دده لقـــــب دی[۱۰۰]

د فتاویٰ ودودیه مصنف محمد ابراهیم بازار ګوي د والي صیب د نوم معمه داسې ویلې ده:

سر د عیـــب یـــې د زمـــین پـــه سر قلـــم کـــړه تمـــام
جهـــان مخـــې لـــه لاړ شـــه پـــه تعظـــیم و ســـلام[۱۰۱]

او بیا له دې وړاندې د والي صیب په باره کې داسې لیکي:

عــــالم کــــه منــــور رخ تابــــان د جهــــان زېــــب
ځکــــه ټــــول جهــــان دی ثنــــاخوان د جهانزېــــب
ښــــائیږي چــــې تحریــــر پــــه آب زرسره شي
هـــر هـــر کـــردار او هـــر فرمـــان د جهـــان زېـــب
اســـباب د ترقـــۍ یـــې فـــراهم کـــړه لـــه هـــرجنس
اقبـــال د ترقـــۍ شـــه پـــه دوران د جهـــان زېـــب
دا عـــــدل دا انصـــــاف او دا امـــــن دا امـــــان
حقّـــا چـــې کرامـــت دی نمایـــان د جهـــان زېـــب
کـــه د عیـــب پـــه ســـترګه ځـــې جهـــان پـــره کـــړې
پیـــدا بـــه نـــه کـــړې هـــم پـــه شـــان د جهانزېـــب
اللـــه دې پـــه کونینـــو کـــې دائـــم لـــري عظمـــت
او تـــل دې مقتـــدر لـــري خانـــدان د جهـــان زېـــب
ابـــراهیم پـــه دې چمـــن کـــې نـــه تنهـــا دی لـــب کشـــا
لـــه هـــر طـــرف نـــه بلـــبلان دي غزلخـــوان د جهـــان زېـــب[۱۰۲]

له دې حوالو نه پته لګي چې په سوات کې ټول د قلم خاوندان په هغه زمانه کې د حکمران مدح خوان وو، په هر قسمه لټرېچر کې به د والي تعریفونه

کېـدل، تـر دې چـې پـه مـذهبي موضـوعاتو مشـتمل کتـابونو، لکـه فتـاوی ودودیـه او تفسیر تېسیر کې هم د حکمران صفتونه شوي دي.

## مذهب

په یوولسمه صدۍ کې د محمود غزنوي له حملو سره دلته اسلام راغی. د سوات خلک زیات خلک سني مسلمانان دي. دلته د نورو فرقو او ډلو خلک ډېر کم دي نو ځکه دلته مذهبي فرقه واریت او اختلافات ډېرکم ښکاري. سره د ډېرو پیچیده مسئلو او نا هموارو حالاتو دلته مذهبي جګړې نشته. په هغه زمانه کې به د سوات حکمران محمد عبدالحق جهانزېب مذهبي جګړې نه خوښولې او د دې د مخ نیوي به یې هر ممکن کوشش کولو، لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول د مذهبي جګړو د نشتوالي بله وجه دا ده چې دلته ټول اولس د یو مسلک اهل سنت والجماعت سره تعلق لري هم دغه وجه ده چې دلته د مذهبي مناظر و، جګړو او د مذهب په نوم د نعرې کمې دي.[۱۰۳] د مذهبي یووالي په باره کې په عروج افغان کې تاج محمد زېب سر داسي وایي:

خپلـــــه ژبــــــه پښـــــتو وایـــــــي افغانـــــــان
پـــــه ټـــــول ملـــــک کـــــې دي ســــــني مســــــلمانان
دلتـــــــه نشـــــــــته دی فرقـــــــــې جماعتونـــــــــه
د مـــــــــذهب د جنـــــــګ جـــــــدل حکایتونـــــــه
د امـــــــیر المـــــــــومنین حکـــــــــم دی صـــــــاف
مـــــذهبي چـــــې پیـــــدا نـــــه کـــــړي څـــــوک خـــــلاف
د شـــــــیعه او احمـــــــــدي څـــــــــه لـــــــــري لـــــــري
دلتـــــــه نشـــــــته د خـــــــلاف هغـــــــه خـــــــبري[۱۰۴]

د سپېڅلي پیغمبر او د صحابه کرامو په باره کې زېب سر داسي وایي:

د نبـــــــي ټـــــــول اصـــــــحاب ســـــــتاره ګـــــــان دي
چـــــې پـــــه صـــــدق دوی د خپـــــل خـــــدای بنـــــدګان دي
کـــــــه صـــــــدیق شـــــــیخ العتیـــــــق دی کـــــــه عمـــــــر
کـــــــه عـــــــثمان ابـــــــن عفـــــــان دی کـــــــه حیـــــــدر
پـــــــه اخـــــــلاص دوی د نبـــــــي کـــــــړی خـــــــدمت دی
د جنـــــــت نعمـــــــت پـــــــه دوی د رب رحمـــــــت دی

پـــــه هغـــــو خلقـــــو د رب فضـــــل احســـــان دی
چــــا ليــــدلی چـــــې نبـــــي اخــــر زمـــــان دی
بيـــا پـــــه صـــــدق يـــــې هـــــم کــــړی اطاعـــــت وي
پـــــه هـــــر وخــــت لائـــق هـــــم دوی د هـــــر نعمـــــت وي
هـــــم پـــــه آل او پـــــه عيـــــال د پـــــاک رســـــول
چــــې هــــر يــــو دی پـــــه درگـــــاه د رب قبـــــول
پـــــه هــــر دم دې هـــــم زمـــــا صـــــلٰوة ســـــلام وي
دا ســـــلام دې هـــــم پـــــه صـــــبح هـــــم پـــــه شـــــام وي
د زېــــب سر پـــــه سر کـــــه درونــــد بــــار د گنـــــاه دی
پـــــه محشرــــــ شــــفيع د ده رســـــول اللــــــه دی[۱۰۵]

کله چې د رياست سوات باني سيد عبدالجبار شاه د عقېدې متعلق د سوات خلکو ته دا خبره معلومه شوه، چې هغه له قادياني يا لاهوري فرقې سره تلعق لري، نو هغه يې د سوات له بادشاهۍ نه معزول کړ. په دې حواله زېب سر داسي وايي:

يـــــــو مـــــــلا شـــــــولو وارد د هندوســـــــتانه
دا مـــــلا د مـــــام ډېـــــرۍ وه واوره جانـــــه
دا مـــــلا چـــــې دلتـــــه راغـــــی کـــــوم ســـــاعت
پـــــه دی ملـــــک کـــــې هغـــــه اوکـــــه دا شـــــهرت
چـــــې ای خلقـــــو ســـــتا ســـــو شـــــاه خـــــو قاديـــــانی دی
دا احـــــوال معلـــــوم ټـــــول ماتـــــه پخـــــوانی دی
چـــــې مـــــلا د ســـــنډا کـــــې پـــــرې خـــــبر دار شـــــه
مخـــــالف هغـــــه دشـــــاه عبـــــدالجبار شـــــه
قاديـــــاني يـــــوه فرقـــــه ده پـــــه پنجـــــاب کـــــې
ماليـــــدلی دا احـــــوال دی پـــــه کتـــــاب کښـــــی
دوی مـــــيرزا غـــــلام احمـــــد تـــــه نبـــــي وايـــــي
پـــــه دې لـــــوی عـــــزت عظمـــــت سره يـــــې ســـــتايي
فرقـــــه بلـــــه هـــــم پـــــه دوی کـــــې ده مشـــــهوره
لاهـــــوري فرقـــــه چـــــې دغـــــه ده مـــــذکوره

دوی هـــــم وايـــــي چـــــې مـــــرزا يـــــو مجتهـــــد وه
هـــــم مصـــــلح د زمـــــا نـــــې او هـــــم زاهـــــد وه
دا فرقـــــې دواړه بـــــاطلې پـــــه رشـــــتيا دي
دوی منلـــــې دعـــــوې پـــــوچې د مـــــرزا دي
عقيـــــده د لاهـــــوري فرقـــــې تمامـــــه
وه د شـــــاه عبـــــدالجبار ای نېـــــک فرجامـــــه
کـــــم ا و زيـــــات کـــــه پـــــه عمـــــل کـــــې د افغـــــان شـــــته
خـــــو پـــــه خـــــتم نبـــــوت د ده ايمـــــان شـــــته
دوی خـــــلاف پـــــه دوی کـــــې نـــــه منـــــي خـــــبره
پـــــه يـــــو دم شـــــو مخـــــالف دوی سرتـــــر سره
ســـــنډا کـــــی مـــــلا هـــــم او کـــــه دا اعـــــلان
چـــــې هرگـــــز دا بادشـــــاه نـــــه دی مســـــلمان
دی معـــــزول کړلـــــه دې قـــــام پـــــه مصـــــلحت
هـــــم د نلـــــود قـــــلا نـــــه يـــــې کـــــه رخصـــــت
ســـــلامت تـــــر ســـــتهانې پـــــورې پـــــه ځـــــان شـــــه
پـــــه درې کالـــــه کـــــې هـــــم تېـــــر د ده دوران شـــــه[١٠٦]

د جماعت اسلامي خلاف هم رياستي حکمرانانو سخته رويه لرله او د دې جمات خلاف هم ډېر لټريچر شائع شوی دی[١٠٧] او همدغه وجه ده چې د رياست سوات په انضمام کې هم د دې جماعت کردار مهم دی. د جماعت اسلامي په باره کې تاج محمد زېب سر ليکي چې اوس که د اسلامي جماعت په نوم مودودي طبقه د اسلام په نوم په زوړ قراني اسلام کې د خپلې منشاء مطابق نوی جماعت جوړوي نو په دې هر څوک پوه دي چې د هغوی اصل غرض او مقصد د اسلام خدمت نه دی،، بلکې د خپل امارت قيام دی. زېب سر بيا وړاندې ليکلي، چې دوی خپل مشر ته خادم اسلام نه بلکې امير جماعت اسلام وايي او په حکومت کې د متوازي حکومت بنياد ږدي او دغه اميران د ملک په مختلفو خطو کې مقرروي او د بيت المال په نامه د ساده لوحو مسلمانو په جېبونو ډاکې غورزوي، خو د رياست عوام په اسلام کې د بيل اسلام خبرې نه اوري او نه يې منلو ته تيار دي او دلته د دغه جماعت افراد په ډېر زور شور سره سعې او کوښښ کوي مگر زياته کاميابي نه

حاصلوي،کوم کسان چې د نظام مخالف او د هغه وخت د شاهي اقتدار نه مطمئن نه وو، هغوی به خفيه او اعلانيه د دوی امداد او حمايت کولو او د سياسي فائدو د حاصلولو په خيال به يې د دوی په کارونو کې سهولت پيدا کولو. زېب سر وايي دا جماعت او د جماعت افراد د ملک د غير مطمئن افرادو چې سياسي او مالي فائدې حاصلوي او هغوی ته شنه باغونه ښکاره کوي، دوی خو په خوله دا وايي چې مونږ صالحانو له په خپل جماعت کې ځای ورکوو خو حقيقت داسې نه دی، دلته ورسره د ملک ظالمان او خاينان شريک دي او د هغوی په تعاون کې زياته دلچسپي اخلي. که دوی هر څومره د اسلام د خدمت دعوې کوي مگر اولس دې دا خبره ياده ولري چې دوی د لستونې ماران دي او د دوی مقصد په مسلمانانو کې د اختلاف پيدا کولو او د سيم وزر جمع کول دي.[۱۰۸]

په رياست سوات کې د جماعت اسلامي خلاف د پروپېگنډې لپاره په پښتو شعر او نثر کې ډېر پمفلټونه ليکل شوي دي، يو پمفلټ چې "بي استاد عالم" نومېږي، شېر سواتي ليکلی دی. دا پمفلټ شل مخونه لري،په اول مخ يې دا شعر ليکل شوی دی:

غـــلا د مـــذهب نـــه چـــې کـــوي مـــا داسي چـــور اوليـــده
ابـــوالا عـــلٰي مـــې پـــه اچهـــره کـــې د لاهـــور اوليـــده[۱۰۹]

يو بل پمفلټ"د غيرت چغه" چې له ايډورډز کالج پېښور نه اختر سواتي ليکلی دی. په يو ځای کې هغه داسي ليکي:

غزا چې د کشمير وه عالم ټول په واوېلا وه هر کس توره تر ملا وه
وې نه دی دا جهاد په دې وينا چې بر ملا وه صرف دا ابوالاعلي وه
اوس ته اوکړه انصاف څه ده فائده د داسې چوره د قام دښمن ته گوره[۱۱۰]

په يو بل پمفلټ کې داسي ليکل شوي دي:

دا څـــوک دي چـــې د ديـــن او د ايمانـــه بـــې بهـــرې دي
پـــه دې صـــفا مـــذهب کـــې پـــېچ و خـــم څـــوک جـــوړوي
دا دي هـــم مـــو دوديـــان ابـــوالا عـــلٰي د دوی سردار دی
خـــدمت لـــه د دجـــال د ده لښـــکر واړه تيـــار دی[۱۱۱]

شېر يو بل پمفلټ ليکلی دی"د مودودي په نوم" په اول مخ يې دا شعر ليکلی دی:

هســـې پـــه ژبـــه زوتـــوي د شريعـــت خـــبرې
مـــونږ تـــه معلـــومې دي داســـتا د شرارت خـــبرې[۱۱۲]

خو له دې ټولو خبرو نه دا پته لګي چې د جماعت اسلامي خلاف او اختلاف دلته هم يو سياسي رنګ لرلو ځکه چې مذهبي اختلافات د دوی په مينځ کې دومره نشته اوکوم اختلافات چې مذهبي رنګ لري هغه چا تر بحث لاندې راوستي هم نه دي، خو صرف په سياسي خبرو بحث شوی دی.

## د رياست سوات ترقي

د سوات په پښتو ادب کې د سوات د ترقۍ ذکر او حوالې ډېرې موندل کېږي. د سوات يو شاعر فيضان د سوات د ترقۍ نقشه په دې ډول بيان کړې ده:

ای زمـــــــــونږه حکمرانـــــــــه عجيبـــــــــه دې حکومــــــــــت دی
ډېـــــر شـــــکرونه خــــو پــــه دې دي چــــې د ســـــوات پــــه رياســـــت دی
داســــــې ډېـــــر رياســــــتونه ګېـــــر جــــــاپېره چــــــې موجــــــود دي
دا ښــــکاره ده ټـــــول مخلــــوق تــــه چــــې د ســـــوات لـــــوی فضـــــيلت دی
ښــــه لـــــوی ســــيند پکــــې بهېــــږي ښـــــې ولــــې پکــــې جــــاري دي
هـــــم بــــا غونــــه پهکــــې شــــته دی تــــه بــــه وايــــې جــــوړ جنـــــت دی
هـــــم پــــــه هــــــره علاقــــــه کــــــې تحصــــــيلدار او يــــــا حــــــاکم وي
فيصــــــلې د قــــــوم کــــــول يــــــې پــــــه انصــــــاف سره عــــــادت دی
هـــــم پـــــه هـــــره محکمــــه کـــــې قـــــاضي ناســـــت وي مفتـــــي هــــم وي
بـــــــل څـــــــه رســــــم رواج نشـــــــته فقـــــــط کــــــار د شريعــــــــت دی
هـــــم ســـــکولونه دي جـــــوړ شـــــوي ځـــــای پـــــه ځـــــای کـــــلي پـــــه کـــــلي
د تعلـــــيم پـــــه حصـــــولۍ کـــــې دلچســـــپي د هـــــر چـــــا نيـــــت دی
د وطـــــن باشـــــندګان هـــــم ټـــــول اکـــــثر تعلـــــيم يافتـــــه شـــــو
د تعلـــــيم پـــــه سلســـــله کـــــې پـــــه وطـــــن کـــــې ډېـــــر وســـــعت دی
جهـــان زېـــب نـــومې کـــالج هـــم خوشـــنما پـــه ســـوات کـــې شـــته دی
پېراســـــــته هـــــــم اراســـــــته دی مـــــــزّين دی خـــــــوب صـــــــورت دی
د دينـــــــي تعلـــــــيم د پـــــــاره ســـــــوات کـــــــې دوه دارالعلـــــــوم شـــــــته
پــــه ســــيدو شريــــف کــــې شــــته دی بــــل چاربــــاغ کــــې عــــمارت دی
دا يــــــو فعــــــــل بهــــــترين دی د اســــــلافو يــــــو تقليــــــد دی
نــــور مفــــاد ټــــول دنيــــاوي دي دا د ښــــکلي ديــــن خــــدمت دی

سوات کې شته هسپالونه ښه علاج د مریض کیږي
د ډاک تار سلسله هم یې د سوات خلقو له راحت دی
هم اکثر په ریاست کې د بجلی جال دی خور شوی
په رڼا باندې روښانه هر یو ښکلې عمارت دی
سوات کې ډېر فوځ جنگي شته هر سپاهي ډېر بهادر دی
هم سپاهي هر یو قامیز دی چې پښ شوی ضرورت دی
اسلحې د جنگ دي ډېرې مشینو نه هم توپونه
کارخانې شته د کارتو سو نمبر جیب ذېبه یې زینت دی
نیغ سړ کونه مزیدارشته چې لارۍ موټرې ځي پرې
ونې ښکلې سایه دارې د سړک لپاسه چت دی[113]

د کوهستان سړک چې په ۱۳٦۰هـ کې جوړ شوی، د هغې په باره کې تاج محمد زېب سر داسې وايي:

په دې کال کې په زمان د شهریار
نوی سړک کوهستان ته شه تیار
دا مشکل کار په دوران د دې سلطان
تر پوره حده شه ختم نن زمان
او سردار احمد علي د شاه وزیر
انتظام اوکه د سړک د تعمیر[114]

د ترقۍ په منصوبو کې د صحت مد په دریم نمبر ساتلی شوی وه. په ۱۹۴۷ کال کې په ریاست کې درې هسپتالونه وو او په ۱۹٦۷ کال کې ۱۷ هسپتالونه تیار وو.[115] په ترقیاتي کارونو کې ډېره توجه تعلیم ته ورکړی شوې وه. په ۱۹٦۷ کې په ریاست سوات کې د پرائمري، لوئر مډل او مډل سکولونو نه علاوه یو ډگري کالج او دېرش هائي سکولونه وو.[116]

د ریاستي فوج په باره کې زېب سر داسي وايي:

د سلطان فوځ هم ټول دی دولس زره
په حساب که ښه ځان پوهه برادره
او په هر یو پلټن کې یو افسر دی
هر افسر د شاه لائق هم د باور دی[117]

**پښتانه**

د پښتو له ولسي او تحريري ادب نه د پښتنو د شناخت او د پښتنو په خپل قوميت د فخر بې شماره مثالونه په لاس راځي. د رياست سوات په پښتو ادب کې د پښتون قوم د شان او شوکت او د دوی د نورو نفسياتي خبرو په باره کې هم ډېر معلومات په لاس راځي. عبداللطيف شاهين، "د پښتون شان" تر سر خط لاندې داسې ليکي:

نـــوم د اســـلافو بـــه د نمـــر پـــه شـــان اظهـــار پرېـــږ دمـــه
شـــان د پښـــتون بـــه دې دنيـــا تـــه يـــو يادگـــار پرېـــږ دمـــه
کـــه يـــو طـــرف تـــه وي سره زربـــل خـــوا زنـــگ شـــوې تـــوره
کلـــه کېـــدی شي چـــې زر وا خلمـــه تلـــوار پرېـــږ دمـــه
د غزنـــــوي همـــــت رښـــا کړلـــــه تيـــــاره د کفـــــر
دا رنـــگ بـــه زه پـــه ټـــول جهـــان بانـــدې کـــردار پرېږدمـــه
چـــې جرگـــه راغلـــه د هنـــدوانو د محمـــود مخـــې لـــه
غـــازي ويـــل څـــه رنـــگ پـــه ځـــان د پېغـــور بـــار پرېږدمـــه
مـــات يـــې بتـــان د ســـومنات کـــړه خـــاص د اللـــه دپـــاره
وينـــا يـــې دا وه چـــې يـــو نـــوم د کـــردار پرېـــږ دمـــه
نقشـــــې بـــــه زه تـــــازه کـــــوم د مشرـــــانو خپلـــــو
نـــه دي جـــائز چـــې وصـــيت دمـــور وپـــلار پرېږدمـــه
پښـــتنې مـــور چـــې مالـــه پـــی د خپلـــو تـــو را کـــول
نـــو زه بـــه څنـــگ د پښـــتون والي دغـــه لار پرېـــږ دمـــه
جفـــا کشيـــ، دلاوري نـــــر تـــــوب جامـــــه ده زمـــا
نـــو داغ بـــه ولـــې پـــه زړگـــي د خپـــل ديـــار پرېږدمـــه
زمـــا شـــاهين کـــردار بـــه ولـــې بلنـــد نـــه وه خلقـــه
د ترقـــی منـــزل طـــی کـــوم د پســـتی لار پرېږدمـــه[118]

د پښتنو په پښتو او پښتونولۍ د فخر په باره کې شاهين داسې وايي:

زه د پښـــتو پـــه نشـــه مســـت يمـــه شراب څـــه کـــوم
د تصّـــور مطـــا لعـــه کـــوم کتـــاب څـــه کـــوم
زمـــا شـــمله د پښـــتو جگـــه ده لامـــړاوې نـــه ده

خپلـــې مـــانۍ د نگـــې لرمـــه د بـــل بـــاب څـــه کـــوم[۱۱۹]

او د پښتون په بده ورځ بیا داسې گویا دی:

چـــې درپـــه در بـــه شي پښـــتون ماتـــه معلومـــه نـــه وه
زمـــونږه حـــال بـــه شي زبـــون ماتـــه معلومـــه نـــه وه
کـــه زه خـــبر وی چـــې تقـــدیر بـــه کنـــاره وي زمـــونږ
د کـــم بختـــۍ پـــه وجـــه بنـــد بـــه ســـتاره وي زمـــونږ
مـــونږ بـــه تـــرې کـــړی وه بېلتـــون ماتـــه معلومـــه نـــه وه
چـــې درپـــه دربـــه شي پښـــتون ماتـــه معلومـــه نـــه وه[۱۲۰]

د سوات له پښتو ادب نه د پښتنو نفسیات په گوته کېږي، دوی اکثر ضد کوي او بیا دغه خپل ضد ته پښتو وایي او له هغه خبرې نه، نه اوړي.[۱۲۱] د پښتون وفاداري هم ډېره مشهوره ده خو په ریاستي دور کې د دوی په دې وفادرۍ کې هم کمی راغلی دی لکه څنگه چې زېب سر وایي چې پښتون وفادار مشهور دی او د دې ولس بیا دا وصف د خاص تعریف لائق وه، خو داسې معلومېږي چې د دې ولس دغه روایتي تعریف اوس اوس مخ په کمي دی.[۱۲۲]

## ذات پات

پښتانه ځان له نورو قامونو نه اوچت او ممتاز گڼي. د پښتو په دور کې او په ریاستي دور کې دلته په ټولنه کې به د یو کس د مقام او مرتبې تعین به د هغه د زمکې په بنیاد و او چې کوم پښتون به په سوات کې د دفتري زمکې مالک نه وه او زمکه به یې چرته خرڅه کړه او دکانداري یا څه بل څه کسب کار به یې شروع کړ، نو هغه ته به بیا پښتون نه ویل کېده او داسې کسان به د مشرانو په کار او بیگار کولو هم مجبور او مامور وو.[۱۲۳] حسب نسب او خانداني ذات پات په هر ځای کې د نظر لاندې وه، لکه په فوځ کې به هم د لوی خاندان خلک بهرتي کېدل، لکه زېب سر چې وایي:

ده تـــرجیح ورکـــړه پـــه فـــوځ کـــې افغـــان لـــه
ده لـــویي ورکـــړه د لویـــو خانـــدان لـــه[۱۲۴]

د استاذانو په تقررۍ کې د حسب نسب د خیال ساتلو مشوره والي سوات ته مولانا عبدالقادر هم ورکړې وه.[۱۲۵] دلته نایانو ته سرکاري ښې نوکرۍ صرف په دې وجه نه ورکول

کېدلې چې هغوی نسلاً کمزوري وو.[126] ډم، نایي او هر قسم کسبگر ته به په سوات کې په سپک نظر کتلی شو. د دې نه علاوه گوجر او کوهستاني قامونو ته هم برابر انصاف نه دی ورکړی شوی. دلته به د اجړو نه د بیزو عشر اخستی کېده.[127]گوجر په ټول سوات کې هر ځای موجود دي خو د سوات په غرئیزو علاقو او سوات کوهستان کې په اکثریت دي. د گبرال د گوجرو په باره کې فیضان داسې لیکلي دي:

گــــبرال بلـــه دره ده چـــې عـــالم یـــې دی شـــوړ پـــوړ
گـــوجران او اجـــړان دي لـــېکن دي پـــه دولـــت مـــوړ[128]

په موزیر نامه کې د زېب سر له دې شعر او داسې نورو شعرونو نه پته لگي چې دلته د هنرمندانو او د عامو پښتنو تر مینځه ډېر فرق و. په دې شعرونو کې زېب سر معزول وزیرانو ته مخاطب دی:

تابـــه وې پښـــتون د نـــوکرۍ اهلیـــت نـــه لـــري
دوی لکـــه د ډم صـــدق اخـــلاق اهمیـــت نـــه لـــري[129]

د سوات په ټولنه کې پښتانه، ستانه دار، گوجر او کوهستاني او کسبگر اوسېدل او له هر یو سره بېله بېله رویه ساتل کېده.

## وسله او پښتون

پښتانه له وسلې سره ډېره مینه لري او وسلي ته د ځوان زېور وایي. په دې اړه د عبداللطیف شاهین دا نظم "د ځوان زېور" د کتلو وړ دی:

تـــوره ډال زېـــور دی د ځـــوان بـــې تـــورې ننگیـــال نـــه دی
سر چـــې یـــې جبـــین پـــرې نـــه وي هغـــه خـــو ځـــه خـــال نـــه دی
ورک شـــه جینـــۍ مخـــی چـــې اشـــنا د تېـــغ تفنـــگ نـــه وي
نـــه وایـــم پښـــتون ورتـــه پښـــتو ویـــل ځـــه ســـوال نـــه دی
هغـــه شـــاه زلمـــی دی چـــې وســـله د غـــاړې هـــار گڼـــي
نـــه گـــڼم هغـــه چـــې پـــه وســـله بانـــدې ســـنهبال نـــه دی
خونـــد کـــوي د ځـــوان سره د ننـــگ نـــاموس د پـــاره مـــرگ
ننـــگ نـــاموس چـــې نـــه لـــري هغـــه غیـــور او ســـیال نـــه دی
قـــــدر د وســــــلې وي د وطــــــن د ننگیـــــالي سره

شـــــنې فـــــولادي تـــــورې لــــه پيـــــدا لاس د شـــــغال نـــــه دی
شـــــال د مجاهـــــد پـــــه اوګـــــو خونـــــد کـــــوي پـــــه وينـــــو رنـــــګ
ســـــور چـــــې د شـــــهيد پـــــه وينـــــو نـــــه وي هغـــــه شـــــال نـــــه دی
نـــــه مـــــنم پښـــــتون نـــــه يـــــې مړانـــــه نـــــه يـــــې زور مـــــنم
څـــــو چـــــې دا جهـــــان يـــــې د هيبتـــــه پـــــه زلـــــزال نـــــه دی
خـــــاورې دې څـــــواني شي بـــــل زيـــــور دې شي تـــــالا والا
ورک دې هغـــه څـــوان شي چـــې پـــه نـــام وطـــن مـــلال نـــه دی
ای شـــاهينه څـــوان خـــو چـــې نـــر ښـــکاري پـــه وســـله سره
بـــې تـــورې څـــوان درونـــد د زنانـــه نـــه پـــه هـــيڅ حـــال نـــه دی[۱۳۰]

د سوات په پښتو ادب کې له تورې ډال نه علاوه د غوګين، چهريدار، دوه نله چهريدار، جرمنۍ طمانچې وغيره ذکر راځي.[۱۳۱] د مچوغنو د جنګ حوالې هم مونډلی شي[۱۳۲] او کوم وخت کې چې د سوات خلکو له تورې ټوپک او وسلې سره مينه وه، نو د هغوی به د قلم مينه څه پاتې شوې وه، لکه چې زېب سر وايي:

هغـــــه وخـــــت د يـــــو ســـــفزو تمـــــام رغبـــــت
وه مائـــــل تـــــوري ټوپـــــک تـــــه هرســـــاعت
او د ســـــوات ټـــــولې طبقـــــې د اميرانـــــو
وې مائـــــل تـــــورې ټوپـــــک تـــــه هـــــر زمـــــان
د هـــــر چـــــا د حفاظـــــت دارو مـــــدار
خـــــاص پـــــه دې وه چـــــې پخپلـــــه وه بيـــــدار
بـــــې وســـــلې د هـــــر چـــــا عمـــــر د تکليـــــف وه
خـــــتم کـــــړې تعلـــــيم څکـــــه دې شريـــــف وه[۱۳۳]

خو چې کله په سوات کې امن وامان راغی او حکومت جوړ شو، نو بيا حکومت له خلکو نه وسلې راجمع کړې، لکه چې وايي:

بيـــــا د قـــــام مشرـــــان جمـــــع کـــــړه ســـــلطان
چـــــې قـــــائم دی اوس د ملـــــک امـــــن وامـــــان
د دښـــــمن د حملـــــو اوس نشـــــته دی وېـــــره
د وســـــلو ســـــاتل هـــــر ګزنـــــه دي اوس غـــــوره

حکومـــــــــت ستاســـــــو د امـــــــن ذمـــــــه وار دی
دا وســـــلې ستاســـــو اوس ستاســـــو پــــه سر بـــــار دی
دا وســـــلې ضـــــبط پــــه حکـــــم د ســـــلطان شـــــوې
پـــــه غـــــرض هـــــم دا د امـــــن د امـــــان شـــــوې[۱۳٤]

د یو هلک د زلمي توب اندازه به د دې نه لګولی شوه چې هغه به ټوپک په اوږه ټینګولی شه.[۱۳۵] پښتون چې به لاس نیوي ته تللو نو هم به یې وسله له ځان سره ګرځوله او دا به یې ویل چې تشه اوږه بده ښکاري.[۱۳٦]

## تهذیب

د سوات والي د مشرق او د مغرب د دواړو له تهذیبونو نه خبر و او دغه وجه وه چې په سوات کې د ریاستي عروج په وخت کې تهذیب ډېر پرمختګ کړی و.

د مشرـــــــق او د مغـــــــرب هـــــــر تهـــــــذیب غـــــــوره
جهانزېـــــــــب دی حاصـــــــــل کـــــــــړی بـــــــــرادره[۱۳۷]

د سوات د ترقي یافته تهذیب په باره کې حبیب الرحمٰن حبیب داسې وایي:

چرتـــــه ســـــوات چرتـــــه ســـــواتیان چرتـــــه تهـــــذیبً
چرتـــــه دا وطـــــن ســـــپک ورک چـــــې روښـــــان تـــــا کـــــړه
ملائـــــک شـــــه دعـــــا ګـــــو دې پـــــه اســـــمان کـــــې
پـــــه خائســـــت چـــــې جوړلـــــه زمکـــــې اســـــمان تـــــا کـــــړه[۱۳۸]

د سوات د تهذیب په باره کې عجب خان قریشي داسې وایي:

تهـــــذیب او نـــــه شـــــعور وه نـــــه اصـــــول د زنـــــدګۍ څـــــه
خـــــو بـــــې مهـــــار اوښـــــان وو پـــــه ګګـــــو وګـــــو روان وو
کمیـــــاب کـــــل ضروریـــــات د زنـــــدګۍ پـــــه دې وطـــــن کـــــې
حـــــال دا وۀ چـــــې د ســـــوات خلـــــق د مـــــالګې پـــــه ارمـــــان وو[۱۳۹]

په حقیقت کې سوات یو زوړ تاریخي او تهذیبي حیثیت لري، دلته د مختلفو مذهبونو او تهذیبونو خلک پاتې شوي دي، د سوات زمکې د مختلفو تهذیبونو عروج او زوال لیدلی دی. په شپاړسمه پېړۍ کې سوات ته د پښتنو له راتګ سره دلته قبایلي ژوند شروع شو او بیا په شلمه پېړۍ کې دلته د یو حکومت بنیاد کېښودل شو. اوس که مونږ وګورو نو

په قبايلي دورکې ټولنيزه ترقي دومره زياته نه ده شوې، د دې په مقابله کې چې کله يو باقاعده حکومت دلته جوړ شوی، نو په هغه دور کې ترقي زياته شوې ده.

## مادي فوکلور

د سوات په پښتو ادب کې د سوات د مادي فوکلور د ډېرو څيزونو ذکر موندل کېږي، لکه په دې شعر کې د جغاول ذکر شوی دی:

ستا مينه تېغ بندي زما د غاړې جغاول شه
په لاس که معشوقو سره خنجر جدا جدا دی[140]

د"نوی ژوند" ناول نه را اخستل شوي لاندينې اقتباس کې د ډېرو مادي او کلتوري څيزونو نومونه راغلي دي :

چې سلام يې وجار باسه نو درودونه او دعاګانې يې ولوستې بيا د تخته پوش نه کوزه شوه او په سها پورې د زوړندې تختې نه يې رحېل او قران مجيد را واخسته ـ يوه سيپاره تلاوت يې اوکه او بيا يې کلام پاک په کځوړه کې ونغښتلو په څو څو واره يې ښکل که او خپل ځائی ته يې ورساوه ـ بيا يې د ځکي نه د مستو يخه کټوۍ راکوزه کړه ـ په چاټۍ کې يې واړوله د ګرونج نه يې داوبو ډک سور منګی راکوز که خپلې خواته يې کېښوده ـ څلور پينځه جامونه يې ترينه ډک کړه او چاټۍ ته يې ور واړول ـ چپه او منداڼو ئی په درې شرطه کنګال کړه ـ روګ يې پرې باندې که او په شوملو شربلو يې شروع کړه ـ چې پۍ نرې شو نو په کوچوټولولويېګوټې پورې کړې ـ پېړه ئی جوړوله او په چاټيګې کې به يې اچوله ـ[141]

په دې اقتباس کې د کلتور د دې مادي څيزونو ذکر وشه: تخته پوش، سها،رحېل، د قرآن مجيد تخته، د قران مجيد کځوړه، ځکی،کټوی، چاټۍ ـ ګرونج، منګی، جام، چپه، منداڼو، روګ، چاټيګی وغېره، دغه رنګ د کټ کټکي ذکر هم راځي.[142]

## د واده رسم و رواج

د رياست سوات د پښتو ادب له مطالعې نه پته لګي چې دلته به کله کله داسې هم وشوه چې د جينۍ د رشتې لوظ به په اوربې کې کېده، يعنې چې کله به هغه پيدا شوه نو د هغې د کوېژدن لوظ به له چا سره وشه[143] او کله به داسې وشوه چې جينۍ به لږه لويه شوه نو د هغې له قميص نه به يې لږه ټکړه پرېکړه او بس رشته به وشوه.[144] دلته به د هلک

او جینۍ نه تپوس نه کېده خو ودونه به د مور پلار یا نورو مشرانو په مرضۍ کولی شو، که د هلک او جینۍ به یو بل خوښ وو او کنه.[145] او که مور و پلار به ورته یو ځای خوښ کړ او د هلک به نه و خوښ نو هغه انکار نه شو کولی، ځکه چې انکار د پښتو په رواج کې یو غټ شرم و،[146]او دا رواج منل او نه منل د چا د مرضۍ خبره نه وه.[147] په دې کې به اکثر داسې هم وشوه چې هلک یا جینۍ چې د هغوی خبره به نه منل کېده هغوی به ځان مړ کړ.[148] د جینۍ پلار به د لور د سر روپۍ[29] هم اخستې.[149]د واده په اوومه ورځ به چې جینۍ کله د خپل مور و پلار کور ته راتله نو دې رسم ته خپه ارته وایي[150]زېب سر د واده د رسمونو رواجونو په باره کې داسې وایي:

جوړېـــــده بــــه نــــاوو جونـــــو لــــه زېــــور هــــم
زرگرانـــــو بــــه هــــم مــــس کــــړه ســــیم وزر هــــم
اوس شرعـــــــي مقــــــدار د مهـــــــر مقـــــــرر شــــــه
د ضرره د کـــــــــالو خلـــــــــق خـــــــــبر شـــــــه
د خـــــــــور لـــــــــور د خرخولـــــــــو شریعـــــــــت
پــــــه هرحــــــال کــــــړی دی ســــــخت مخالفــــــت
ځکــــــه دې مصــــــلح دې قــــــام تــــــه وویــــــل دا هــــــم
چــــــې پــــــه کــــــار نــــــه دی دا شــــــغل نــــــاروا هــــــم
پــــــه واده بــــــه هــــــم د ځــــــوی یــــــو بــــــر بــــــادي وه
بــــر بــــادی تــــه بــــه ځــــوک ځــــه وایــــي چــــې ښــــادي وه
یــــــو طــــــرف تــــــه بــــــه د رقــــــص مجلــــــس ســــــاز وه
بــــــل طــــــرف تــــــه بــــــه د قــــــرض دا انــــــداز وه
د واده بــــــــه شــــــــوې ورځــــــــې درې څلــــــــور وې
چــــــې غــــــویمې د قرضــــــدارو یــــــې پــــــه کــــــور وې
هغــــــه ننــــــگ او نــــــام بــــــه ټــــــول د ده بــــــلا شــــــوه
خېلخــــــا نــــــه بــــــه پــــــرې د ده هــــــم مبــــــتلا شــــــوه
اوس پــــــــــه حکــــــــــم دا میرالمــــــــــومنین

[29] دا روپۍ به یې بیا د لور په واده لگولې او دا رنگ د لور واده به په پلار بوج نه و.

د ښـــــادۍ د هـــــر يـــــو خـــــرڅ او شـــــه تعـــــين[151]

او بيا د مهر او د سر د مال په باره کې داسې وايي:

د لـــــور خـــــور د مهـــــر د هـــــېڅ چانـــــه وه مطلـــــب
د سر د مـــــال اول بـــــه تقاضـــــه وه روز وشـــــب
د سر د مهـــــر زيـــــات وه بـــــل هـــــم نـــــور وو ډېـــــر رســـــمونه
نيوکـــــه وه، خـــــوره وه، صرف کېـــــدل پـــــرې رقمونـــــه
جـــــوړې او هـــــم جـــــامې او تلـــــه راتلـــــه او تويـــــانې وې
د مـــــال د زيـــــان د پـــــاره پـــــه هـــــر قســـــمه بهـــــانې وې
واده هـــــم پـــــه شـــــان شـــــوکت پـــــه ډول سرنـــــا وه
دا رســـــم دوی تـــــه پـــــاتې د دادا او د نانـــــا وه[152]

د واده د رسمونو په باره کې تاج محمد زېب سر دا هم ليکي چي په دې ولس کې د هندوستان يا د پاکستان په شان د جهيز طريقه بالکل نه وه او نه به چا دا مطالبه کوله.[153]

## د غم رسم و رواج

د سوات د پښتو ادب له تجزيې نه پته لګي چې دلته به خلکو د غم په موقعه کوم قسمه رسمونه او رواجونه کول. کله چې به څوک وفات شو نو د هغه په تعلق داروانو، رشته دارانو پسې خبر ليږلی شو. له غسل نه پس چې د مړي جنازه به ووتله نو چې څوک به په جنازې پسې وتلي وو که د جنازې مونځ به يې کړی و او کنه په هغوی به نقدې د سقاط پېسې وېشل کېدې. مليانو به ځان زيات حقدار حسابولو. که مرده به مقروض وه خو د يتيم مال په بې رحمۍ سره د هغه سرپرستانو لګولو او د غه به يې د ثواب کار ګڼلو. د مياګل جهان زېب حکومت په دې سلسله کې قابل قدر اقدامات کړي وو، خو دا مذموم رسمونه لا ختم شوي نه وو. د مرده د جنازې او د اولنۍ ورځې نه بعد به بيا ماښامونه،جمعې، څلوېښتمه او تلين و، چې د اسراف حد ته ر سېدلي وو. اول په دې کې ډېر اسراف وه خو بيا پکې کافي کمی راغلی و، چې د مړي تعلقداران نارينه زنانه به راغلل نو د مرده په کور کې به دېره وو او د هغوی له تسلۍ او خوشحالۍ نه، بلکې د تکليف باعث به جوړېدل. د مرده خاندان به په خپل غم و او بيا به هم هر وخت د دوی د پاره د خوراک څښاک په فکر کې وه. د چم محلې اولس به هم يو بل ته د باهمي همدردۍ په مروجه طريقې سره روتې

کوله، دې ته په عرف کې د غم روتہ وايي. خپل خپلوانو کې نارينه به زر رخصتېدل خو زنانو به اکثر ډېرې ايسارې وې.[۱۵۴] د غم د ځينو رسمونو په باره کې زېب سر په يو بل ځای کې داسي ليکي:

کــــه بــــه هسيــــ ســــړی مړشــــه چــــې بــــې مــــال وه
دبــــې مــــال وارث بــــه هــــم د شــــهرت خيــــال وه
ياپــــه ســــود يــــا پــــه ســــلم بــــه گــــور کفــــن وه
پــــه ډېــــر نــــام او احــــترام بــــه دی دفــــن وه
پــــه اســــقاط کــــې بــــه وېشــــلی دا دولــــت شــــه
مــــرگ لاځــــه کــــړې چــــې بــــه داپــــرې لــــوی افــــت شــــه
کــــه د لــــوگې ځنــــي روح هــــم د يتــــيم تلــــه
خــــو بــــه قــــبر لــــه د مــــړي پــــه تعظــــيم تلــــه
بيــــا هــــم شــــلمې ځلوېښــــتمې هــــم جمعــــې وې
د هــــر چــــا د تبــــاهی د ا علامــــې وې
بيــــا بــــه تلــــين ورپســــې هــــم واغســــته وار
مخــــالف کــــه د کتابــــه وه دغــــه کــــار
بــــل پــــه غــــم کــــې بــــه غوبــــل د غــــم پــــه کــــور وه
يــــو بــــه غــــم او بــــل عــــالم ورسره نــــور وه
د خپلوانــــو فــــاتحې لــــه اوس راتلــــه شــــته
مگــــر ببرتــــه د دوی تلــــه پــــه هغــــه پلــــه شــــته[۱۵۵]

د غم په موقعه د غلطو رسمونو او فضول خرڅونو په باره کې زېب سر داسې ليکي:

يــــو خــــوا بــــه مــــړی پــــروت وه غــــم بــــه پــــېښ پــــه خانمــــان وه
بــــل خــــوا بــــه د يــــتم پــــه مــــال گډشــــوی بيــــا تــــالان وه
پــــه ســــو د او پــــه ســــلم يــــا پــــه گانــــه بــــه يــــې راوړه مــــال
پــــه رســــم د اســــقاط بــــه بيــــا وېشــــلی شــــه فــــی الحــــال
ســــيالي بــــه د يــــو بــــل سره هــــر چــــاکړه پــــه دې صرف
کــــم خــــرچ بــــه هــــم هــــر چــــا پــــه خپــــل عــــزت گڼلــــو حــــرف
راتلــــه بــــه هــــم اســــقاط تــــه د خــــيرات غــــير مســــتحق

دا رســـم زيـــات مهلـــک چـــې پـــه دې ملـــک کـــې وه ســـابق
پـــه سر بـــه هـــم د مـــړي هلتـــه جـــوړ شر او فســـاد شـــه
هـــم مـــال او هـــم ثـــواب بـــه د مـــرده دواړه بربـــاد شـــه
بيـــا وې هـــم قـــط پـــه قـــط ووه جمعـــي او ووه ماښـــامه
بـــاقي د يتـــيم برخـــه بـــه پـــه دې کـــې شـــوه تمامـــه
د پاســـــــه څلوېښـــــــتمه ورپســـــــــې وار وه د تلـــــــين
دا ديـــــن د پښـــــتنو وه نـــــه پـــــوهېږم کـــــه ســـــادين[١٥٦]

مړی چې به کله ښخ کړی شو نو بيا به يې د هغه قبر ته د قران مجيد سبق ويلو.[١٥٧] د مړي ماښامونو کې به اکثر د حلواګانو خيراتونه کېدل، دې ته به يې د حلوه خيرات وې او يو بل خيرات ته به يې لکي خيرات وې.[١٥٨] په غم کې به خلکو عموماً صفا جامې نه بلکې خيرنې جامې اغوستلې[١٥٩] بعضې خلکو به د غم په موقعه د مړي د خاندان والو سره د مرستې دپاره نقدې روپۍ هم ورکولې.[١٦٠] خور لور چې به د سخر په کور مړه شوه نو د کفن حق به يې د هغوی وه.[١٦١]

## د غلط رسم و رواج اصلاح

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شو په سوات کې ځينې داسې رسمونه وو چې هغو د ټولنې لپاره د ناسور حيثيت لرلو، د رياست حکمرانانو د داسې قسمه رسمونو اصلاح وکړه. په دې اړه سيد عبدالغفور قاسمي ليکلي، چې د بادشاه صيب دا خواهش وه چې خپل قوم په اعلٰی تهذيب سره نېک نام او په ارام کړي. لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول چې د غم په موقعه به له لرې لرې نه خپل خپلوان راتلل، د غم خاوندانو او نورو عزيزانو به هغوی ته ډوډۍ ورکوله او د هغوی دارو مدار کې به مصروف وو. له دې نه علاوه به د مړي وارثانو د ځان نه زيات خرڅ په سقاط خيرات کولو او په سود باندې به يې روپۍ اخستلې. د يتيمانو او کونډو نه به تپوس نه کېده، خو غرض دا وه چې نوم وشوی. بادشاه صيب د دې رسمونو اصلاح وکړه او حکم يې جاري کړ چې کوم ځای کې څوک مړ شي د هغه چم خلک دې ګور کفن او جنازه کې شرکت کوي د بهر نه دې خلک نه غونډېږي او څوک چې فاتحې ته راځي نو زر دې رخصتيږي، د هغوی په ډوډۍ دې د هيچا خرڅونه نه کيږي. که په مړي پسې څوک د ثواب په خاطر څه وېشل غواړي نو دا دې د وارثانو د وس مطابق وي، د مړي وارثان به د دې کارونو لپاره قرض پېسې نه اخلي. د ودونو په معامله کې چې کوم بې ځايه

خرڅونه کېدل یا د لور د سر مال چې به اخستی شه هغه بند شه. د لور پلار هر څه چې اخلي هغه به د لور مهر وي. ټول رعیت یې درې طبقې کړل، اعلی، متوسط، ادنیٰ او د هرې طبقې د مهر حدونه یې مقرر کړل. د نکاحونو په معاملو کې به چې کومې مقدمې او جګړې کېدلې هغه د نکاح نامو په اجراء د سره ورکې شولې، د شب قدر اتش بازي په ریاست کې قانوناً منع وه. د اختر درې څلور ورځې به هر کلي کې دزې کېدلې، لارې به بندې وې، واړه او لوی به پکې ژوبل شول، میا ګل عبدالودود دا ناکاره رسم بند که او بیا به اخترې ښې د خوشحالۍ ورځې وې، نه بیا مرچوغنې وې او نه د اخترونو جنګونه، قلاره قلارې وه.[۱۶۲]د اختر د دې جنګ جګړو په باره کې میاګل عبدالودود خپل سوانح کې لیکي چې سوات کې به خلکو په اخترونو کې جنګونه کول، هرې علاقې کې او هر کلي کې چې د اختر مونځ به وشه، نو خلک به له کلي نه ووتل او د بل کلي له خلکو سره به یې جنګ شروع که. دا جنګونه به اکثر د مچوغنو وو، خو کله کله به بیا د ټوپکو استعمال ته خبره ورسېده او د اختر په مبارکې ورځې به مرګونه او ژوبلې وشوې.[۱۶۳] د اختر د جنګونو په باره کې تاج محمد زېب سر وایي:

د اخــــــــترو ورځــــــــــــې دي د ســــــــــــعادت
د رحــــــــــمان پــــــــه مســـــــــلمان دی دا رحمــــــــــت
خـــــو افســـــوس چـــــې د دې قـــــام هـــــر یـــــو اخـــــتر
تېرېـــــــده پـــــــه جنـــــــګ جـــــــدل او هـــــــم پـــــــه شر
ښـــــې جـــــامې بـــــه کـــــړې برابـــــر دې نادانـــــانو
بیـــــا بـــــه لاړه د اخـــــتر جنـــــګ لـــــه یـــــارانو
جنـــــګ بـــــه جـــــوړ شـــــه هـــــم د یـــــو کـــــلي د بـــــل
یـــــو د بـــــل شرم لـــــه جـــــوړ وه دا غوبـــــل
پـــــه اول کـــــې بـــــه د ګټـــــو دا جنګرېـــــز وه
د رســـــتم پـــــه شـــــانې هـــــر ســـــړی سر تېـــــز وه
بیـــــا بـــــه جـــــوړ شـــــه جنـــــګ د تـــــورو د ټوپـــــک
هـــــر ســـــړي بـــــه وه نیـــــولی میـــــدان کلـــــک
ډېـــــر بـــــه مـــــړه او ډېـــــر بـــــه ژوبـــــل افغانـــــان شـــــو
پـــــه ډېـــــر غـــــم کـــــې بـــــه اختـــــه ډېـــــر نادانـــــان شـــــو

کـــــه ســــحر بــــــه چــــا جــــامې واغوســــتې ســــپينې
بيــــا ماښــــام لــــــه بــــه پــــه وينــــو وې رنګينــــې
لکــــــــه رســــــم د ســـــــتي چـــــــې حسرــــــتناک وه
هســـــــې دا رســـــــم د جنـــــــګ د اخــــــتر پــــــاک وه
حـــــــيراني وه بيـــــــا هـــــــم ډېـــــــره پـــــــه دې راز
يـــــــو عــــــالم د دې خـــــــلاف نــــــه کـــــــړه اواز
او د ملــــــــک د هـــــــر يومشرــــــــ دا ســـــــيالي وه
د اخـــــتر پـــــه جنـــــګ يـــــې لويـــــه خوشـــــحالي وه
لا ډېــــر خلــــق اوس راځـــــي هـــــم پـــــه نظـــــر کــــې
چـــــې يـــــې خپـــــې دي مـــــاتې شـــــوې پـــــه اختـــــر کـــــې
د چــــا ســــترګې ړنــــدې شــــوې پــــه ګــــذار دي
هوښـــــيارانو لـــــه اوس دا کتـــــل پـــــه کـــــار دي
کـــــه ســـــيدان او کـــــه مـــــلان کـــــه عـــــام اولـــــس وه
خـــــو د هـــــر ســـــړي هـــــم دې جنـــــګ تـــــه هـــــوس وه
نـــــر او ښـــــځې بـــــه هـــــم جمـــــع تلـــــه صـــــحراله
بادشـــــاه زر قـــــانون کـــــړه جـــــوړ د قـــــوم حيالـــــه
دا خــــــتر جنګونــــــه منــــــع سراسر شــــــو
خـــــاص او عـــــام اوس پـــــه فائـــــدې د ديـــــن خبرشـــــو[١٦٤]

په دغه زمانه کې به جنګونه او فسادونه ډېر کېدل نو ځکه دا متل هم مشهور شوی و، چې "د سوات وي ډک د فسات وي". په دې جنګونو کې به له مختلفو کليو نه د ځوانانو ډلې جوړې شوې او له يو بل سره به يې جنګ شروع کړه [١٦٥] د اخترونو له جنګونو نه علاوه به چې په يو کلي کې د دوو کسانو جنګ جوړ شو، نو نيم کلی به د يو په طرف شو او نيم د بل او دغه شان به جنګ ډېر خطرناک شو. ميا ګل عبدالودود وويل:

کـــه پـــه يـــو کـــلي کـــې جـــوړ هـــم د چـــا جنـــګ شي
بيـــا دا نـــور کلـــی دې ټـــول ترينـــه پـــه ځنـــګ شي
او کـــــه چـــــا هغـــــو لـــــه ورکړلـــــو مـــــدد
نـــور بـــه دوی کـــوي د خپـــل ځـــان سره بـــد[١٦٦]

او چې کله دا قانون نافذ شو، نو په دې قانون سره ډېري جګړې ختمې شوې.

د رمضان په باره کې دا يو رسم د ميا ګل عبدالودود له وخت نه راروان و، چې په سيدو شريف کې به د ماښام د روژه ماتې اعلان د توپې په ډز کېده[١٦٧] خو بيا وروسته دا ختم شو، دلته به اکثر په کلي کې يو غل ډاکو د مسافرو لوټ مار کولو او کله کله به داسې هم وشوه چې د يو چا کور يا نور مال به يې په غلا وسوځولو. د غلاګانو ډاکو او مال جايداد سېزلو د مخنيوي لپاره هم مياګل عبدالودود يو طريقه کار جوړ کړ. په دې باره کې زېب سر وايي:

کـــــه د کـــــوم کـــــلي پــــــه خــــوا کــــې مســــافر لاړ
پـــــــه دوکـــــــه او پـــــــه داړه تـــــــې مـــــــال او زر لاړ
مســـــافر بــــــه هـــــم قســـــم خـــــوري پــــه خپـــــل مـــــال
هغـــــه کلـــــى دې دا مـــــال ورکـــــړي فـــــى الحـــــال
يـــــا دې دا کلـــــى ښـــــکاره هغـــــه رهـــــزن کـــــړي
هســـــې نـــــه چـــــې دا رهـــــزن بـــــدنام وطـــــن کـــــړي
دا قـــــانون ځـــــه وه د امـــــن يـــــو پيغـــــام وه
د پښـــــتون چـــــې اوچـــــت شـــــوى پـــــه دې نـــــام وه
اوس د امـــــن پـــــه لحـــــاظ د ســـــوات مثـــــال
هرګـــــز نشـــــته پـــــه جهـــــان واوره احـــــوال
او کـــــه ځـــــوک د شـــــپې ځـــــه اوســـــيزي پـــــه اور
لا معلـــــوم هـــــيڅ چاتـــــه نـــــه وي غـــــل مختـــــور
بيـــــا د ټـــــول کـــــلي بـــــه دغـــــه زيـــــان شريـــــک وي
کـــــه يـــــو تـــــن کـــــړى دا کـــــار پـــــه شـــــپه تاريـــــک وي
اوس هـــــر ګـــــز ځـــــوک ځـــــه ســـــېزلى پـــــه اور نـــــه شي
هســـــې نـــــه چـــــې تـــــاواني پـــــه خپـــــل کـــــور نـــــه شي[١٦٨]

د فضول خرچۍ د رسم د مخنيوي په باره کې زېب سر داسې وايي:

شــــه تېـــــر هغــــه دوران چـــــې بـــــه فضـــــول وو دعوتونــــه
ډک جېـــــب بـــــه شـــــه خـــــالي ټـــــول بـــــه تالـــــه شـــــو دولتونـــــه
يـــــوازې خـــــو چـــــاى نـــــه دى، چـــــرګ، اګـــــۍ او هـــــم کبـــــاب
هـــــم کېـــــک او هـــــم بســـــکټ ورسره نـــــور هســـــې اســـــباب

دگــــيرې يــــې بريــــت لــــوى دي هســـــې نــــوم يــــې مختصرـــدى
دې قــــام تــــــه لــــــه دي خرڅــــــه رســــېدلی لــــــوی ضرور دی[۱۶۹]

د مياگل جهانزېب له وخت نه مخکې به دکلي خانانو ملکانو د غريبانانو نه ډېر بيگارونه اخستل، دا بيگارونه بيا بند کړل شو. په دې باره کې زېب سر ليکي چې که په يو کلي کې به يو خان يا ملک وه نو د کلي اوسېدونکي په دې مجبور وو چې د هغوی کار بيگار به يې کولو، د هغوی په رضا به يې ناسته ولاړه کوله او د هغوی د حجرې مېلمنو ته به يې کټ بستره ورکوله. هغوی ته به يې په خپلو قلبو مزکې کرلې، د هغوی نهل بوزغلي وغيره پرې تاوان وو او هېڅ چاته دا حق حاصل نه و، چې ځانله د ځملاستو کېښناستو لپاره بېټک او ياحجره جوړه کړي. د حجرې دړ، اندېرى، تېل وغيره ورکول پرې هم لازم وو. مياگل جهان زېب په حکمت او مدار د دې ټولو جابرانه رسمونو خاتمه وکړه.[۱۷۰]

## دښمنی او نورې ټولنيزې خامياني

د رياست سوات د پښتو ادب له مطالعې نه دهغه وخت د خلکو بعضې خرابياني او خاميانې هم مخې ته راځي، لکه د ناحقې گواهي[۱۷۱] بې کاري او بې روزگاري[۱۷۲] د اوبو په وار جنگونه او نور. تاج محمد زېب سر دې په باره کې داسې وايي:

پــــه وار بــــه د ابــــو وه پــــه هــــر ځــــای کــــې خــــونرېزي
تــــالان د مــــال دولــــت وه دا وه حــــال د يوســــفزي
يــو ځــای چــې بــه پــه لوټــه يــا بــه گټــه جــوړ شــه جنــگ
د کــــوز سره تربــــره بــــه شــــه ملــــک پــــه وينــــو رنــــگ
نــــه دا وه چــــې چــــا کــــړی وی تحقيــــق او يــــا اثبــــات
پــه ننــگ بــه هــم د پــړو هــر چــا فخرونــه کــول زيــات
ډنــــگ ډنــــگ کــــلي پــــه کــــلي بــــه وشــــوې نغــــاري
د ورور قتــــــل تــــــه ورور تيــــــار ولاړ وه هــــــر چــــــرې
ودان کــــلي بــــه يــــې وســــول د مســــجد ورک احــــترام وه
انصــــاف دې خلــــق اوکــــړي چــــې دا کفــــر کــــه اســــلام وه
سر تــــو رې بــــه شــــوې ښــــځې او واړه بــــه يتــــيمان شــــو
پــــه قتــــل د مســــلم بــــه د خپــــل رب ټــــول غلــــيمان شــــو
ځوانــــان د پښــــتنو بــــه ټــــول پــــه وقــــت د بهــــار

د بغـــــض د فتنـــــو خـــــزان تـــــالا کـــــړه وار پـــــه وار
امکـــــان نـــــه وه دې ملـــــک تـــــه چـــــې راغلـــــی مســـــافر وی
بيـــــا بيرتـــــه ســـــلامت چـــــې هغـــــه وړی مـــــال وسر وی
د يـــــو کـــــوره بـــــه بـــــل تـــــه چـــــې د چـــــا منکوحـــــه لاړه
بيانـــــه وه خپـــــل خاونـــــد هغـــــه ليـــــدلې عمـــــر واړه[۱۷۳]

په دې قسمه خبرو کې مبالغې هم ډېرې دي، لکه په پاسنو شعرونو کې په اخري شعر کې چې کومه خبره شوې ده دا د منلو وړ نه ده، يعنې چې د چا منکوحه به د خپل کور نه بل کور ته لاړه نو بيا به چا واپس نه ليده.

د دښمن دوست به يې هم خپل دښمن حسابولو [۱۷٤] خو په دښمنۍ کې د يو بل اولاد ته به يې څه نه ويل په خاصه توګه نابالغه اولاد، خو دا زړې خبرې او په معمولې خبرو د شمنې کول نوي نسل نه خوښو.[۱۷۵] د يوسفزو د د ښمنيو په باره کې زېب سر داسې وايي:

د دې قـــــام د يوســـــفزي چـــــې پرېشـــــان حـــــال وه
همېشـــــه کســـــب د دوی جنـــــګ و جـــــدال وه
د دوی شـــــغل د يوبـــــل وتـــــل غـــــارت وه
بـــــې امنـــــي او دښـــــمني د دوی عـــــادت وه
کـــــه پـــــه دوی کـــــې څـــــوک تېـــــر شـــــوي مصـــــلحان دي
ګمنـــــام شـــــوي پـــــه جـــــرات او پـــــه ارمـــــان دي[۱۷٦]

د سوات لارې بالکل ورانې وې او هم به پرې ټول عمر اوبه بهېدلې، ځکه خو دا متل مشهور وه چې د سوات هر شی بې لارې دی خو اوبه يې په لارې دي،[۱۷۷] چې د چا به نارينه اولاد نه وه هغه ته به يې ميرات ويلو[۱۷۸] د سوات عامو خلکو به په کورونو کې سپي ساتل خو د يو نيم نه علاوه د عامو مليانو په کورونو کې به سپي نه وو.[۱۷۹]

## توهم پرستي

د سوات په خلکو کې توهم پرستي موجوده وه، بعضې وهمونه ډېر د پخوا نه را روان وو او بعضې خبرې د وخت تېريدو سره بدلېدې. دلته د نظر د بد اثر د مخ نيوي د پاره سپېلني او نظر پاڼه لوګی کېدل.[۱۸۰] د دې نه علاوه د نظر څاښتونه او تعويذونه هم کولی

شو[181] چې کله به چا ډېره خندا کوله نو دهغې سره به يې دا بد فالي تړلې وه چې دې پسې ډېر لوی غم راروان وي.[182] کله چې به څوک مړ شه نو د هغه په ماښامونو به د حلوه خيرات کولی شه، بعضط خلکو به بيا دغه حلوه نه خوښوله او ويل به يې چې شيطانان پرې د مړي د غسل د ابو نه څاڅکي کوي.[183] ښځې به د خپلو حاجتونو د غوښتلو او د مختلفو مرضونو د دفع کولو د پاره زيارتونو ته تللې او سوالونه به يې کول.[184] طالب العلمانو به د شهيدانو د زيارتونو نه د پاس کېډو سوالونه کول.[185] د پخوا زمانې ولس د فهم په ځای د وهم ښکار او پرستار وه او دغه وجه وه چې په ملک کې د پيرانو او فقيرانو کمی نه وه. د فال، تعويذ، زيارت، پيرانو فقيرانو د دعاګانو اهميت ډېر زيات وه او د وخت چالاکانو هم ډېر په اسانۍ سره په ولس کې خپل اثر رسوخ پيدا کولی شه. په رياستي دور کې د فال تعويذ او نذرانو شکرانو بازار لږ سوړ شه البته قبرپرستي په تېر د ستور بيا هم برابر جاري وه او هېڅ کمی پکې نه وه راغلی. بعضې داسې ناپوهان هم وو چې زيارتونه به يې حاجت روا ګڼل او غير شرعي نامعقول سوالونه به يې ترې کول، خلکو به بعضې زيارتونه د بعضې مرضونو د علاج د پاره په خاصه توګه طور مقرر کړي وو لکه مشهور حصار بابا د حصار چکدرې او باچاګل بابا د دېولۍ يې د ننکو او مختلفو فاسدو دانو د علاج تهېکداران کړي وو او بعضې زيارتونو له يې د بادو بابانوم ايښی وه. دا ناپوهي د زنانو ډېره زياته وه.[186]کله چې به په فصلونو مرض راغی نو د هغو د علاج لپاره به يې شګې د مولې او کرلې.[187] د فال او د نجوم ذکر هم د رياست سوات په ادب کې موندل کېږي، لکه دا شعر:

ســـــــتا د ســــــــتم پکـــــــې جالونــــــــه ګـــــــورم
چـــــــې پـــــــه نجــــــوم بانـــــــدې فالونـــــه ګـــــورم[188]

د ستورو مختلفو اثراتو په باره کې د زېب سر دا شعر وګورئ:

د زهـــــرىٰ او مشـــــتري هـــــم کـــــه څـــــه نحـــــس ســـــعادت شـــــته
د زحــــل او عطــــاردهم کــــه څــــه بغــــض محبــــت شــــته[189]

پــه څلــورم بــاب کــې چــې پکــې د ســوات لــه رياســت نــه د اول دور د پښــتو ادب تجزيــه شــوې ده پــه هغــې کــې د علــم نجــوم پــه اړه ډېــرې حــوالې پــه نظــر راځــي چــې هلتــه پــه تفصــيل سره موجــودې دي. ځينــو خلکــو بــه پــه ورځــو او مياشــتو کــې هــم د سپېره والي او غوړوالي فالونه کتل.

## دارو درمل او علاج

په ریاست سوات کې د باقاعده هسپتالونو د جوړېدو او د ډاکټرانو د علاج معالجې نه مخکې د علاج روایتي طریقې وې لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي دي رنځوران به زیارتونو او بابا ګانو ته تلل، په ملیانو به یې تعویذونه او ځانښتونه کول او هغوی ته به یې نذرانې شکرانې ورکولې.[190] اکثر به خلکو د بیمار د صحت مندۍ لپاره خیراتونه هم کول،[191] زیاتره به یې ګونګړي پخول.[192] کله چې طبیبان او بیا وروسته ډاکټران راغلل نو اول د ملا او د طبیب یا د حکیم ورانه وه او یو بل یې بالکل نه منل. ملا به خلک ځانښت تعویذ او دم درود ته رابښکل او حکیم او طبیب به خپلو نسخو ته او چې کله ډاکټران راغلل نو بیا دا درې واړه د یو بل حریفان شو، ډېرو خلکو به د ډاکټر پر ځای ملا ته تر جیح ورکوله،[193]دلته طبیبان هم هغه طبیبان وو چې هغه په هېڅ هم نه پوهېدل او د هغوی نسخو به مریض ته د ګټې پر ځای ښه تاوان ورکولو،[194] ډېرو خلکو به کورني علاجونه هم کول، لکه په تبه کې به یې شمکی اوټکولو او هغه به یې مریض ته ورکولو،[195] که سپي به څوک زخمي کړ نو په زخم کې به یې ورته رانجه اچول.[196]

## عدالتي نظام

د ریاست سوات د عدالتي نظام په باره کې زېب سر داسې وایي:

پـــــه هـــــر ځـــــای دور قـــــائم د عـــــدالت شـــــه
انصـــــاف عـــــدل تقویـــــت د حکومـــــت شـــــه
د هـــــر چـــــا د پـــــاره شـــــته هـــــم دا اختیـــــار
چـــې خپـــل حـــال هـــم خپـــل باچـــا تـــه کـــړي اظهـــار
او بادشـــــاه پـــــه عـــــدل فضـــــل پـــــه احســـــان
داد رسي مـــــدام کـــــوي د هـــــر انســـــان
پـــه هـــر ځـــای کـــې مقـــرر تحصـــیلداران دي
مشرـــان یـــې هـــم د خپـــل ځـــای مشرـــان دي
بـــل موجـــود پـــه محکمـــه کـــې بـــه قـــاضي وي
د قـــاضي پـــه فیصـــله بـــه ټـــول راضي وي
هـــیڅ امکـــان نشـــته کـــه جـــوړه څـــوک هیلـــه کـــړي
چـــې بـــه ماتـــه د قـــاضي څـــوک فیصـــله کـــړي

د قـــــاضي هـــــم ډېــــر پـــــه دې سره وقــــار دی
هــــر قـــــاضي د حکومــــت وظيفـــــه خـــوار دی
مقـــــرر پــــــه علاقـــــه يــــــو تحصـــــيلدار وي
او پـــــه ضــــلع يــــــو حـــــاکم لائـــــق هوښـــيار وي
پــــه حــــاکم بانـــدې حــــاکم د شــــاه وزيـــر شـــته
پــــــه وزيــــــر وزيــــــراعظم هــــــم د امـــــير شـــــته
دوی پـــه غــــور دادرسي هــــم دهـــر چـــا کـــړي
نــــه ثـــــه کــــبر نـــه غـــرور او نـــه جفـــا کـــړي
نـــور هـــم هـــر قســـمه جگـــړو لـــره قـــانون دی
دا قـــــانون د عــــــدل فضــــــل رهنمــــــون دی[197]

عبدالغفور قاسمي ليکلي، چې په رياست کې په فيصله، ډگرۍ، اپيل، د قرضې په وصولۍ غرض په هېڅ معامله فيس نه شي اخستل کېدی. هره معامله که لويه وي يا وړه، ديواني وي يا فوجداري، د مدعي مدعا عليه يوه پيسه نه لگي اکثر په اوله پېشۍ کې که نه وي په دويمه خواه مخواه معامله غوڅيگي.[198]

## تعليمي نظام

په رياست کې اول اول د تعليم د ا حال و، چې که چرې د ميا گل عبدالودود په نوم به چرته خط راغی نو هغه خط به يې په لاس د يو قاصد تهاڼې (مالاکنډ ايجنسي) ته ولېږلو او قاصد به بيا د خط زباني تشريح مياگل عبدالودود ته کوله.[199]په رياست سوات کې د تعليم په باره کې سيد عبدالغور قاسمي ليکي چې د رياست په ابتدايي زمانه کې د علم د حاصلو لو مکمل اتنظام مياگل عبدالودود شروع که. په هر کلي کې يو دوه عالمان داسې وو چې هغوی د مذهب د اعلیٰ تعليم مدرّسان وو. حکومت هاغه عالمانو ته باقاعده تنخواه ورکوله، د هر جماعت امام ته حکم وه چې هغه دې د محلې ماشومانو ته مونځ، قران او د دين ضروريات ښايي، مکتبونه او مدرسې يې هم جاري کړې وې چې متو سط تعليم په هغې کې حاصلېدلو. د اعلٰی تعليم د پاره به طالبعلمان د انگريزي علاقې کالجونو کې داخلېدل او رياست به د هغوی ټول خرچ په دې شرط برداشت کولو چې دوی به په رياست کې پينځه کاله ملازمت کوي او رياست به دوی له معقوله تنخواه ورکوي. په اول

دور کې د متوسط تعليم دپاره په سيدو شريف کې يو انګرېزي مډل سکول وه.[200] ياده دې وي چې دا د ۱۹۳۹م خبرې دي کوم وخت کې چې جهانزېب کالج نه وه جوړشوی .
زېب سر د رياست د تعليمي ترقۍ په حواله داسې ليکي:

او ابـــــــادې هـــــــم د علـــــــم مدرســــــــې شـــــــوې
د جــــمال کــــمال نصـــيب تـــرې نـــه حصـــې شـــوې
وظـــــــائف د علـــــــماؤ مقــــــــرر شــــــــو
مســــتحق د هـــر يـــو قـــدر هـــنر ورشــــو[201]

کله چې دلته تعليمي ادارې جوړې شوې نو بيا هم د زنانو د تعليم طرف ته رحجان کم وه او يوه پېغله جينۍ سکول ته لېږل به د شرم کار وه[202] د مذهبي تعليم د حاصلولو دپاره په سيدوشريف کې يوه ديني مدرسه هم جوړه شوې وه.[203]په سکولونو او کالجونو کې به له بنيادي ديني علومو نه علاوه صرف عصري علوم زده کولی شول او ديني علوم به په ديني مدرسو کې حاصلېدل، خو بيا هم وخت پر وخت داکوښښ شوی و، چې په سکولونو کالجونو کې دې هم دا علوم شامل شي، لکه د تفسير تيسير په ديبا چه کې د مصنف ځوی مولوي محمد صالح داسي ليکي:

> که چرې حکومت عاليه د سوات په خپله محکمه تعليم کې د دويم کلاس نه تر آخره پورې تدريجاً دي [تفسير تيسر] لره رواج ورکړي نو عام و خاص به ترې فائده واخلي او د مصنّف مرحوم د پاره به تر قيامته پورې باعث خېر او حقيقي يادګار پاتې شي او د خپلې پښتو ژبې قدر قيمت به هم اوکړی شي.[204]

په سوات کې په رياستي دور کې په تعليم کې ښه ترقي شوې وه. د مياګل عبدالودود په وخت کې په دې کار شروع شو او بيا د مياګل جهانزېب په وخت کې په تعليمي ادارو کې زياتوالی راغی او په سوات کې يې جهانزېب کالج هم جوړ کړ.

## جديديت او فېشن

تهذيبي ارتقا فطري خبره ده. د زمانې له بدلېدلو سره د سوات خلک هم تعليم يافته شول او د نورې دنيا له رسمونو رواجونو او فېشنونو نه خبر شول او د سوات په ټولنه کې هم جديديت طرف ته يو بدلون شروع شو، لکه څنګه چې دا فطري خبره ده چې په ټولنه کې چې کله اول يو نوی څيز راشي نو هغه په اسانه نه قبلېږي همدغه شان په سوات کې

فېشن او جدیدیت د ډېرو خلکو خوښ نه و. کوم جدیدیت یا کوم فېشن چې عام شو نو د هغه په باره کې لیکوالانو خپل رد عمل داسې ښکاره کړی دی. عبداللطیف شاهین د فېشن په یلغار کې یوې ورکې پېغلې ته د "ټیډي پېغله" تر سرخط لاندي داسې مخاطب دی:

تـــــه زمـــــا نظـــــر کـــــې دومـــــره ســـــپکه شـــــوې
خـــــدایګو د ډېـــــران د سر ښکـــــه شـــــوې
خپـــــل مقـــــام دې او پېژنـــــه وېښـــــه شـــــه
ای د حـــــوا لـــــورې بـــــې درکـــــه شـــــوې
ســـــتا پـــــه ژوندانـــــه کـــــې مقصـــــودونه دي
تـــــه د خپـــــل مقصـــــد د لارې ورکـــــه شـــــوې
شرم حیـــــا تـــــا د ځانـــــه لـــــرې کـــــړه
نـــــه لـــــرې حیـــــا ســـــترګو کـــــې کلکـــــه شـــــوې
ځنـــــې دې قینچـــــي کـــــړې څـــــادر لـــــرې شـــــه
تـــــف لعنـــــت پـــــه تـــــا شـــــه یـــــو کوتکـــــه شـــــوې[۲۰۵]

سیف الملوک صدیقي په خپل کتاب کې د "ټیډي" تر سر خط لاندې داسې لیکي:

لرشـــــه لیونیـــــه اوس د ګنـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
ښـــــه شـــــوه د پـــــړدې او قیـــــدو بنـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
ګـــــرځم جګـــــه جګـــــه د حیـــــا حجـــــاب مـــــې لـــــرې کـــــه
مـــــه وایـــــه وا عظـــــه ســـــتا د پنـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
شـــــان تـــــه زمـــــا اوګـــــوره چـــــې څـــــومره ډول ناکـــــه یـــــم
څـــــوک چـــــې پټېـــــده د هغـــــه ژونـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
جـــــام او صراحـــــې زمـــــا د شـــــونډو د ګردنـــــه زار
شـــــاته شـــــاته مـــــه ګـــــوره د هنـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
زه او ځـــــما دوســـــت بـــــه د پکچـــــر لیـــــدو لـــــه ځـــــان لـــــه ځـــــو
کلـــــب تـــــه بـــــه بـــــل بیـــــا یـــــم د خاونـــــد خـــــبرې لاړلـــــې
وخـــــت بـــــدل شـــــه داســـــې صـــــدیقي د ســـــړي وړانـــــدې ځـــــي
لـــــورېې پکـــــار نـــــه ده د فرزنـــــد خـــــبرې لاړلـــــې[۲۰۶]

په ایلم رساله کې نادرخان د ټیډي فېشن په باره کې داسې لیکي:

تعليم يافته زلمي او پېغلې دا فېشن ډېر خوښوي ـ او هغه په دې ډېر غټ فخر کوي، دې فېشن ته ټيډي فېشن وايي ـ لعنت دې شي په داسې لغړ او سړي خور فېشن باندې د دې نه که سړی لنډيلغړ اوګرځي نو هېڅ فرق به پکې نه وي ـ ولې چې په دې فېشن ايبل جامو کې د سړي هراندام بيل بيل ښکاريږي او د وجود اتار او چړهاؤ يې واضحه په نظر راځي ـ که دې ته سړی د ټيډي فېشن په ځائی د سړي خورو فېشن ووايي نو هېڅ کله به غلطه نه وي ـ کوم چې د نوې زماني د خلقو خوښ فېشن دی.[۲۰۷]

له دې نه پته لګي چې په هغه دور کې چې د هلکانو او جينکو په لباس کې کوم بدلون راغلی و، نو دغه فېشن د خلکو نه و خوښ شوی او ليکوالانو يا نېغ په نېغه او يا په طنزيه انداز کې پر دغه فېشن نيوکې کړي دي.

## تفريح او مېلې

چې کله په سوات کې د اخترونو په موقعو د جهل مظاهرې او جنګونه ختم شول، نو دا ضروري وه چې د اختر په ورځ دې خلک په سيل او تفريح کې مصروف شي، نو دې غرض لپاره مياګل عبدالودود له مينګورې نه دوه ميله لرې د سيند پر غاړه په يو ميدان کې د مېلې لګولو طريقه جاري کړه. د سوات د اخترونو دغه مېله بيا ډېره دلچسپه هم ثابته شوه، دې مېلې کې به د نورو کرتبونو نه علاوه نېزه بازي هم کېده. د سوات خلکو ته بيا مېلې ډېر خوند ورکړ. دا مېله به په وړکوټي اختر کې څلور او په لوی اختر کې پينځه ورځې جاري وه. ورو ورو د سوات خلک د اختر په خوشحالۍ او د اختر په مقصد پوهه شول او دغه رنګ د سوات د اختر مېله ډېره مشهوره وه. د پښتونخوا د هرې علاقې نه به په سوونو خلک دې مېلې ته راتلل او په دې طريقه د پښتونوال ماحول دا مېله د قومي اتحاد، محبت او د باهمي ميل جول يوه مفيده ذريعه ثابته شوه. په دې مېله کې جواري يا مړزان جنګول يا نور بيهوده کارونه منع وو، لنډه دا چې د سوات مېله د پښتون تهذيب يوه نمونه وه.[۲۰۸] د دې مېلې په باره کې زېب سر داسې ليکي:

ده پـــه ســـيند کـــې ښـــه صـــفا جـــوړه بنګلـــه کـــړه
مقـــــرر يــــــې د اخـــــتر هلتـــــه مېلـــــه کـــــړه
ولي عهـــــد جهـــــان زېـــــب صـــــاحب وقـــــار
د تفـــــريح ســـــامان کـــــه ټـــــول هلتـــــه تيـــــار

ښـــــځې نـــــر هـــــم شـــــو جـــــدا د يـــــو د بلـــــه
دا فرمـــــان دی هـــــم د ســـــوات د شـــــاه افضـــــله
د هـــــر قســـــم بيهـــــوده ټـــــول حرکـــــات
قانونـــــاً دي منـــــع کـــــړي شـــــاه د ســـــوات[۲۰۹]

د اختر په موقعه د سوات د مېلې ذکر په يو بل ځای کې زېب سر داسې کوي:

اخـــــتر بـــــه نـــــه شي مبـــــارک پـــــه مبـــــارک ويلـــــو
نـــــا مبـــــارک نقـــــش کـــــه تـــــا پـــــه خپـــــل دفـــــتر اېښـــــی دی
فضـــــول رســـــمونه تلـــــه راتلـــــه گرځېـــــده نـــــه دي پکـــــار
پـــــه هـــــر عظـــــيم کـــــار کـــــې رحـــــيم عظـــــيم خطـــــر اېښـــــی دی
چـــــې پـــــه هـــــر وخـــــت تـــــالره بخـــــت او احـــــترام درکـــــوي
هغـــــه پېغـــــام تالـــــه د ســـــوات بادشـــــاه نېـــــک نـــــام درکـــــوي
کـــــه زيـــــات غـــــرض دې د عشرـــــت وي نـــــو مېلـــــې لـــــه لاړشـــــه
هلتـــــه ســـــامان يـــــې د تفـــــريح ټـــــول سراسر اېښـــــی دی
د جنـــــگ جـــــدل او د فتنـــــو دور اوس پـــــاتې نـــــه شـــــه
نظـــــام د صـــــلحې اوس د امـــــن پېغمـــــبر اېښـــــی دی[۲۱۰]

وايي چې له دې نه اول به په کانجو کې د شهيد بابا په بڼ کې يوه مېله لگېده، نارينه او زنانه دواړه طبقې به دغلته موجود وې او د قسما قسم قومي سرودونو مجلسونه به گرم وو، ډول سرنا به هر ځای غږېده. سندر غاړي (چتيان طالبان) به په جوش خروش گډېدل او ملکي لوليانو به هم نڅاوې کولې او دا ولس به ترې چاپېره ولاړ وه، د واه واه نعرې به اسمان ته رسېدې، ناڅاپه به نوي سرودگران په زوړ سوران د غلته راورسېدل او په يو ځای کې به يې ټنگ ټکور جوړ کړ او چغې سورې به يې پورته کړې، نو دې ولس به دا زاړه سرودگر يوازې پرځای پر ښنودل او په نوو پسې به لاړل.

په شهيد بابا کې د محمد عبدالحق جهانزېب حکومت د نارينو د اجتماع بنديز کړی وه. نارينو او زنانو به په يوه اجتماع کې شرکت هېڅ کله نه شو کولی او بيا به د اختر مېله له سيند نه مينگورې طرف ته لگېده او قسم قسم تماشې به پکې موجود وې او د رياست نه بهرخلک به ورت هم راتلل.[۲۱۱] د مياگل عبدالحق جهانزېب پخپله هم د ستار اواز او ساز خوښ وو او کله کله به د سرود مجلس کېده، خو د سرود دپاره تنخواه خواره سرودگر نه وو

مقرر شوي.[۲۱۲] د مياګل عبدالودود مشر نيکه اخون عبدالغفور (سيدو بابا) يو ځل د تماشې خلاف فتوٰی ورکړې وه او دا يې ويلي وو چې سوات کې به هېڅ څوک په ودونو يا نورو خوشحالو تماشې نه کوي، له هغې ورځې نه بعد په ټول سوات ډمې ګډېده، مجلسونه او داسې نورې تماشې بندې شوې وې.[۳۰] دغه رنګ د چيلم څښل يې بند کړي وو، هېڅ چا سوات کې چيلم نه شه څښلی.[۲۱۳] زېب سر ليکي چې دلته د شراب خانو[۳۱] او ناټک د نومه څوک اشنا نه دي.[۲۱٤] د ۱۹۵۸ کال د والي د يو حکم مطابق چې څوک د نشې په حالت کې يا د شراب څښلو په حالت کې په کوڅه يا بازار کې ونيولی شه نو پينځه سوه روپۍ جرمانه به ورکوي او يوه مياشت به قيد کېږي.[۲۱۵] د تهيټر په باره کې زېب سر په "تماشه" نظم کې داسې مکالمه بيان کړې ده:
يو يار بل ته

زنــــده نــــاچ دی پــــه تهيټـــر کـــې راشـــه وينـــه اشـــتهار
خـــواه مخـــواه بـــه ځـــو بېګالـــه ځـــان د وختـــه کـــړه تيـــار
يـــــو ســــاعت بـــــه اول درومــــو د ارام مقــــام بــــه مومــــو
د عشرـــت شراب بـــه شـــو مـــو پـــه محفـــل د ګـــل نګـــار
هغــــه ځــــای د خوشـــحالۍ دی د ســــيالانو د ســــيالۍ دی
دا مجلـــس د نېـــک فـــالۍ دی هـــم د عـــيش هـــم د وقـــار

هغه بل يار

دا تـــه څـــه وايـــې نادانـــه بـــس کـــه بـــس لـــه دې بيـــا نـــه
دا خــــلاف وه ســــتا د شـــــانه تــــاچې او کـــــړه دا ګفتـــــار
هغــــه ځــــای د ضـــــلالت دی ځــــای د غـــــم او د ذلـــــت دی
کـــه دې ديـــن کـــه دې دولـــت دی تابـــه کـــړي پـــه دواړو خـــوار
دا دښـــمن ســــتا د وطـــن دی دا يـــې مکـــر دايـــې فـــن دی
دا خــــزان ســــتا د ګلشــــن دی دا صر صر ســــتاد ګلـــــزار
دا هـــم ســـتا د مـــرګ ښـــادي ده ســـتا د ملـــک هـــم بربـــادي ده

[۳۰] وايي چې د دې فتوې باوجود هم ټول په ټوله دا تماشې نه وې بندې شوې.

[۳۱] شراب خانې خو نه وې البته د شرابو ټېکې به د والي صېب په حکومت کې د سرکار په اجازت ورکولې کېدې.

صــــد افســـوس څـــه نـــا مـــرادي ده چـــې پـــرې تـــه شـــوې گرفتـــار
دا طلســـم ســـتا د بنـــد دی ســـتا دشـــمن لـــوی دا نشـــمند دی
څـــوک چـــې بنـــد پـــه دې کمنـــد دی بیـــا تـــل گرځـــي شرمســـار
دا تـــوهین ســـتا د اســـلام دی دا هـــم شرم ســـتا د قـــام دی
دا هـــم ډک د زهـــرو جـــام دی چـــې بـــه تـــاکړي خـــواروزار
دا دوران د انقـــــلاب دی انقـــــلاب خانـــــه خـــــراب دی
د هغـــو څـــه خـــورد وخـــواب دی چـــې پـــه بنـــد کـــې وي حصـــار
ســـتا کـــه خيـــال د خپـــل عـــزت وي هـــم دې حـــب د خپـــل ملـــت وي
ســـتا بـــه تـــل عـــادت ســـنت وي د نبـــي خـــيرالا بـــرار
د سر حـــد ځنـــي پيغـــام تـــل راځـــي هـــم ســـتا پـــه نـــام
همـــدردان هـــم د اســـلام صـــد حسرـــت کـــړي ســـتا پـــه کـــار
پـــه افســـوس فرېـــب سره ژاړه ســـتا د عـــيش زمانـــه لاړه
چـــې دې لاړه يـــاران واړه نـــن صـــبا دی ســـتا رفتـــار[۲۱۶]

خو ډاکټر سلطان روم ليکي چې رياست ډېر زر مغربي او سيکولر رنگ واخسته:

Swat State 'became increasingly secular. It is singificant to note that one of Abdul Wadud first moves on gaining real power was to banish all religious mendicants form Swat.' In Swat, unlike in Dir, 'the ruling family, while descended from a Sufi mystic, was secularizing and westernizing as rapidly as possible as it solidified its rule under British protection.'[۲۱۷]

ترجمه: د سوات رياست په تېزۍ سره سيکولر جوړېده، دا خبره د يادولو وړ ده چې کله عبدالودود ته حقيقي اختيارات مېلاو شول، نو هغه ټول مذهبي ملنگان په سوات بند کړل. په سوات کې هم د دير د رياست په شان حکمرانه طبقه د يو صوفي او ولي په اولاد کې وه، خو دوی د برتانوي تحفظ لاندې دې رياست ته په تېزۍ سره مغربي رنگ ورکولو او دا يې سيکولر کولو.

ډاکټرسلطان روم صيب مخکې ليکي چې د مياگل عبدالودود په وخت کې په سېنما پابندي وه خو دا پابندي برقرار پاتې نه شوه او مياگل عبدالحق جهانزېب (والي سوات) د سېنماگانو د جوړولو اجازت ورکړ او تر ۱۹٦۵ پورې دلته دوه سېنماگانې جوړې

شوې وې، يوه سوات سينما او بله طارق سينما.[218]د مياګل عبدالودود په وخت کې به شراب چا په ښکاره نه شو څښلی خو چې کله هغه د حکومت نه لاس واخسته نو بيا حالات بدل شول. اګر چې والي صيب د مقامي شراب جوړونکو نه تحريري ضمانتونه اخستي وو چې بيا به شراب نه جوړوي خو د بهر نه د شرابو راتګ موجود وه. د دې به باقاعده ټهېکې ورکول کېدې او د دې نه به سرکاري خزانې ته هم ګټه رسېده.[219] د فلمونو په هکله د ۱۹۶۹م په ايلم رساله کې زيدالله خان مستانه ليکي چې که فلم خراب څيز وی نو حکومت به ورته دومره ترجيح نه ورکوله ځکه چې هر سر براه ملت دا غواړي چې د هغه رعايا دې په معاشي لحاظ سره ښکلی او ارام ژوند تېر کړي. هغه وړاندې ليکي چې په فلم کتو کې دوه فايدې دي يو دا چې حکومت په فلم جوړوونکو باندې ټېکسونه لګوي او هغه دولت د غريبانو مسکينانو د تعليم او نورو داسي ښېګړو په کار باندې لګوي،که چرې مونږ فلم کتل پرېږدو نو حکومت ته چې د فلم نه کومه فايده حاصلېږي هغه به بنده شي او د ملک په اقتصادي حالت کې به فرق راشي. دويم دا چې د فلم کتو نه ښه تاثر پيداکېږي خو په دې شرط چې فلم کتونکي له حد نه زيات فلمونه نه ګوري، ځکه چې په داسي کولو سره د ډېرو فلم کتونکو په اخلاقو غلط اثر پرېوځي، د وخت او د پېسو نقصان دی، فلم د تعليم ورکولو ښه ذريعه ده او د جهالت بېخ کني کوي او بله غټه فائده يې دا ده چې د خلکو نه د زور زياتي احساس لرې کوي.[220]

## د لوبو ميدانونه

په رياست سوات کې له نورو لوبو نه علاوه د پولو او د ټېنس ميدانونه هم وو. په دې اړه زېب سر داسې وايي:

د ســــــــبدو د مدرســـــــــې چـــــــــې عـــــــــمارت دی
هغـــــــه هـــــــم لائـــــــق د هـــــــر قســـــــمه صـــــــفت دی
د پولـــــــــــــو او د ټېـــــــــــــنس ارت ميـــــــــــــدان
خـــــاص پــــــه خــــــوا د مدرســــــې کــــــې دی عيــــــان[221]

د خلکــو د ســيل او تفــريح لپــاره مواقــع پــه مرکــزي ځــايونو کــې پيــدا کــول د حکومت کار و.

## د ماشو مانو لوبې

د رياست سوات په پښتو ادب کې چې د ماشومانو د کومو لوبو ذکر راغلی دی، په هغې کې غوزان، خرصلال، انگۍ، ځپلي مار[۲۲۲]، باگه[۲۲۳] او نورې مشهورې لوبې دي.

## د ښځو ژوند

د رياست سوات د پښتو ادب له تجزيې نه په سوات کې د ښځو د ژوند ژواک او د هغوی د حقونو او ذمه واريانو اندازه په اسانه لگېدلی شي. دا خبره په عام طور منلی شي چې د ښځينه وو ستر مذهباً لازمي دی، خو په هغه زمانه کې به د ولس د متوسط او ادنٰی طبقو ښځو د دې داسې خاص خيال نه ساته، اکثرو ښځو به په کليو او صحرا خپل خپل کارونه کول، واښه لرگي به يې راوړل، ځنگل ته به تللې، په بازارونو کې به يې سود سودا کوله او په دغه زمانه کې به د لويو او معتبرو کورنو ښځې په کورونو کې ناستې وې. د ښځو د ستر په باره کې تاج محمد خان زېب سر داسې ليکي:

> که ستر د مذهب په لحاظ کيږي نو په دې صورت کې خو د امير او غريب سوال نه پيدا کيږي ـ اسلام زنانو ته د گواهۍ ورکولو پوره پوره حق ورکړی دی نو په کورونو کې دننه زنانه به خپل شهادت ورکولو کې د خپل دغه اسلامي حقه څنگه فائده واخستی شي ـ اسلام په واضحو او صفا الفاظو کې دا اعلان کوي چې ستر د عورت فرض دی مخ لاس او خپې هرگز عورت نه دی مگر دلته دلاس او خپاو مخ پټول هم لازمي او ضروري دي. [۲۲٤]

په هغه وخت کې د ښځو د تعليم هم عام خلک په حق کې نه وو، بلکې خلاف به يې وو. دلته د ښځو د تعليم ډېر کمی و او ښځو ته تعليم ورکول به په پښتو داغ گڼل کېده، دغه وجه وه چې يو شاعر داسې وايي:

> گـــوره د نـــورو خلقـــو ښـــځې پـــاس اســـمان لتـــوي
> زمـــونږه ښـــځې پـــه دې زمکـــه باباگـــان لتـــوي[۲۲۵]

د ښځو د تعليم د ضرورت او اهميت په باره کې نعمتي ليکي چې له دې خبرې څوک انکار نه شي کولی چې بې تعليمه ښځې ډېرې توهم پرستې او بيا لا پښتنې بې تعليمه ښځې خو د نوکو څوکو سره وهم وهم وي. د دوی د وهمونو لرې کولو لپاره ډېره ضروري ده چې د ښځو د تعليم طرف ته توجه وکړی شي، وهم داسې ناکاره څيز دی چې د ملک، قوم او دين درې واړو په حقله نقصان رسونکی دی. په هرې کورنۍ کې قسم قسم

رسمونه رواجونه د تعلیم د نشوالي په وجه موجود دي لکه پیریان، دېوان، تعویذ، منتر، په قبرونو سوال کول وغېره وغېره.[۲۲۶]په هغه زمانه کې به پښتنو د ښځو د تعلیم باره کې دا شکایت کوي چې که لور خور تعلیم وکړي نو هغه به فضول خرڅه شي، هغه به ازاده شي یا هغه به بد چلنه شي او که اوس د کور ډیوه ده نو بیا به د محفل ډیوه شي.[۲۲۷] تاج محمد خان زېب سر هم وایي چې دا ولس د زنانو د تعلیم طرف ته هېڅ خیال نه کوي اګر چې والي صیب د زنانو د تعلیم دپاره یو څو سکولونه جوړ کړي وو خو دې د تمام ولس د زنانو د تعلیم بندوبست نه شو کولی. په هغه زمانه کې که سکولونه زیات هم وو خو د زنانو استاذانو موندل ګران وو.[۲۲۸]په ښځو د پردې قید خو خامخا و، خو د دوی د سیل او تفریح لپاره څه انتظام نه و او دغه وجه وه چې دې حالاتو د ښځو په صحت هم ډېر خراب اثر غورځولی و، کوم ته چې زېب سر داسې اشاره کړې ده:

> د قید او پردې دا جابرانه رسم اوس دې حد ته رسېدلی دی چې د معتبروکورونو زنانه اوس په کم عمرۍ کې زړې معلومیږي او اکثرې غریبانې بیمارانې وي - ولې چې دوي د همېشه د پاره د تازه هوا او نقل وحرکته محرومې وي.[۲۲۹]

خو دلته دا خبره هم یاد ساتل پکار دي چې په زنانو دومره زیاتې پابندیانې هم نه وې د کومو تشبیهه چې زېب سر له قید سره ورکړې ده ځکه چې زنانه به بابا ګانو ته تللې، میلو ته به تللې او دغه رنګ پټو ته به هم تللې. د ښځو د سزا په باره کې تاج محمد خان زیب سر لیکلي، چې دې په باره کې دوه زړې طریقې رائج وې، ځینو خلکو چې له خپلو ښځو سره په خبرو اترو قدرې څوک ولید او یا د چا عیب ژن، دروغژن او دښمن په لمسون به یې په خپلو منکوحو شک پیدا شو نو په ډېره بې رحمۍ سره به یې قتلوله او هېڅ انصاف، تحقیق او تپوس به نه وه او بعضې کسان به داسې وو چې په فعل شنیع خپلې منکوحې په خپلو سترګو وینې او د ریاستي عدالتونو په فیصلو به یې اکتفا وکړه. زېب سر دا هم لیکي چې عدالتونو خو به نارینو ته د قید او جرمانې مناسب سزا ورکړه مګر د فاحشو زنانو د سزا معقول انتظام نه وه او دا فاحشې زنانه به دحفاظت لپاره خپلو رشته دارانو ته حواله کړی شوې، نو د دې نتېجه به دا وه چې د دې فاحشې زنانه خاوند په عدالتي فیصلو صبر نه شه او د ښځې د ټول خاندان سره به یې دشمني ساتله او د یو اوږد فساد سبب به جوړ شه او دا په دې چې دغه زنانه به بیا چا کور ته راوستی نه شوه او د موهومې بدنامۍ

په خیال به یې ورته طلاق هم نه شو ورکولی، د زنانه د نان نفقې انتظام به هم بیا نه وه نو نورې مسئلې به ترې جوړې شوې.[۲۳۰]

## د ښځو راهداري

چې کله جهانزېب د وزارت عظمٰی اختیارات په لاس کې واخستل نو د ولس د ناموس د حفاظت او د اغوا د وارداتو د ممانعت په غرض یې دا فرمان صادر که چې هېڅ زنانه به بې د سرکاري تصدیق او شناخت نامې نه د ریاست نه بهر نه شي تلی او که تلل یې ضروري وي، نو د خاوند، ورور او د پلار په ملګرتیا کې به ځي او په هر حال به ورسره راهداري وي. د دې فرمان په وجه د ولس د ناموس د کافي حده پورې حفاظت اوشه او د ولس د ناموس د دښمنانو په لارو کې مشکلات پیدا شول.[۲۳۱]په ریاستي دور کې به ښځو ته ته په میراث کې حصه نه شوه ورکېدی[۲۳۲] بعضې خبرې داسې وې چې په هغو کې به د زنانو ډېر خیال ساتلی شه لکه په جنګونو کې به په زنانو یا په ماشومانو ګوزار نه شو کولی.[۲۳۳] د زنانو د ګودر په لار نارینه سړي ته د تللو اجازت نه وه [۲۳٤] باچا صیب په خپل سوانح کې لیکي چې خویاندو، لوڼو او ښځو ته مې هغه حقوق ورکړل کوم چې هغوی ته شریعت ورکړي دي[۲۳۵] خو په ریاستي دور کې هم د رواج قانون نافذ وه او ښځو ته به په میراث کې حصه نه مېلاوېده. میاګل عبدالودود دعوه ځکه غلطه ده چې هغه ښځې د وراثت له حق نه محرومې کړې وې او په مهر کې چې کومه زمکه به ښځې ته مېلاوشوه نو د هغې په ګاڼه یا خرڅ به هم پابندي وه.[۲۳٦]

## مور او د ماشوم پالنه

قانته بېګم په خپله سفرنامه کې لیکي چې ما په سوات کې یوه عجیبه خبره دا ولیده چې د سوات د اعلی او متوسطې طبقې زنانه خپلو بچو ته پۍ نه ورکوي بلکې دایانې ساتي.[۲۳۷]

## ټولنیز تعلقات

د سوات خلکو به لکه د نورو پښتنو له یو بل سره په ټولنیز ژوند کې مالي او جاني مرسته کوله، دې ته په عام عرف کې اشر غوبل، غم ښادي او کلی کلوبغي وایي. د باهمي امداد چې کومې شریفانه طریقې دې ولس اختیار کړې وې هغې د زباني جمع خرچ سره

هېڅ تعلق نه لرلو، دې ولس صرف د عملي کار سره کار وه. د واده په موقعه به یې د خپلو تعلق دارانو سره د وس مطابق امداد کولو چې د پښتنو په اصطلاح کې به یې ورته جنج ویلو. دا رنګ د غم په موقعه به یې هم د غمژن مناسب امداد کولو. د کلي کلویعۍ هم مختلف رسمونه جاري وو او له یو بل سره به یې په لو، اشر غوبل، دیوال، بلۍ، نهل، بزغلي کې ملګر تیا کوله.[238] د ټولنې د مختلفو خلکو په دې ترون او اتفاق اتحاد کې د حجرې او جماعت ډېر لوی کردار و.

## حجره

حجره به د ټول کلي د مېلمنو یو شریک ځای و، دا به دکلي د خان یا ملک د نګرانۍ لاندې چلېده. پښتنو نارینو به په کور کې ډوډۍ نه خوړله خو په حجره کې به یې ډوډۍ خوړله.[239] په ریاستي دور کې د کلي د خان ملک د حجرې دړ، اندېرې او تېل به د دغه کلي غریبانانو خلکو په بیګار کې کول، د حجرې مېلمنو ته به هم هغوی کټ بستره راوړله او په یو وخت کې داسې هم وه چې هېڅ چاته دا حق حاصل نه و، چې ځانله یې د ځملاستو کېښناستو د پاره بېټک یا حجره جوړه کړې وی[240] او که چرې چا به جوړه کړه نو هغه به ورته د کلي خان په نوکرانو باندې وسېزله[241]دا خبرې د ریاستي دور نه مخکې عامې وې او ورسته دا ظلمونه کم شوي وو. حجرې د ولس د زړو عزت مندو روایاتو نخښې وې او د قومي مجلسونو او غونډو ځایونه وو خو افسوس چې دې عزت مندو روایاتو ډېر زر د تاریخي داستانونو شکل اختیار کړ، نن پرون د قومي لویو حجرو اهمیت پاتې نه دی، په کومو حجرو چې د دې ولس عظمت قائم وه او دوی پرې هر وخت فخر کولی شو او د دې په وجه د دې قوم سر تر اسمانه اوچت وه، ورو ورو خرابیدې، اوس اکثرو خلکو په خپلو دروازو کې بېټکونه جوړ کړه، ځان ځاني شوه، لویې قومي حجرې ورانې ویجاړې شوې او کومې حجرې چې لا تر اوسه هم ابادې په نظر راځي د ورانو حجرو په مرثیه خوانۍ مشغولې دي. دغه بېټکونه هم مقفل پراته وي، دغه وجه ده چې اوس د خدایي مېلمنو په کلیو کې قدرونه کم، بلکې بالکل ختم شو، د چای او چیلم دورونه ختمیږي او په کومو روایاتو چې د پښتون نوم په عزت سره یادېده اوس ورو ورو ختمېږي.[242] ابراهیم خان په یوه افسانه کې د کلي د یوې زړې حجرې نقشه داسې بیان کړې ده:

> یوه حجره ده چې په یوپورابادہ ده ـ دیوالونه یې وران دي ـ په کمرو باندې یې ورونه نشته ـ د روشندانونو په ځائی یې پکې په دیوالونو کې سوري

کړي دي ـ په دننه کوټه کې رساپه مينځ کې يوه لوګي خانه ده ـ معلوميږي داسې چې دلته کې نغری وه ـ د انګيټۍ پکې څه انتظام نه وه ـ د بهر ګېټ در وازې يې دا سې جوړې دي لکه چې د ګېراج تمبې وي ـ بلکې د ګېراج د تمبونه هم اخوا وې ـ ولې چې د دې حجرې دا اولنۍ تمبې زماپه خيال د سالم سلېپر نه جوړې وې ـ يا خو په هغه زما نه کې سلېپرارزان وو ياد حجرې مالک د چا نه په زور اختسي وو ـ د حجرې د غولي نه يوې غاړې ته د چنار يوه ونه ولاړه وه او هغې ته د دنګو دنګو خپويوکټ پروت وه ـ د کټ خپې دومره پېړې وې چې دروزګر به ورله د سوري کولو لپاره يو ګز سولې جوړکړې وي.[۲۴۳]

د وخت په تېرېدو سره چې کله د خلکو مصروفيات زيات شول، نو د شريکو حجرو پر ځای خلکو بېټکونو ته ترجيح ورکړه.

## جماعت

له رياستي وخت نه مخکې او بيا د رياست په ابتداء کې د اکثرو جماعتونو حالات ډېر خراب وو. خلکو به نسوار اختسل او د نسوارو پليدې لاړې به يې د جماعت په نغري کې توکلې. د جماعت د دړ، بروزې، تېلو او انډېرو غورداري چانه کوله. د ډېرو جماعتونو منډوونه غورځېدلي وو ځکه چې د ډېرو جماعتونو د خرچ دارومدار په قومي چندو وه او ډېر کم داسې جماعتونه وو چې خپلې سبرۍ به يې لرلې. د ډېرو جماعتونو کوهي ناکاره شوي وو او ولس يې امامان رخصت کړي وو، ځکه چې د امام اجرت د محلې په خلکو وه. والي صيب په خپل دور کې دا اعلان کړی وه چې د جماعتونو امامان هېڅ څوک بر طرف کولی نه شي څو چې شريعت اسلاميه د امامت لپاره غېر موزون کړی نه وي او دغه تحقيق به هم بادشاه پخپله کوي.[۲۴۴] زېب سر ليکلي چې په جماعتونو کې به طالبانو اتڼ کولو او سندرې به يې پکې ويلې، اکثر جماعتونه او حجرې به شړ پراته وو.[۲۴۵] باچا صيب په خپل سوانح کې ليکي چې له رياست نه اول ټول جماعتونه د خانانو د غلې انبارونه وو. د فصل په وخت به يې چې جماعت ته غله راوړه نو د خرو قچرو بارونه به يې د جماعت په منډؤ يا کوټې تشول.[۲۴۶]

## لنګر خانه

په سوات کې د ټولنيزې خېر ښېګړې په اهمو کارونو کې يو د سيدو بابا لنګر هم وه. د سيدو بابا لنګر به مياګل عبدالودود هم هغسې چلولو لکه ځنګه چې مخکې وه. هره ورځ به د پينځو سو کسانو روټۍ پخېده او اکثر به زرو ته هم ورسېدل.[۲۴۷] سيد عبدالغفور قاسمي ليکلي چې د رياست لنګر خانه ديسي، پرديسي، وطني، غير وطني هر چا لپاره به جاري وه.[۲۴۸] د سيدو بابا د لنګر په باره کې نصر الله خان نصر ليکي چې د هغه د لنګر انتظام د ګل احمد خليفه په لاس کې وه. د ورځې به يې پينځه سوه کسانو ته روټۍ ورکوله. د سيدو بابا لنګر کې به شپه ورځ دوه وخته روټۍ ورکېدی شوه. په ژمي کې به يې د ورځې اوګره او د شپې د جوارو، وربشو او غنمو روټۍ ورکوله.[۲۴۹] د سنټرل جېل يو قيدي د لنګر د روټۍ ذکر داسي کړی دی:

دا ســــتا غــــم کـــــې مـــــاه جبينــــــې لنګــــــري خــــــورم
خـــــدای شـــــاهد دی څلـــــور غــــټ څلـــــور نــــري خــــورم[۲۵۰]

دا نظم د جهانزېب کالج په ايلم رساله کې چاپ شوی و او د دې نظم په چاپ کېدلو يې د ايلم رسالې د پښتو برخې ايډيټر سحر يوسفزی له نوکرۍ نه ويستلی و.

## توري وران[۳۲] وېش

د توري وران له وېش نه وړاندې چې په سوات کې د وېش کومه طريقه چلېده هغې ته ګرځنده وېش يا واريز وېش وايي.

تاج محمد خان زېب سر د دغه وېش په باره کې داسې وايي:

---

[۳۲] د مياګل عبدالودود په سوانخ حيات کې ليکوال محمد اصف خان دا لفظ توري ران ليکلی دی او په بريکټ کې ورسره مستقل تقسيم ارضي هم ليکلی دی. (تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوت حضرت مياګل ګل شهزاده عبدالودود خان باد شاه صاحب، ۱۹۵۸، ۳۱۲ مخ). تاج محمد خان په عروج افغان جلد اول کې توري وران وېش ليکلی دی ( ۲۵۴ مخ). په درياب لغت کې د توري ګڼې معنې ليکل شوي دي ۲ـ کډه، د کور سامان، ۲ـ سياهي ، تورکي، هغه تور رنګ چې خط پرې ليکلی شي (متروک) (قلندر مومند، درياب لغت ، ۳۸۵مخ) په يو بل پښتو لغت کې د توري معنا حرف، ټکي ليکل شوې ده (زاهد پښتو سيند، ۲۶۱مخ)

په درياب لغت کيې د توري وران معنا داسې ليکل شوې ده : خپله ټوله زمکه خرڅونکی چې نوم يې د مال له کاغذاتو وران شي. (قلندر مومند، درياب لغت، ۲۸۵مخ)

د توري وارن يا توري ران وېش متضاد ټکی ګرځنده وېش دی. په توري وران وېش کې به زمکه په مستقله توګه د قبيلو يا د خېلونو تر مينځه وېشلې شوه او دا به مستقل وېش و.

دا اولـــــس بــــه همېشـــــه کـــــډه پــــه سر وه
لـــــس پينځـــــه کالــــه بــــه وېـــش هـــم مقـــرر وه
دا شريــــــف قـــــام د پښـــــتون خانــــــه بـــــدوش وه
دغــــه کـــــار کـــــه نـــــه د عقـــــل نـــــه د هـــــوش وه
کـــــال د وېـــــش هـــــم کـــــال د قحـــــط د تنگـــــۍ وه
هـــــر ســـــړی پوهـــــه پـــــه خپلـــــه بـــــدرنگۍ وه
ســـــتانه دار بـــــه وو مقـــــيم پـــــه خپـــــل مکـــــان
وو د دوی بـــــــــه مېلمانـــــــــه دا افغانـــــــــان
پـــــه دې قـــــوم کـــــې چـــــې تـــــر کومـــــه دا غضـــــب وه
دا ابـــــاد وطـــــن بربـــــاد پـــــه دې ســـــبب وه
ده عمـــــري تقســـــيم اوس اوکـــــړو پـــــه انصـــــاف
هـــــر ســـــړي هـــــم خپـــــل دفـــــتر واخســـــته صـــــاف
پـــــه عمـــــري تقســـــيم شـــــه فکـــــر ابـــــادو تـــــه
راشـــــه اوگـــــوره د قـــــام دغـــــه ښـــــادو تـــــه[۲۵۱]

توري وران وېش ته مستقل وېش يا عمري تقسيم هم وايي. په دې ټپه کې هم د توري وران اصطلاح استعمال شوې ده:

که په رښتيا په ما مئېن يې
د گودر غاړه توري وران واخله مئېنه

د شيخ ملي دا عارضي وېش د سوات د حکمران مياگل عبد الودود په دور کې ختم شو. مياگل عبدالودود په خپل سوانح کې ليکلي، چې له څوارلسمې پېړۍ نه تر ۱۹۲۴م پورې د رياست سوات په علاقو کې د پټو يعنې دوتر د وېش پاره د شيخ ملي په هغې طريقې عمل جاري وه، کومې ته چې دفتر شيخ ملي وايي. د وېش دا طريقه به عارضي او ميعادي وه .[۲۵۲] دا عارضي وېش مياگل عبدالودود په توري وران وېش کې بدل کړ او هغه دا خپله يوه کارنامه ښايي.[۲۵۳]مياگل عبدالودود وايي چې ما دا اراده وکړه چې زه به خلک له دې عذاب نه خلاصوم، اگر چې هغه ته په دې وېش کې ډېر مشکلات وو ځکه چې له هغه سره نه پټواريان وو، نه پټوار خانې وې، نه د پيمايش ماهرين او نه د پيمايش الات وو، خو بيا هم هغه د توري وران وېش بندوبست وکړ. مختلفو علاقو کې براه راست د هغه په

نگرانۍ کې کار شروع شو. په دې وېش کې حکمران ته د پېښنو مشکلاتو اندازه له دې نه لگېدی شي يوه داسي علاقه چې د هغې خلک د مالياتو له طريقو نه نا اشنا وي، مخکې نه هم پکې څه خاص انتظام نه وي بيا هغې کې منصفانه وېش، هر سړی مطمئن کول، خوړه ترخه بيلول دا ټول کارونه ډېر گران وو.[٢٥٤] تاج محمد خان زېب سر د باچا صيب د دې کارنامې ستاينه داسې کوي:

لـــــوی احســــــان هــــــم د ســــــلطان عمــــــري تقســــــيم دی
دا احســــــان پــــــه خپــــــل قــــــام کــــــړی دی کــــــريم دی[٢٥٥]

او بل ځای کې زېب سر داسې ليکي:

ده عمـــــــري تقســـــــيم اوس اوکـــــــړه پـــــــه انصـــــــاف
هـــــر ســــــړي هــــــم خپــــــل د فــــــتر وا خســــــته صــــــاف[٢٥٦]

په دې وېش کې داسې معلومېږي چې د رياست سوات ځينو وزيرانو هم بد عنوانۍ کړي دي، لکه چې تاج محمد خان زېب سر ورته اشاره کړې ده:

تـــا چـــې د تقســـيم پـــه کـــال کـــوم کـــوم ظلمونـــه کـــړي دي
ســـتا ظلـــم ســـتم پـــه جهـــان بيـــل نومونـــه کـــړي دي[٢٥٧]

د باچا صيب په سوانح کې ليکل شوي، چې د وېش دا منصوبه په پينځو کالو کې سرته رسېدلې وه.[٢٥٨]

## د توري وران وېش فايدې

توري وران وېش چې وشه نو د زراعت، تجارت، تعميرات، دستکاري، باغباني او داسې د نورو کارونو د ترقۍ په وجه د رياست د ترقۍلارې هوارې شوې[٢٥٩]زېب سر د توري وران وېش فايدې دا بيان کړي دي:

دا عمـــــــري وېـــــــش شـــــــه ســـــــبب د برکـــــــت
روز افـــــــزون شـــــــه د دې قـــــــام ارام راحـــــــت
د هـــــــر چـــــــا شـــــــوق پيـــــــدا د عـــــــمارت شـــــــه
پـــــه دې ښـــــکلو آبـــــادو وطـــــن جنـــــت شـــــه[٢٦٠]

د توري وران وېش د فايدو په باره کې په يو بل ځای کې زېب سر داسې ليکي:

پـــــه عمـــــري تقســـــيم شـــــه فکـــــر ابـــــادو تـــــه
راشـــــه اوګـــــوره د قـــــام دغـــــه ښـــــاد وتـــــه[٢٦١]

مطلب دا دی چې کله توري وران وېش نه و شوی، نو خلکو به ابادیانې نه کولې ځکه چې هغوی به په یو څو کالو کې بل کلي ته تلونکي وو، خو چې کله توري وران وېش وشو، نو بیا د خلکو ابادو طرف ته توجه راوګرځېده.

میاګل عبدالودود (باچا صیب) د پښتو دور په باره کې په خپل سوانح کې لیکلي، چې کله به په یو جایداد تنازعه جوړه شوه، نو د هغې مطلب به هم دغه و چې فریقینو کې به یو فریق ختم کېده او فاتح فریق به د جایداد مالک ګرځېده. هغه زمانه کې د ملکیت د حق خو د سره سوال نه پیدا کېده بس خو دومره قدر خبره وه چې کله به د یو زوره ور په زړه کې د حرص جذبات پیدا شول نو د کمزوري جایداد ته به یې سترګې خړې کړې. تنازعه به یې جوړه کړه بیا به یې جنګونه شروع کړل نو چې کوم فریق به زورور ثابت شه او کمزوری فریق به یې ختم کړ، نو په جایداد به یې غاصبانه قبضه[٣٣] وکړه، هغه زمانه کې خو د کمزوری مطلب مرګ وه.[٢٦٢]

## ډله بازي

د سوات ټول ولس په دوو ډلو کې تقسیم و. د دوی مشران مورثي او خانداني وو، په هر کلي او محله کې د ډلو پرو باقاعده شاخونه وو. د دوی اواز یو و او د ډلې د یوادنيٰ فرد په اشاره به ټوله ډله د هغه هر قسم حمایت ته هر وخت تیاره وه. خواه که دغه حمایت به د

[٣٣] مطلب دا دی چې د کمزورو نه به زورورو د هغوی د حصې دوتر (دفتر) یا په زور واخستو او یا به یې ترې په معمولي قیمت واخستو او دغه رنګ به هغه د خپل دفتر د ملکیت نه محرومه شو او بیا چې به کله د ګرځنده وېش وخت پوره شو نو چا چې به خپل دوتر یا خرڅ کړی و او یا به یې ترې په زور اخستی و، نو دی به د کسبګر یا د غېر دوتري په شان له جاېداد نه محرومه شو او چا چې به دا حصه اخستې وه د هغه برخه به زیاته شوه. همدغه وجه ده چې د ځینو خلکو جایدادونه ډېر دي او ځینې خلک بیخي محرومه کړی شوي دي. ځینې خلک داسې هم وو چې د هغوی به په دفتر کې حصه نه وه خو د ببعې به یې حصه واخسته نو دوی به بیا هم د دفتریانو سره د وېش په چکر کې شامل شول، خو دا قسمه خلکو ته به یې بیاج ګري ویل، ځکه خو دا خبره مشهوره ده چې کله دوتریان په خپلو کې په څه خبره وران شي، نو یو بل ته وایي چې زه درته څه بیاج ګری ښکارېږم څه؟

حق او صداقت سراسر خلاف وه او د لویې تباهۍ او بربادۍ باعث به ګرځېده. د ډلو پرو په زیاتي کمي په قومي لروبر تمام دارومدار موقوف و. د ولس هره لره بره د تورې ټوپک په طاقت وه، خو د وطن د ناموس خیال به له هر چا سره هر وخت ملګری وه. د دیر او دربند د نوابانو د زور او زیاتي له وېرې دا ولس د میاګل عبدالودود په امارت متفق شوي وو.[٢٦٣]

د دې ډلو په وجه په سوات کې د حکومت جوړېدلو هم ډېر وخت واخسیت، ځکه چې د هرې ډلې به خپل باچا خوښ و، لکه زېب سر چې ویلي دي:

چـــــې دا ملـــــک د ملېـــــزو ځنــــي وزګــــار شــــه
نــــور دا قــــام د یــــو امــــیر هــــم طلــــب ګــــار شــــه
مــــا اول دی ښــــکاره کــــړی دا کــــلام
چــــې وې دوه پــــرې مشــــهورې د دې قــــام
د دوی زړه پــــه بادشــــاهۍ هــــم د میاګــــل وه
خــــو دهــــرې پــــرې خــــوښ هــــم میاګــــل خپــــل وه
او ممکــــن د دواړو کلــــه حکومــــت وه
لــــوی مــــانع د دې تجــــویز هــــم دا علــــت وه[٢٦٤]

د دنیا هر ملک او هر قام کې ډله ډېر اهمیت لري. د قومونو تاریخ او سیاست کې ډله ډېر اهم کردار ادا کوي. د اقتدار حصول وي او که د قام او د وطن د بهبود لپاره کوښښ وي، نو له مضبوطي ډلې پرته یو کار ترسره نه شي رسېدی. د نن نه مخکې هم ډله اهمه وه، نن هم د ډلې اهمیت ظاهر دی. د زمانې له ارتقائي رفتار سره سره د یو شي نوم یا طریقه کار بدلیږي خو مفهوم او مقصد هم هغه وي کوم چې پخوانی وي. نن زمانې کې سیاسي تنظیم او جماعت بندۍ هم د ډلې ترقي یافته شکلونه دي کله چې سوات قبایلي علاقه وه دلته پښتنو کې ډله ډېره اهمه وه، اول نه دا تنظیمي سلسله پښتنو کې داسې راغلې ده چې په سوات کې همېشه دوه ډلې وې. دا ډلې اګر چې د وطن اندروني حصو کې بېلو بېلو علاقو کې په ذیلي ښاخونو کې هم وېش وې، خو اخر کار به ټولو ډلو د دوو غټو ډلو شکل اختیار کړ. دا ډلې به د سوات د یوسفزو پښتنو اندروني خېلونو سره هم متعلق وې، هرې یوې علاقې مثلاً بابوزي، شامیزي او نورو کې به د دوو معززو خانانو په مشرۍ کې دوه ډلې همېشه قامي معاملو کې مصروفې وې. دې تنظیم هم بعینه داسې نقشه لرله لکه د نن ورځې سیاسي تنظیم. د ډله بازۍ کار کې د ورکرانو او مشرانو لپاره دا

ضروري وي چې هغوی پوهنده، خبر لوڅ او ښه مقراران وي، ولې چې ډله هم يو قسم قومي او د قبايلي پارليمان حيثيت لري. ابتدا نه دا دستور راغلی چې د ډلې مشر يو داسې معزز پښتون وي چې هم هغه ښه صاحب حيثيت وي او د ډلي د نمايندګانو د اجتماع په سلسله کې ټول اخراجات برداشت کولی شي، ځکه چې ډلې لکه د سياسي پارټو خلکو نه چندې نه غواړي. دا خو پښتونوال غوندې تظيم وي چې نسبتاً زيات عوامي وي او چې کله يوه داسي معامله ملکي پېښه شي چې يواځې د ډلې د مشر ليډر يې په اقتصادي لحاظ متحمّل کېدی نه شي، نو بيا شريک تاوان هم کېږي. علاوه له دې نه د ډلې مشر د خپلې ډلې د هر ممبر پښتون د ميلمستيا او د خاطر مدار هم ذمه وار وي. قبايلي دور کې به هر وخت جنګونه وو نو د ډلو د کار کولو او تنظيم طريقې هم له يو بل نه مختلفې وې. د ډلې مشر همېشه د خپلې ډلې د ترقۍ کوښښ کوي او د ډلې د خلکو د مفادو نګران به هم و. د غم ښادۍ په معاملو کې له خپل ډله ييز سره امداد او تعاون کول به هم د هغه په فرائضو کې اهم فرض وو او ډلې کې دننه د دوو کسانو يا د دوو فريقينو مابين کې د تنازعو فيصلې کول د هغوی مينځ کې جوړه راوستل دا به هم د ډلې د مشر ذمه واري وه.[٢٦٥] د ډلو په باره کې باچا صيب په خپل سوانح کې ليکلي چې په سوات کې د حکومت له جوړېدو نه پس چې رو رو بيا امن قائم شو، تحصيلونه، عدالتونه او شرعي عدالتو نه قائم شول، فوځې تنظيم جوړ شو، نو پخپله ورسره د ډلو تنظيمي سلسلي او د کار کولو طريقو کې تبديلي راغله، خو په هر صورت په دې قبايلي رياست کې ډلې بيا هم هغه شان اهميت لرلو او بيا چې ورو ورو د مشرانو ذهنونه دنيا پرستۍ ته مايل شول، نو د ډلې د مشرانو اقتصادي حيثيت هم له تاوانونو نه محفوظ شو، خو د ډلې مشر به بيا هم د خپلې ډلې د ترقۍ او د فايدې لپاره کار کولو او د مقدمو او د تنازعو په شکل کې به هغه د خپلې ډلې يو وکيل و. دا کوښښ به يې کولو چې د خپلې ډلې ممبر فرد له هر نقصان نه بچ کړي. د ډلو تنظيم کې به صرف يوسفزي پښتانه شامل وو نور تجارت پېشه يا دستکار خلک به د خپل کار کسب په وجه داسې ډله بازو کې حصې نه شوی اخستی، خو بيا هم په ذهني لحاظ سره يوه نه يوه لور ته به وابسته وو. د ډلې د ممبرانو لپاره به هم ضروري وه چې د خپل مشر د عزت او وقار خيال به ساتي د هغه احترام به کوي او د خپلې ډلې وفادار به وي له بلې ډلې سره به تعلق نه ساتي وغيره.[٢٦٦] باچا صيب د ډلو هغه زوړ جوړښت او اثر رسوخ ډېر بدل کړل او والي صيب پکې بيا د خپلې بلې ډلې جوړولو هلې ځلې وکړې.

## خان او ملک

له ۱۹۱۵م نه مخکې ټول سوات د خانانو گرفت کې و. دې خلکو د باچا صیب حکومت خو تسلیم کړ، خو د دې نه خبر نه وو چې د حکومت جوړېدو نه پس به د حکومت قانون منل هم وي. دا خانان ملکان داسې خلک وو چې خپل ځانونه یې د پښتو د هر قسم پابندو نه ازاد شمېرل. د حکومت له قایمېدو نه پس هغوی عشر خو منلی و خو برای نام، حال دا وه چې د عشر وخت به راغی نو د یوې علاقې خان به خپل سړي حاضر کړل او د خپلو کاردارانو تنخواه به یې د باچا صیب نه حاصلوله. باچا صیب وایي چې د سوات خانان ډېر غاصبان وو او په غریبانانو یې ډېر ظلمونه کول او مالونه به یې ترې په زور قبضه کول. د شروتیا په وخت کې په بر سوات کې د میاگل عبدالودود جایداد هم یوخان قبضه کړی وه او بیا چې هغه د سوات حکمران شه بیا هم د هغه خان نه د خپل جایداد اخستلو کې کامیاب نه شه حتٰی چې په حیثیت د حکمران سوات بیا چې کله هغه د توري ران وېش قانون نافذ کړ نو بیا خپل جائداد په لاس وراغی.[۲۶۷]باچا صیب په خپل سوانح کې د هغه وخت د خانانو او ملکانو د جهالت او ظلمونو ډېر مثالونه ورکړي دي.[۲۶۸] کله چې ریاست جوړ شو او بیا والي صیب حکمران شو، نو هغه به خاني ملکي په خپله مرضۍ خلکو ته ورکوله او د ریاست نه مخکې خاني ملکي وراثتي وه، لکه بیلیو چې وایي:

> These are governed by their own maliks, who in turn are subordinate to the tribal chief, or Khan. Both these offices are hereditary, except in the case of manifest incapacity from mental imbecility or physical deformity, or from some objectionable quality of temper or general conduct; but there is nothing to prevent a man of courage and ability raising himself to the position of either.[۲۶۹]

ترجمه: دا د خپلو ملکانو په ذریعه چلېږي او هغوی د قبایلي مشر یا خان ماتحت وي. دا دواړه عهدې وراثتي دي، خو په هغو حالاتو کې دا بیا وراثتي نه وي کله چې یو کس د څه قسمه ذهني یا جسماني بیمارۍ ښکار وي یا د هغه په مزاج او کردار کې څه د اعتراض خبره وي، خو چې په یو سړي کې څه صلاحیت او حوصله وي نو دې دواړو عهدو ته په رسېدلو کې د هغه مخه څوک نه شي نیولی.

د میاګل عبدالودود په وخت کې هم هغه شان خانانو ملکانو دا ظلمونه کول خو دا به د هغه حامیانو کول او هغه به پرې سترګې پټولې. میاګل عبدالودود خلکو ته پخپله د خانۍ ملکۍ ورکولو دا رواج جوړ کړی و.

## عشر

په ریاست کې به د خلکو نه د هغوی په زمکني امدن کې عشر اخستل کېده او له زمکني امدن نه علاوه به د ګډو بیزو هم عشر اخستل کېده. د عشر په باره کې زېب سر داسي وايي:

لکـــــه فـــــرض چـــــې زکـــــوٰة پـــــه مســـــلمان دی
پـــه کـــوم جـــنس کـــې د لســـمې چـــې فرمـــان دی
جمـــع کیـــږي دا زکـــوٰة پـــه بیـــت المـــال کـــې
هـــیڅ کمـــی او زیـــاتی نشـــته پـــه هـــیڅ حـــال کـــې
د وطـــــــن د حفاظـــــــت چـــــــې افغانـــــــانو
کـــوم یـــو خـــرڅ کـــوه پـــه خپلـــو نوکرانـــو
او هغـــه مقـــدار معلـــوم هـــم د غلـــې وه
دا اولـــس پوهـــه پـــه دغـــه مســـئلې وه
اوس هغـــه غلـــه هـــم اخـــلي حکومـــت
خـــاص پـــه خیـــال اوس د وطـــن د حفاظـــت
نـــو کـــران د حکومـــت د ملـــک اولـــس دی
دې خـــدمت تـــه د هـــر پـــو ســـړي هـــوس دی
بیـــا هـــم دوی دغـــه غلـــه اخـــلي پخپلـــه
دکـــار تـــوس ټوپـــک زیـــان ورک شـــه زمـــا دلـــه
پـــه بیـــزو ګـــډو هـــم عشرـــــ مقـــرر دی
پـــه شرعـــي مقـــدار دا حکـــم مقـــرر دی
غـــرض دا چـــې وطـــن وړی نـــه دی مـــوړ دی
یـــو پـــه ســـل اوس د وطـــن زېـــب زینـــت جـــوړ دی[۲۷۰]

په شلمه پېړۍ کې په وړومبي ځل په سوات کې یو منظم ریاست جوړ شو، نو ځکه دې خلکو نه عشر اخستل هم شروع شول. کله چې دلته ریاست نه و جوړ، نو دې خلکو عشر نه ورکاوه، په دې باره کې بیلیو لیکي:

> None of the Yusufzais pay the ushr,or tith for the support of the church [mosque], though its exaction has frequently been attempted. Their objection is that by so doing, they woud acknowledge themselves the subjection of a soverign, whereas it is the glory of most of the tribe to boast of the independence they maintain.[۲۷۱]

ترجمه: ټول یوسفزي د جماعت د مرستې لپاره عشر یا لسمه نه ورکوي، اگر چې د دې د اخستلو بار بار کوښښ شوی. د هغوی اعتراض دا دی چې په داسې کولو سره به دوی د یو مطلق العنان حاکم ماتحت شي حالانکې دا د زیاتو قبیلو شان دی او په دې خبره فخر کوي چې دوی ازاد دي.

## جامه پیزار

د سوات په پښتو ادب کې د سوات د خلکو د جامه پیزار ذکر هم موندلی شي، البته د سوات په پښتو ادب کې د داسې قسمه جامې پیزار ذکر هم موندل کېږي، چې هغه د سوات خلک نه استعمالوي او نور پښتانه یې استعمالوي. د سوات د خلکو قامي لباس هم هغه دی کوم چې له خیبر نه واخله تر چټا گانگ پورې یو شان قابل عزت گڼلی شي او هر سړی یې خپل لباس گڼي. په هغه زمانه کې د پښتنو عام لباس په دې اجزاوو مشتمل وه: ټوپۍ، قمیص دپاسه شېرواني، کوټ، سپین پرتوگ، پاجامه او پښو کې څپلۍ، بوټان یا گورگابۍ، خو څپلۍ یاگورگابۍ ورسره ډېر سمون خوړلو. داسې وایي چې دا لباس ساده ارام ده و، له رعب ډک، دروند خوړ او حد درجه با وقار دی او بل طرف ته د اسلامي روایاتو عین مطابق هم دی. د پښتنو په علاقه کې به خلکو عموماً ټول یو قسم جامط اغوستلې چې په هغې کې به پټکی یا ټوپۍ کمیس پرتوگ، واسکټ، څپلۍ او څادر شامل وو. مشرانو او سپین ږیرو به د ټوپۍ پر ځای سپین پټکی تړلو. د پټکي د تړلو او سمولو د گرانوالي په وجه د ټوپۍ رواج عام شوی وه. په ژمي کې به اکثرو خلکو گرمې چترالۍ ټوپۍ په سرولې چې پکول ورته وایي او په اوړي کې به یې سپکې سواتۍ ټوپۍ په سرولې.

سواتې ټوپۍ به یا خو سپینې ساده وې او یا به طیله دارې وې. مشرانو به دغه سپینې ساده او هلکانو به طېله دارې ټوپۍ په سر ولې. د پښتنو لباس کې له ټولو نه مهم څیز پټکی او څادر و. پټکی په روایتي نقطه نظر سره او څادر د بې شمېره فایدو په وجه سره ډېر اهم وو. څادر د پښتون د فېشن یوه امتیازي نخښه وه، له دې نه به دوی د چترۍ، برساتۍ، بالښت، پټکي او تولیه په شان فایدې اوچتولې او د بوجۍ کار به یې ترې هم اخستلو او هم تقریباً د دې څادر نه به د پښتون ټول خوی خصلت په ګوته کېدلو.[٢٧٢] څنګه چې مخکې ذکر شو چې ټوپۍ د پښتون د روایتي لباس یوه اهمه حصه وه او کله د ټوپۍ په سر د اېښسودو له انداز نه هم د پښتون د نفسیاتو عکاسي کېږي، لکه دا شعر و ګورئ ، چې د کږې ټوپۍ ذکر پکې شوی دی:

هـــــر دم او هـــــر قـــــدم تـــــه دی عـــــروج د افغانـــــا نـــــو
پـــــه سر کګـــــه ټـــــوپۍ څکـــــه د خیـــــال افغـــــان لـــــري[٢٧٣]

د پښتو په زمانه کې به د سوات غټو غټو خانانو ملکانو تور لباس ته زیاته ترجیح ورکوله[٢٧٤] خو بیا په ریاستي دور کې تور لباس عام نه و. په ریاستي دور کې چې کله میاګل جهانزېب والي شو، نو په لباس کې کافي بدلون راغی او په هغه وخت کې کوټ، پتلون، ټایي او نور دلته شروع شول.

## خوراک

له نورو خوراکونو نه علاوه د سوات وریژې ډېرې مشهورې وې، د وریژو نه علاوه غنم او ژوار هم اهم خوراک وه. د سوات د خلکو له وریژو سره د مینې په باره کې دا متل هم مشهور دی، وایي چې "د سوات خلک زاړه شو خو په وریژو ماړه نه شو" [٢٧٥]په وریژو کې بیا ورژلې یا چوکانې[٢٧٦]او د مېو وریژې[٢٧٧] ډېرې مشهورې وې.

## صنعت او د ستکاري

د سوات صنعت او دستکاري ډېره مشهوره وه. د سوات په مختلفو کلیو کې جولاګان اوسېدل مثلاً سلامپور، مینګوره، منګلور، دېولۍ، درشخېله او نور، خو دا جولاګان اول داسط وو چې د خمتا اوبدلو نه علاوه په نور څه نه پوهېدل. د دوی هغه خمتا به هم داسې وه چې سور به یې نیم ګز وه او مهینه به هم نه وه، نو په دې وجه خرڅیده به هم نه. میاګل عبدالودود د سوات له جولاګانو سره میټینګ وکړ او ورته یې وویل چې تاسو د خپلې کپړې

سور زيات کړئ او چط کومه کپړه جوړه شي نو دا بيا ووينځئ چې مهينه شي. چې جو لاگانو د هغه په دې وينا عمل شروع کړ نو خلکو يې کپړه خوښه کړه. بيا هغه دا کار کولو چط دوى ته به يې د گرمو کمبلو او څادرو نمونې ورکولې او دوى به هم هغه شان کمبلې او څادرې جوړولې. د هغوى د حوصله افزائۍ لپاره به مياگل عبدالودود د هغوى جوړکړې څيزونه به بيعه اخستل او هم په دې طريقه د سوات د جولاگانو کسب د ترقۍ په لار روان شه. نن صبا د سوات جو لاگان د خپل کسب استاذان دي. د سوات څادر، شړۍ وغيره ډېر ښه شهرت لري.[۲۷۸] دغه رنگ د چارباغ طيله دارې ټوپۍ د صنعت په لحاظ په ټول سوات کې ډېرې مشهورې وې او د ملکي اهم صنعت په طور به نورو علاقو ته لېږلى شوې.[۲۷۹]

## تجارت

رياست سوات کې به په مينگوره کې د څاروو مېله هم لگېده، دې مېله کې د کچه څرمنو، غوزانو، املوکو، څېلو او رياستي پگړو ذخيرې د خرڅ لپاره هر وخت جمع وې.[۲۸۰]

## د پښتو دور او د رياستي دور موازنه

له دې نه مخکې په څلورم باب کې د پښتو د دور د ادب تهذيبي او ثقافتي مطالعه شوې ده، اوس به په دې باب کې د رياستي دور د پښتو ادب تهذيبي او ثقافتي مطالعه کوو. د دې دور د پښتو ادب په ځينو کتابونو کې د پښتو د دور او د رياستي دور موازنه هم شوې ده، نو وړومبۍ دغه موازنه په لنډه توگه وړاندې کوو.

## پښتو او د پښتو دور

له ۱۹۱۵نه مخکې چې د سوات قبايلي وطن کې باقاعده او منظم حکومت نه وه نو دغې زمانې ته به د پښتو زمانه ويلې شوه.[۲۸۱] په اصل کې پښتو د عزت مترادف يو داسې قامي روح او جذبې ته ويل کېږي چې له پښتون قوميت سره تړلې ده. د پښتو پابندۍ کې چې د پښتون قام لپاره کوم اوصاف ضروري وو هغو کې څه دادي:

له خپل قام او وطن سره وفاداري او مينه کول.

د قومي او وطني فرايضو لپاره هر قسمه مالي او جاني قرباني ورکول.

په هره مهمه قومي معامله کې جرگه کول.

په جرگې کې چې کومې فيصلې وشي د هغې پابندي او احترام کول.

غیرتي او غیور اوسېدل او خپل ناموس باندې قربانېدل.
په میدان جنګ کې بهادري او شجاعت کول.
د وعدې پابندي کول او د قول او اقرار پالنه کول.
دښمن هم چې کمزوری وي ورسره فیاضي کول.
په ښځو لاس نه اوچتول او د هر چا د شرم او ناموس خیال ساتل.
نمک حلالي کول او نمک حلال اوسېدل.
په دوستانه کې مخلص او صادق اوسېدل او د دوست په کار راتلل.
غم ښادۍ کې شرکت او امداد کول.
چغې ته سمدستي وتل.
د کونډو رنډو، کمزورو او ضعیفانو امداد کول.
د خپل نغري او دروازې احترام کول.
مېلمه دوستي کول.
فیاضي او سخاوت کول.
پناه ورکول هغه ته چې پناه وغواړي خواه دښمن ولې نه وي.
د قومي اخوت او مساوات جذبه زړه کې بیداره ساتل.
حق ته حق ویل.

داسې نور هم ډېر امور دي چې د پښتو له ائین سره تعلق لري او دغه اوصاف دي چې پښتون پرې پښتون و. هغه جذبه چې د دغو او صافو او قوانینو پابندۍ ته به یې پښتانه پابند ساتل هغې ته به پښتو ویلې شوه، خو د زمانې رفتار او د هرې علاقې جغرافیایي حالات او له نورو قومونو سره د ګډون او تګ راتګ په وجه داسې حالات پیدا شول چې د پښتون قام قومي وحدت هم قومونو او قبیلو کې تقسیم شو. بېلو بېلو قبیلو کې بېل بېل رسمونه او رواجونه جاري شول، خو بیا هم په هر ځای او هرې قبیلې کې د پښتو نوم و او د پښتو د پابندۍ سلسله تقریباً هر ځای کې کمزورې شان شوه. په سوات کې هم د پښتو زمانې کې بیا پښتو او پښتونیت دواړو د یو وحشت او بربریت شکل اختیار کړ، اګر چې د جرګې رواج وه او اوس هم شته، خو د پښتو هغه تعمیري فیاضانه او نېک روح څه ختم غوندې شو، خو بیا هم داسې بالکل ختم هم نه و، حالات داسې شول چې د ژوند انحصار په طاقت و او داسې خلک پکې د زور او د قوت خاوندان شول چې د هغوی

دهشت جابرانه وه. ظلم زور ته مایل وو او هغوی صرف د خپل قوت او اقتدار لالچیان وو، خو سره د مال دولت بیا هم د ژوند د لذتونو نه او د خوشحال ژوند تېرولو د طریقو نه ناشنا وو. نه ښه مکانات وو، نه جامه پیزار ښه وو او نه ښه خوراک وه، بس خو یو وحشي غوندې ژوند وه.[۲۸۲] دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي چې د پښتو دور کوم پرونکی تصویر چې دلته کومو لیکوالانو وړاندې کړی دی، ټول په ټوله صحیح نه ښکاري. په تاریخ کې دا عامه خبره ده چې هر حکمران او د هغه درباري لیکوالان د تېر دور ډېر بوړنونکی تصویر وړاندې کوي او مقصد یې هم دا وي چې د کوم دور دوی صفتونه کول غواړي دا دور خلکو ته ډېر ښه ښکاره شي او د وخت حاکمان او بادشاهان له داسې قسمه لیکوالانو نه خوشحاله شي.

## د پښتو د دور تیارې

د پښتو په دور کې د خلکو له یو بل سره دښمنۍ وې او د امن و امان حالات خراب وو. تاج محمد خان زېب سر د پښتو د دور تورې تیارې څه لیدلي او څه یې اورېدلي دي، هغه په دې باره کې لیکي چې سوات د محل وقوع په لحاظ هم دا سوات و. د سوات همدا اب وهوا او همدا اوچت سپین ښکلي غرونه وو ، هم دا سبزه زارونه وو خو هیڅا ورته د عزت په سترګو کتلي نه وو،ځکه چې په سوات د ظلم او جهل دوره وه او سوات د بې پوهۍ او بې فکرۍ کور و. سوات د بې امنۍ او د یو بل د دښمنۍ قتل او غارت، فتنو او جهالت په وجه بدنام وه. دلته د دیني، ذهني او علمي رهبرۍ هېڅ بندوبست نه و او نه د ولس ژوندون ته امن حاصل و. عزت، دولت، عصمت غرض هر څیز په خطره کې و او چې څوک بې ترسه، ظالم خونکار، خونخوار او قوم ازاره و، نو هم دا قسم کسان به د عزت او وقعت خاوندان ګڼلی شول. د سوات دا ښکلې خطه چې اوس ورته د دنیا جنت ویلی شي، او په هر ملک کې ستایلی شي، د دردناک عذاب بد ترین دوزخ و، چې دا ولس پکې په قسما قسم عذابونو ګرفتار و. دلته به په علاقه کې داسې یو سړی په مشکله پیداکېده، چې معمولي د پښتو، فارسۍ یا د اردو خط یې لوستلی یا لیکلی شوی. دلته د بهرنو مسافرو راتلل له خطرې نه ډک وو. دلته د مرغو په تور سپین د غرونو په دنګ چیت د بټ د نینو په وار به ناڅاپه ټول ملک کې یو لوی فساد پورته شو، چې د صلحې به بیا هېڅ امکان په نظر نه راته .داسې ورځ به ډېره کمه وه چې د دې ښکلي ملک په یو کلي کې به جنګ جدل واقع شوی نه و، چې ټول ولس ته به پکې بالواسطه یا بلاواسطه نقصان ضرور رسېده او په دې ښکلي ملک کې به هره ورځ مرګ ژوبلې کېدلې. د قوم ښکلي ښکلي ځوانان به بې فایدې

او بې مقصده د فنا کوهي ته غورځېدل او دا ښکلی سوات یوه فسادخانه وه چې د انساني روح پکې د چرګ هومره قدر قیمت هم نه وه. دلته کې طوائف الملوکي وه، د هر کلي د بت خانې بېل بېل خدایی وه او هغه به د کلي د تور سپین مالک او مختار مطلق و او همدغه د باطل د حمایت مضبوط او قوي طاقتونه وو او عام ولس او غریبانان د دوی غلامان وو. دلته د شریعت پر ځای مفسدانه طور او طریقې جاري وې. زېب سر دا هم لیکلي دي چې کلي په کلي به بې نکاح ښځې خلکو کېنولې وې او پردۍ منکوحې به یې اغوا کړې وې او دا قسم کسانو ته به عام طور په ولس کې انډیوالان ویلې شول او د هغوی به ډېر دارو مدار کېدې شه او د هغوی دغه فعل ته هېڅ چا بد نه شو ویلی او که داسې به وشو هم نو دکلي مشران به د انډیوال په طرف وو او د هغه به یې هر قسم ناجائز او ناروا حمایت کولو. دلته به د اخترونو په مبارکو ورځو کې د لمانځه او خیرات پر ځای د تورو، نېزو، تبرونو او مچوغنو او ګټانو جنګونه وو او دا قومي خوشحالي به همېشه لپاره د غم او بربادۍ باعث جوړېده. دلته به د کوچیانو په شکل هر چا ته کډې په سر وې او لس لس کاله پس به بیا بیا د عامو مزکو، کلو تپو وېشونه او تقسیمونه کېدل. توري وران وېش د شاه عبدالودود په زمانه کې ورک شو او ولس له دغه لوی مصیبت او افت نه خلاص شو. په دې ولس کې د فهم پر ځای د وهم سکه جاري وه. فهم ته فهم رسېدل مشکل وو، په دې ولس کې دا خبرې مشهورې شوې چې څه ورځې پس به په چرګانو کې ماران پیداکېږي. د چرګو قیمت یوې انې ته راکوز شو. وایي چې یو وار په سوات کې دا افواه هم ګرمه شوه چې د شعبان (شوقدر) په میاشت کې به مړي را ژوندي کېږي او دې ساده لوحو خلکو په دې خبرو یقین راغلی و او ډېرو قبرونو ته د مړو خپلوان په انتظار ولاړ وو. یو ځل دا خبره مشهوره شوه چې په پیر کلي (بر سوات) کې تورنکه مرغۍ خبرې کوي او داسې کسان هم ډېر وو چې قسمونه یې خوړل چې مونږه پخپله د تورنکې خبرې اورېدلي دي، خلقې په دې خبرو پسې راماتې وې او حقیقت کې هېڅ هم نه وو.[۲۸۳] سوداګر چې به په کوم کلي تېرېدل نو د هغه کلي خان ملک به بې په لاره کې هرکلي ته ناست و، او پوره پوره اسباب به یې ترې قبضه کړ. یو عام سړي به ځان ته د خان له وېرې نه بېټک قدرې هم نو شو جوړولی، که چا به جوړ هم کړ خو هغه به ورته شپې د شپې د خان نوکرانو وسېزلو. د زمکې ښه ټوټه به خان یا ملک د نشانچي، ناظر، پاله وان په بهانه ځانله قبضه کوله. د کر کروندې حالات ډېر خراب وو، اول خو د غریب زمیندار د فصل د ابه کېدو دپاره د ابو وار حاصلول ډېرګران وو. ملک به ویل

چې د دوی ابه په اسمان کې دي او که چرې اسمان به هم بخل او کنجوسي وکړه نو زمکې به تخم او خوړ او که چرې باران به وشو نو ملک به غريب زميدار ته د غلې د سنبالښت تکليف نه ورکولو. د ملک صيب نوکرانو به شپې تر شپې درمن د خان کره راوړ. هغه وخت کې د سړکونو او لارو هېڅ انتظام نه و او پيزار به د خپو پر ځای د مسافر د سر زينت کيده ولې چې ځای په ځای به ابه او جبې وې ځکه خو دا متل دی "د سوات اوبه په لارې ځي او خلک يې بې لارې ځي " چې کله رياست جوړ شو، نو په شروع کې د تعليم دا حال و، چې که چرې د مياګل عبدالودود په نوم به چرته خط راغی نو هغه خط به يې تهاڼې (مالاکنډ) ته وليګلو او قاصد به بيازباني تشريح باچا صيب ته کوله . دارنګ که چرې بيمارې به پېښه شوه نو د تهاڼې نه به حاکمان طبيبان راغوښتل.[۲۸٤]

د رياست له جوړېدو نه اولنی دور چې د زور او زياتي ظلم جبر او د تيرو دور وه، چې عام طور ورته د پښتو دور ويلی شي د هغې باره کې عمر زاده داسې ليکي چې د رياست سوات موجوده دورې ته که مونږ زرين دور د تاريخ په رڼا کې ووايو نو ناجايزه به نه وي. دا مقابله به مونږ د هغه زمانې سره او کړو کوم وخت چې په سوات کې هېڅ يو حکومت نه و او د دې له کبله د قام ژوند د څاروو نه په هېڅ حال کم نه وه ځکه چې نه تعليم وه او نه امن. هغوی په هغه زمانې کې دا هم نه پېژندل چې علم څه ته وايي تهذيب او تمدن لا د کومې بلا نوم دی. د کوزې طبقې په خلکو به همېشه يو زورور سور و او د څاروو نه يې هم حال خراب وه او تر دې چې د حجرې خدمت او چيلم هم په دوی باندې و. د علم خو دلته نوم هم نه وه، د جهالت اوږدې اوږدې تطرې په دې خاوره پرتې وې او يو سړي هم د دې نه بهر ته د وتلو کوشش نه کولو،که څوک به د علم د زدکړې د پاره چرته بهر لاړ نو هغه ته به "روئيلی" [روهېلی[۳٤]] ويلی شه او خلکو به ورته بدکتل او کرکه به يې ترې کوله. چاپيره يوه بدامني وه، ظلمونه او زياتي وو، د غريب په سر به د جهان ظلمونه کېدل، هغه ته چا بنيادم وې؟ بلکې د غلامانو ډله وه، په کومو چې به دې خانانو مزې کولې. خپل کارونه به يې پرې کول او چې کوم وخت به هغه له دوی د کار نه وزګارشو نو په هغو به يې په نورو کلو حملې وکړې او کلو ته به يې اور ورته کړ، هر څه به يې ستي کړل. که چا له دوی نه څه مخالفت

[۳٤] هر هغه څوک چې هندوستان ته به د علم يا مزدورۍ لپاره تلی و او بيا به واپس راغی هغه ته به يې رويلی يا روهېلی ويلو . روهېلی پښتون ته هم ويلی شي لکه په دې شعر کې چې ذکر دی:ای روڼو ګوری خيال کوئ شته داسې مشران /تنې يې روهېلۍ دي کېرۍ د انګلستان (روغانے، څوربدلي احساسات،۱۹۹۹، ۲۱مخ)

یا ملاتړ به کاوه، نو ټول به قتل کړی شو او علاقه به په وینو رنګ کړی شوه. تجارت په هغه زمانه کې څه وه خو لږ ډېر هندوانو به اخستل او خرڅول او هر یو شی به په څو څو چند قیمت باندې خرڅېده دا موجوده د ارام او د عیش ځیزونه کوم ځای وو. د ډوګرو(ډګرؤ) جامې، درنې درنې پڼې به وې، د خوراک به د ژوارو د سوکړک او د سبو(ساګو) نه زیات هېڅ نه وو. نه سړکونه وو، نه سکولونه وو، که چرته به څوک نا جوړه شه نو نیم طیب به ورته راوستی شه او د هغه د لاسه به مړشه. وایي چې په هغه زمانه کې په پښتنو کې مینه او ورورولي ډېره کمه وه، ټول له یو بل سره په دشمنو کې وو. زېب سر لیکلي چې دین یو و، مذهب یو و، قام یو و ولې دې خپلونو او بیا به تېره تېره خپلو فائدو ترې ځناور جوړ کړي وو.[۲۸۵] خپلو کې جنګونه کول، میراتې کول او د دولت لپاره خلک وژل د دوی کسب وه او د سوات غوندې ښکلي وطن کې اوسېدل به په زور وو. د سوات وطن کې د پښتو زمانه دا وه چې بس یو باغیانه غوندې سرکش ژوند به خلکو تېرولو چې د هر قسم مذهبي، قومي او رواجي، اخلاقي پابندو نه ازاد وو بس د تورې او د ټوپک قانون جاري وه. سوات کې به همېشه قتلونه او خونریزۍ کېدلې، د ظلم او د تشدد دور دوره وه، داسې مرکزي حاکمانه قوت یو هم نه وه چې خلک یې منع کړي وی. د جابرو خانانو د ظلم دا حال وه چې د هغوی زړونه د رحم او د انصاف د جذباتو نه بالکل خالي وو. مېلمه چې به سوات ته چرته راغی او لباس به یې لږ څه ښه غوندې وه نو د هغه لباس لپاره به اکثر قتل شه، اګر چه داسې کارونه عام نه وو خو کله کله شوي دي.[۲۸۶]له ریاست نه مخکې د سوات د ظلم او د جبر په باره کې عجب خان قریشي داسې وایي:

ســــوات کـــــې وې خـــــورې تـــــورې تیــــارې د جهالــــت
ســــیلۍ وې چلېــــدلې پـــــه هــــر لـــــورې د ظلمـــــت
نــــه عــــدل نــــه انصــــاف نــــه داد خــــواهي وه د مظلــــوم
ســــکه بــــه چلیدلــــه دې وطــــن کــــې د طاقــــت
کــــړې وړې وې لارې جنــــګ، جــــدل او دښــــمنۍ وې
ګــــولۍ وې د ټوپکــــو د خوارانــــو ککــــرۍ وې
پــــه زور خرابېــــدل بــــه د خورانــــو عصــــمتونه
لوټــــل پــــه رڼــــا ورځ بــــه شــــو د خلقــــو عزتونــــه
رســــوا اوبــــې عزتــــه دې وطــــن کــــې انســــانیت وه

په نــــه قیصـــــو کېـــدل بـــه د یــــو بــــل سره جنگونـــه
دا ســـوات پـــه هغـــه وخـــت کـــې یـــو بـــد نـــام غونـــدې وطـــن وه
او جاړخســـــته حالـــــت کـــــې د ســــیدو بابــــا گلشـــــن وه
تهــــذیب او نــــه شــــعور وه نــــه اصـــول د زنــــدگۍ څــــه
خــــو بــــې مهــــار اوښــــان وو پــــه کگــــو وگــــو روان وو
کمیـــاب کـــل ضروریـــات د زنـــدگۍ پـــه دې وطـــن کـــې
حـــال دا وه چـــې د ســـوات خلـــق د مـــالگې پـــه ارمـــان وو
پخپلـــه کـــې چینجـــي لکـــه اختـــه مشـــت و گرېبـــان وو
د جهـــل پـــه دریـــاب کـــې سره غـــرق واړه ســـواتیان وو[۲۸۷]

د پښتو د زمانې د سوات د حالاتو په باره کې د فتاوئ ودودیه مصنف محمد ابراهیم بازارگوي لیکي چې بادشاه صیب دهغه کشمکش او اضطراب په زمانه کې د حکومت سنگ بنیاد[۳۵] اېښی وه چې په هغه وخت کې د امن او اصلاح نوم اخستل یو سنگین جرم وه. د خلکو حالت دا وو چې شپه او ورځ د باهمي جنگ وجدل او د حرب وقتال شغلې اوچتېدې. د ډاکه زنۍ، راهزنۍ او خونرېزۍ بازار گرم وه، ظلم ستم، جبر تشدد، قبضه غاصبانه، تحکم جابرانه، قتل وغارت، مغلوب قبایل د علاقې نه شړل، د خپلې کوټې او پټي نه محروم کول، نن دلته صبا هلته دارنگ دربدر خاک بسرگرځېدل، نه د خدای او د رسول د احکامو څه پرواه،نه د شریعت لحاظ، نه سکون نه ارام نه ډاډ، نه اطیمنان هغه تباهي بربادي چې الامان الامان، الغرض دهغه و خت انسانیت سوز او حسرتناکو واقعاتو اورېدلو د پاره هم یو سخت زړه او آهنې ځیگریکار دی.[۲۸۸]

## د پښتو وختونو کې وسله او د جنگ طریقې

د پښتو د دور د جنگونو او وسلو په باره کې باچا صیب په خپل ژوند لیک کې لیکلي، چې له ۱۹۱۵نه اول سوات کې رائفل او د طمانچې رواج عام شوی وه. د جنگ عامه وسله هم دغه ټوپک او طمانچې وې. د وس خبره وه چا سره به رائفل غوگین وه، چاسره به چهرئیز وه، چا سره به طمانچه وه، د چا وسله به انگرېزي وه، د چا به دیسي وه،

[۳۵] په حقیقت کښې باچا صېب د حکومت سنگ بنیاد نه وه اېښی خو خلکو باچا کړی وه.

خو دې کې شک نه وه چې دې ازاد قبايلي ماحول کې انګرېزي غوګين (۳۰۳) او جهازي طمانچه قيمتي څيزونه وو. د پښتو وخت کې د جنګ څه خاص اصول نه وو، جنګ کې به سواره هم وو، د هر لښکر به خپل نشان او ډمامې هم وې، اکثر به داسې يک دم بې تد بيره غوندې جنګونه شروع شول او کله به د خپلو ذهني تد بيرونو ماتحت جنګونه کېدل.[۲۸۹]

## ميراته کول

د پښتو د زمانې په ظلمونو کې يو ډېر غير انساني کار ميراته کول وو .کوم خلق چې د پښتون قوم د حالاتو نه خبر وي هغوی به يقيناً دې نه هم خبر وي چې پښتنو کې د ميراتې شوقيان هم ډېر وو. د انسان د سنګدلۍ او دنياوي حرص ډېر مثالونه دي يو پکې دا هم دی چې پښتنو کې ځيني ډېر داسې مثالي ظالمان وو، چې د جائداد د ميراث د پاره به يې خپل ورور عزيز قتلولو، سوات کې د رياست نه اول به هم دا قسمه ميراتې کېدلي.[۲۹۰]

## سزاګانې

په سوات کې په ځينو ټولنيزو جرمونو به سزاګانې ورکول کېدې. دا سزاګانې د پښتو له زمانې نه راروانې وې او ځينې پکې د رياست په وړومبو ورځو کې هم چلېدلې، ځکه د سوات په پښتو ادب کې د دغو سزاګانو ذکر موندل کېږي، لکه تاج محمد خان زېب سر چې د سوات د وزيرانو خلاف کوم کتاب ليکلی دی، په هغه کې يو ځای داسې ليکي:

هـــر ســـړی دی وړی کـــه لاتـــه مـــو زيـــره مـــوړ نـــه شـــوې
اور کـــه دې د ظلـــم بلېـــده خـــو تـــه پـــرې ســـوړ نـــه شـــوې
ګـــرم بـــه لا اوس شـــې چـــې اور ســـتا پـــه کوربـــل شـــوی دی
تـــوره پـــه خـــره ســـوره ســـتا وجـــود پـــرې جـــل بـــل شـــوی دی[۲۹۱]

په هغه وخت کې مخ تورول او په خره سورول يوه سزا وه. اکثر به داسې وشوه چې په سرکې به يې ورته د چرګانو وزرې وټومبلې، لکه زېب سر چې بل ځای کې وزير ته ويلي دي:

تالـــه چـــې وزر پـــه سر کـــې کېـــږدي نغـــاره او کـــړي
تـــور مـــخ دې لاتـــور کـــړي دا دې قـــدر دوبـــاره اوکـــړي[۲۹۲]

او په بل ځای کې يې د وزير لپاره دا سزا تجويز کړې ده:

دا يـــې ده ســـزا چـــې شـــپه او ورځـــې پـــه خـــره ســـور گرځـــي
زړه چـــې د چـــاتور وي مـــخ دې هـــم دهغـــه تـــور گرځـــي[۲۹۳]

محمد نواز طائر د "تواريخ حافظ رحمت خاني"په ديباچه کې د شيخ ملي د دور د ځينو سزاگانو په باره کې ليکلي، چې د سزاگانو دې ضابطې ته به يې شيخ ملي ويل. د دې په ذريعه به هر کال د زبرگې په مياشت کې د ټول ولس اخلاقي تطهير کېده. د محاسبې په وخت چې به کوم کسان په کوم جرم ماخوذ کړی شول هغو ته به د خپل جرم په تابين سزا گانې ورکول کېدې. په دې کې دا سزاگانې شاملې وې، په خر ډانگ کول، په خره سورول، مخ تورول، سرخربيل، په دورو وهل، سنگسارول وغيره. د شيخ ملي دا سزاگانې د پښتنو د هغه عامو رواجي سزاگانو، جرمانو او ناغو توغو نه بيخي مختلفې وې کومې چې به پښتنو مشرانو خانانو يا د هغوی جرگې د حجرې، کلي او قام د رواج مطابق ورکولې.[۲۹٤]

## د پښتو په زمانه کې تو هم پرستي

لکه څنگه چې وړاندې ذکر شوي، چې د هغې زمانې ولس د فهم پر ځای د وهم ښکار و، د فال، تعويذ، زيارت، پيرانو فقيرانو د دعاگانو اهميت ډېر زيات و او د وخت چالاکانو به هم ډېر په اسانۍ سره په ولس کې خپل اثر رسوخ پيدا کولی شو. مگر د دغه اثر رسوخ فناه هم مشکله نه وه، ولې چې د ولس په دماغو د وهم حکمراني وه. د ولس عام خيال دا و چې پير فقير فوق البشر هستي وي او د لوی روحاني عظمت خاوند وي. د هغوی عام حيثيت د عامو ادم زادو نه مختلف وي نو چې کله به د هغوی څه معمولي انساني کمزوري ښکاره شوه نو دا به يو تندر وه، چې د پير د اثر رسوخ کور به يې تباه وبرباد کړ او بيا به يې پيري روشن ضميري وه نه فقيري دستگيري. په هغه زمانه کې بعضې زيارتونه يې د بعضې مرضونو د علاج دپاره خاص طور مقرر کړي وو، لکه مشهور حصار بابا (د حصار چکدرې) او پاچاگل بابا (ديولۍ نېکپي خېل) د ننکو او مختلفو فاسدو دانو د علاج ټېکداران کړي وو او په بعضې زيارتونو بې د بادو بابا نوم ايښيوه. داسې کسان هم ليدی شوي دي، چې په ننکو بيماران وو او د زيارتونو په چارديوارۍ کې يې ساه ختلې، خو د معتقدانو په اعتقاد کې يو ذره کمی هم نه دی راغلی او دايې ويل چې د دې رنځورانو خوارانو اجل راغلی وه او نور يې ټوک په دنيا نه وه، ور نه تابه د بابا کرامت ليدلي وو، دا ناپوهي د زنانو د طبقو زياته برخه ده.[۲۹۵]

## د پښتو دور ځینې خوبیانې

لکه څنګه چې مخکې وویل شول چې د پښتو زمانه په وحشت او بربریت یاده شوې، خو دا خبره سمه نه ده، اصل کې په وادي سوات مختلف دورونه راغلي دي او ډېرو غیر ملکي جابرانو او امیرانو په دې ښکلې مزکه د قبضې کوښښ کړی او ځینې په کې عارضي کامیاب شوي هم دي مګر دې ولس غیر اسلامي یا غیر قومي تسلط برداشت کړی نه دی او په خپل همت او بهادرۍ یې بیا بیا ازادي حاصله کړې ده او کوم وخت چې د غیر قومي اقتدار خاتمه شوې ده نو دغه وخت ته یې د پښتو زمانه ویلې ده، یعنې د پښتون د خپلواکۍ او ازادۍ زمانه، خو په قلاره قلاره د کورنۍ فتنو او دشمنو په وجه دغې بدرنګ او بد شکل اختیار کړی دی. د پښتون دښمنانو[٣٦] دغې زمانې ته د وحشت او بربریت نوم ورکه او د پښتون خلاف یې د بې تمیزۍ طوفان پورته کړ او دا ځکه چې د پښتنو ازادي او خپلواکي د هېڅ چا خوښه شوې نه ده. بې شکه چې دغه وخت جهالت عام و او د جهالت په وجه خرابۍ هم زیاتې وې لیکن د عام ولس خوبۍ هم کمې نه وې.[٢٩٦]

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي چې د پښتو دور د یو تور دور په نوم یاد شوی، خو د دې دور خپلې خوبیانې او ښه صفتونه هم وو، ښه صفتونه او خوبیانې دا وې چې قوم په مجموعي توګه مېلمه دوست او د هر قسم قربانو عادت و. د خپلو وعدو پابند وه ،عام خیالات ډېر اوچت وو او د هر چا په زړه کې د اسلام له دښمنانو نه نفرت او کرکه موجود وه.

---

[٣٦] د پښتو زمانې ته د وحشت او بربریت زمانه چې کومو لیکوالانو ویلې ده په هغوی کې له نورو نه علاوه تاج محمد خان زېب سر پخپله هم شامل دی، چې د هغه د کتاب "نوے سوات او شاه جهانزېب جلد اول له ۴۰ مخ نه تر ۴۴ مخ پورې حوالې په دې تېرو مخونو کې درج هم دي. باچا صیب په سوانح کې دې دور ته د وحشت او بربریت دور هم وېل شوی دی د کوم ذکر چې وړاندې تېر شو. د تفصېل لپاره د باچا صیب سوانح د محمد اصف خان لیکلی کتابله ۲۰۱مخ نه تر ۲۰٦مخ پورې کتلی شئ. دغه رنګ محمد ابراهیم بازارګوي د فتاوي ودودیه جلد اول مطبوعه ۱۹۵۲ په دیباچه کې په مخ ب هم د پښتو د دور بړونکی تصویر وړاندې کړی دی. دلته تاج محمد خان زېب سر پخپله لیکي چې د پښتون دښمنانو دغه دور په خرابو لفظونو یاد کړی، نو د ټولو نه اول پښتون دښمن خو تاج محمد خان زېب سر معلومېږي که د هغه د خیال مطابق د پښتون دښمنۍ پیمانه دغه وي او له هغه نه زیات بیا پښتون دښمن باچا صیب معلومېږي ځکه هغه د دغې زمانې ډېرې خامیانې بیان کړي دي. له دې ټولو خبرو نه مونږ دا نتېجه راویستی شو چې درباري لیکوالانو اول دا شعوري کوښښ وکړ چې د پښتو دور خلکو ته بد ښکاره کړي چې خلکو ته د ریاستي دور قدر معلوم شي.

عوام د مذهب په مذهب مئېن وو او بیا خاص طور دا وصف د شاباشي لائق وه، چې په کمزوري دښمن به یې لاس نه پورته کولو او احسان به یې ورسره کولو او که خانداني مخالف به و او مرګونه به یې ترې کړي وو خو معافي به یې ورکوله او څوک چې به د چا په پناه کې و دهغه حفاظت به یې په نره سره کولو او که چا به په دې سلسله کې کوتاهي اختیار کړه یا به یې کمزوري ښکاره کړه نو په نفرت به ورته کتلی شو. دا د هغې زماني د عام ولس د زړه فراخی عملي ثبوت وه. په طبیعتونو کې تلخي او تیزي ضرور وه خو چې څه به یې ویل او کول د هغې به له دهوکې فرېب او بې ایمانۍ سره هېڅ تعلق نه وه. د امانت خیانت قومي اهانت ګڼلی شه او د لین دین سلسله به ډېره په ایمانداري او صفایۍ سره جاري وه. اقرار یې اقرار او انکار یې انکار وه[297]

د پښتو په دور کې په سوات کې هوټلې نه وې د هر خان او ملک حجره هوټل وه، چې دغلته هر وخت د اشنا او نا اشنا میلمنو پالنه کېدله او مفت ورته هر څه تیار وو او د هغوی د ارام به خاص خیال ساتلی شه، پخوا د هر چا سره د بل د دار و مدار فکر وه[298]تاج محمد خان زېب سر په خپل کتاب"افغاني دیوان زېب سر" کې د "پخوا او وس" تر سر خط لا ندې د زوړ سوات یعنې د پښتو د دور او د ریاست سوات د ځینو خبرو موازنه کوي او ډېرې داسې خوبیانې په ګوته کوي چې پخوا موجود وې او اوس نشته:

پخوا صدق اخلاص وه اوس لباس کوي یاران    دا بل راغی دوران
پخوا صدق همت او محبت او عقیدت وه    هر کار د ارادت وه
اوس کسب د هر چاشه چغلي کسب بهتان    دا بل راغی دوران
پخوا مینه د دین او د مذهب او داسلام وه    بل مینه د خپل قام وه
اوس اخلي دین فروش دولت په دین او په ایمان    دا بل راغی دوران
پخوا روحاني علم وه د شرعې د کتاب    هر کار وه د ثواب
اوس اوکړه ترقي سائنس حکمت په نن زمان    دابل راغی دوران
پخوا به د حاکم او د محکوم دا امتیاز وه    دحاکم خاطر نواز وه
اوس ظلم دی زیاتی دی د انصاف ورک شه نشان    دا بل راغی دوران
پخوا به د یتیم او د محتاجو دلداري وه    د خوارو غمخواري وه
اوس څکي د خوارو وینې لپې لپې ظالمان    دا بل راغی دوران
پخوا به اسمان زمکې په یو دم واخسته اور    مظلوم چې به کړه شور

اوس زور شوه ګمراهي نشته اثر د آه فغان دا بل راغی دوران
پخوا دهر چافکر هم د ذکر د اوراد وه قران د هر چا یاد وه
اوس لولي فلسفه قانون په ځائی هم د قران دا بل راغی دوران
پخوا په خپل ناموس به هم هر چا کاوه غېرت هر دم په هر ساعت
اوس هر څوک دلالي د خور او لور کړي په خپل ځان دا بل راغی دوران
پخوا به دشمني وه د مسلم او د کافر دا فرق وه ظاهر
اوس کاندي دښمني د مسلمان بل مسلمان دا بل راغی دوران
پخوا په معجزه د سلیمان روان سریر وه دا حکم د قدیروه
اوس پورته په هوا جهاز حکمت کړلو روان دا بل راغی دوران
پخوا په معجزو به کاڼو بوټو کړې خبرې نزدې وې که به لرې
اوس اوسپنې ګویا شوې د حکمت په امتحان دا بل راغی دوران
پخوا به نه حاجب نه چوکیدار د چا په در وه امیر غریب پرور وه
اوس نیاز دی نذرانې دي د حاجب او د دربان دابل راغی دوران
پخوا قدر د علم د ادب او د کمال وه کمال جاه وجلال وه
اوس مال دی چې کمال دی هم جلال دی د انسان دا بل راغی دوران
پخوا چې به زېب سره د هنر قدر قیمت وه د بل هغه قسمت وه
اوس ناخلي په کونجکو ستا در او ستامر جان دا بل راغی دوران[299]

د پخوا زمانې او د موجوده زمانې (یعنې د زېب سر د دې شعرونو د لیکلو د زمانې) موازنه چې زېب سر په دې شعرونو کې کړې ده نو زیاتې نیوکې یې د خلکو پر کردار او رویو باندې کړي، خو ځینو ځایونو کې دا هم ښکاره دي چې د پخوا زمانې په نسبت د موجوده دور حکمرانانو کې ظلم زیاتی ډېر دی او انصاف دلته نشته، خو کله چې مونږ د زېب سر د دې شعرونو موازنه د هغه بیان سره وکړو کوم چې ده د پښتو دور په باره کې کړی دی، نو د یو سړي په خبرو کې د زمکې او د اسمان فرق ښکاري، یعنې په کوم وخت کې چې د ریاستي دور صفت کول غواړي او ریاستي حکمرانان خوشحالول غواړي نو هغه وخت کې د پښتو دور ته د تیارو او ظلم دور وایي او کله چې په موجوده دور کې د خلکو د رویو او کردار غندنه کوي نو بیا د پښتو د دور د هر څیز ستاینه او صفتونه کوي. له دې نه پته لګي چې د پښتو دور

دومره خراب هم نه و، لکه دې درباري ليکوالانو چې بيان کړی دی او بيا دوی چې کوم صفتونه کړي دي نو دومره خوبيانې پکې هم نه وې خو د دې دواړو مينځ و مانه حالات وو.

د پښتو په زمانه کې چې کومې تورې تيارې وې او بيا په رياستي دور کې رڼا ګانې خورې شوې نو د دې دواړو دورونو موازنه تاج محمد زېب سر داسې کوي:

اوس هغـــــــــه دور د ظـــــــــالم د فتنـــــــو لاړ
د پښـــــــتون عمـــــر زبـــــون د دښـــــمنو لاړ
اميرالمـــــــومنين مياګـــــــل صـــــــاحب
چـــــې دی ســـــيوری د رحمـــــت د رب واهـــــب
دی رحمـــــت رب راليږلـــــی پـــــه دی قـــــام دی
پـــــه پښـــــتون دور د عـــــېش او د ارام دی[300]

زېب سر ليکي چې اوس د وهم پر ځای د فهم د تخريب پر ځای د تعمير او د جبر کبر پر ځای د انصاف او احسان دوران دی، د قوم ذهني او تمدني غرض تمام حالات بدل شوي او نه يواځې په قوم بلکې د ملک په تمامو مناظرو کې څرګند فرق راغلی دی. د نوي سوات هر سړی په سليقه او طريقه پوهه دی، خلک مهذب دي، مؤدب دي، د نوي سوات د سيل او سياحت د دنيا سياحان او محققان ارزو مند دي، سوات دويم کشمير دی، دلته د اسلامي قومي وروروليۍ سلسله قائمه ده، دلته د عقل او تدبير حکمراني ده، دلته صرف يو مذهب، يو مسلک او د ولس يوه عقيده ده، دلته د يوې کعبې، يو قران او يو الله پرستار مو جود دي، دلته د خلوص محبت او د اخلاص رواج دی، دلته د هر قسم فسادونو او بغاوتونو دروازې بندې دي، دلته د تعمير چرچې دي او د تخريب نشان ورک دی، دلته د غريبانو د مدد د محتاجانو د حاجت رواېۍ، د بيمارانو د علاج، د مظلوم د دادرسۍ صالحانه او شريفانه نظام موجود دی، دلته د عوامو سره شاهي رابطه د خلوص او محبت قائمه ده [301] په رياستي دور کې د ژوند په هره شعبه کې بدلون راغلی دی. اول به پراچګانو په خرو قچرو د تجارت سامان وړلو خو په رياست کې سړکونه جوړ شول او لارۍ موټرې به پرې چلېدې. باچا صيب توري وران وېش وکړ او خلک يې د کډو ګرځولو نه دمه کړل. په رياست کې کلي په کلي هسپتالونه او شفاخانې جوړې شوې، چې به پکې قابلان سنديافته ډاکټران موجود وو.[302] زېب سر ليکي چې پخوا به کورونه چوپړۍ وې، نن پرون د تېرې زمانې د خان په کور کې دهقان هم اوسېدل نه خوښوي. پخوا عام تلل راتلل پياده وو صرف

ځینو مشرانو به د خپلې سورلۍ لپاره اسونه ساتل، اوس پیاده ګرځېدل عار تصور کېږي او د اسونو ځای موټرو او ټانګو نیولی دی او عوام هم پیاده امدورفت نه کوي. اوس وخت هم قیمتي دی او خلک یې په قدر او قیمت پوهه شوي دي نو هر څوک ځان په جلدۍ سره منزل مقصود ته رسوي، پخوا به په پرتوګ او ساده قمیص او تورو پړو ولس خپله ګوزاره کوله، اوس کوټ واسکټ، قمیص، ټوپۍ، پتلون، جرابو، ټائي او سویټر د هغه ساده لباس ځای نیولی دی. پخوا خوراک ساده طرز معاشرت ساده وه او هر څوک د غریبانه ژوند سره اشناوو، د پړوکټونه او انډېري به استعمالېدل، اوس د پرو ځای نوارو ونیوۀه،خوراک مکلف شه، چای بسکټ رواج ومونده او د میز کرسۍ، قالین او د نوارو کټونه او کونچونه په سیالۍ سره استعمالېږي. [۳۰۳] د میاګل جهانزېب په دور کې چې سوات د ژوند په هره شعبه کې کومه ترقي کړې وه د هغې موازنه له تېر دور سره تاج محمد خان زېب سر داسې کړې ده:

هـــــر څــــه د ملـــــک بـــــې لارې وو روان ابــــه پــــه لارې
د دینــــه ټـــول احـــوال د ملـــک معلـــوم کـــه کـــه هـــو ښـــیار یـــې
اوس هــــر څــــه شـــو پــــه لار ابــــه د لارې شــــولې لـــــرې
د ملــــک د تـــــر قـــــې جـــــوړې شــــوې نـــــوې دا خــــبرې
اوس لویـــــه لار شــــــوه جــــــوړه د قــــــانون او د انصــــــاف
صـــد شـــکر چـــه پـــه ملـــک کـــې نشـــته ځـــای د هـــېڅ خـــلاف
نـــــه بغـــــض نـــــه حســـــد شـــــته نـــــه د یـــــو بـــــل دښـــــمنۍ
یـــــادېږي لکـــــه خـــــوب قیصـــــې اوس مـــــونږ تـــــه پخـــــوانۍ
رحمـــــت د رب نــــــازل شـــــــه عـــــــدل فضـــــــل د ســــــلطان
دا بـــــــــــــــــــــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــــــــــــــــــی دوران
نـــــه هغـــــه ظلـــــم زور شـــــته نـــــه ســـــتم او رشـــــوتونه
رحـــــمان پـــــه ســـــوات بـــــونېر کـــــړل نـــــازل خپـــــل رحمتونـــــه
هــر خــوا ښــکلې بــاغچې دي چــې بلبــل پــرې خــوش خــواني کــړي
راعــــــي پــــــه رعایــــــا عــــــدل احســــــان، مهربــــــاني کــــــړي
بـــــې شـــــکه جـــــوړ جنـــــت دی ســـــوات پـــــه امـــــن پـــــه امـــــان
دا بـــــــــــــــــــــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــــــــــــــــــی دوران
پخـــــوا نـــــه علـــــم فـــــن وه نـــــه مکتـــــب وه نـــــه اســـــتاد

یـــو کســـب وه چـــې یـــادوه او نامـــه یـــې وه فســـاد
ځـــوانمرد وه هغـــه څـــوک چـــې بـــه قاتـــل د مســـلمان وه
رهـــزن شـــجاع بالـــه شـــه نـــه څـــه امـــن نـــه امـــان وه
نـــن علـــم دی هـــنر دی چـــې پـــرې فخـــر کـــړي افغـــان
دا بـــــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــی دوران
پخـــوا د عـــدل نـــوم چـــا اخســـتی نـــه شـــه پـــه ژبـــه
مظلـــوم پـــه غـــم اختـــه وه تـــل د ظلـــم د غضـــبه
کـــه جـــوړی محکمـــې وې خـــو انصـــاف وه پـــه رشـــوت
کامیـــاب بـــه هغـــه څـــوک وه چـــې پـــه لاس یـــې وه دولـــت
اوس عـــدل دی کـــرم دی هـــم انصـــاف دی هـــم احســـان
دا بـــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــی دوران
پخـــوا دهوکـــه فریـــب، بـــې ایمـــاني او نـــاپوهي وه
پـــه نـــوم اســـلام اســـلام وه مګـــر شـــغل ګمراهـــي وه
د قـــوم او هـــم د ملـــک د تبـــاهۍ وو ټـــول کارونـــه
هـــر ځـــای فقـــط د زور ظلـــم وو ګـــرم بازارونـــه
اوس صـــلح راســـت بـــازي ده زېـــب زینـــت د مســـلمان
دا بـــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــی دوران
پخـــوا فـــرق ورک شـــوی هـــم د حـــق او د باطـــل وه
وه شرم علـــم حلـــم جهـــل فخـــر د جاهـــل وه
د جهـــل ټـــول رســـمونه وو جـــاري پـــه ټـــول وطـــن
دا بـــاغ وه د بلبلـــو ځـــای د زاغ او د زغـــن
اوس راغلـــه روشـــنایي حـــق غلبـــه اوکـــړه پـــه ځـــان
دا بـــــــــــــــــــل راغـــــــــــــــــــی دوران
پخـــوا وریـــځ خـــوره وه پـــه وطـــن د پرېشـــانۍ
خـــواري او بـــې کـــاري او نـــاداري او نـــاتوانۍ
نـــه ســـود او نـــه ســـودا وه ســـوداګر وو خوارزبـــون
ډېـــر فـــرق دی ای خلقـــه د دې نـــن او د پـــرون

اوس ورک شــــه د خـــــواري او بېکــــــارۍ نــــــام ونشــــــان
دا بـــــــــــــــــــــــــل راغــــــــــــــــــــــــــی دوران
پخـــــوا لارې کــــــږې وې د هـــــر کــــــوږ رفــــتن د پــــــاره
مـــو زيـــر غوښـــتې فائـــدې وې خـــاص د خپـــل بـــدن دپــــاره
ټـــول کـــوږ قـــانون جـــاري وه پـــه دې ملـــک د پښـــتنو کـــې
دا قــــوم غريـــب اختـــه وه يـــو د بـــل پـــه دښـــمنو کـــې
اوس ســـاز شـــو صـــاف ســـړکونه قـــانون جـــوړ شـــه د قـــران
دا بـــــــــــــــــــــــــل راغــــــــــــــــــــــــــی دوران
پخـــــوا پرېکيـــــدې ونـــــې داهـــــم ځـــــومره نـــــادانۍ وې
نقصــــان د مېــــوو ســـــيورو وه د هـــــر چـــــا پريشـــــانۍ وې
د خپلـــــې عارضـــــې فائـــــدې پـــــه خيــــال بــــه وو تبرونــــه
نــــادان بــــه پريکــــول پــــرې د خونــــه چنــــار سرونــــه
اوس جـــرم دی کــــه اوکـــړي ځـــوک هـــم دا قـــومي نقصــــان
دا بـــــــــــــــــــــــــل راغــــــــــــــــــــــــــی دوران
پخـــــوا بــــه قــــران پــــروت وه خــــاص د پـــــاره د قســـــم
اګــــاه هـــــېڅ پـــــه معنٰـــــي د قـــــران نـــــه وه يــــــوادم
لــــه دی رنګــــه قســــمه جـــــوړې شـــــوې مســـــخرې وې
پرتـــې پـــه پريشـــان حـــال هـــم د قـــران دا ســـيپارې وې
اوس حکـــم دی چـــې پـــوه دې پـــه معنٰـــي شي هـــر انســــان
دا بـــــــــــــــــــــــــل راغــــــــــــــــــــــــــی دوران
اوس هـــر ځـــای پـــه هـــر ســـکول کـــې د قـــران کيـــږي تعلـــيم
پيـــدا شـــه پـــه هـــر زړه کـــې د قـــران قـــدر عظـــيم
زيـــب سره جهانزېـــب د جهـــان نقـــش کـــه بـــدل
رحمـــت هـــزار رحمـــت دې وي پـــه ده دلم يـــزل
بــــاقي دې پــــه دې قـــام وي تـــل دا ســــبوری د رحـــمان
دابـــــــــــــــــــــــــل راغــــــــــــــــــــــــــی دوران[۳۰۴]

د زېب سر په دې اوږد نظم کې هغه په خصوصي توګه د میاګل عبدالودود او بیا د هغه د ځوی میاګل جهانزېب د باچاهۍ د دور موازنه کړې ده او بیا یې نسبتاً د میاګل جهانزېب ته ښه دور ویلی دی. په یو څو ځایونو کې یې د هغه زمانې د وزیرانو[۳۷] په ځینو خبرو هم نیوکې کړې دي. حبیب الرحمٰن هم په یو نظم " پخوانی سوات او نن" کې د زوړ او نوي دور موازنه داسې کړې ده:

وطــــــــن د ســـــــوات اوس دلیـــــــدو قابـــــــل شـــــــه
هـــــــم د تعریــــــــف د اوریــــــدو قابـــــــل شـــــــه
شـــــــکر اوباســـــــئ د خـــــــدای پـــــاک ســـــــواتیان
اوســـــــنی ســـــــوات د یـــــا دېــــــدو قابـــــل شـــــه
دا هغــــــــه ســـــــوات چـــــــې د ظلمونـــــــو کـــــــور وه
زړه د هـــــــر چـــــــاد یـــــــو لـــــــه بلـــــــه تـــــــور وه
حـــــــق او انصـــــــاف نـــــــه چرتـــــــه چـــــــا پېژنـــــــده
شـــــــوکې ډاکـــــــې وې ډېـــــــرې ظلـــــــم زور وه
ګڼلـــــــی شـــــــه بـــــــه ورو دښـــــــمن د ورور
بـــــــل پـــــــه هـــــــر ځـــــــای کـــــــې وه د ظلـــــــم اور
داد خـــــــواهي چـــــــاد غریبـــــــانو کړلـــــــه
چـــــــې د چـــــــا زور وه ،وه د هـــــــاغوکور
د خپـــــــل پـــــــردي وه امتیـــــــاز چرتـــــــه کـــــــې
د ځـــــــوی او پـــــــلار وه نـــــــاز نیـــــــار چرتـــــــه کـــــــې
ژوبلـــــــې مرګونـــــــه وه پېښـــــــه د وطـــــــن
د داد رســـــــی کېـــــــده اواز چرتـــــــه کـــــــې
د خـــــــان ملـــــــک وه واک اختیـــــــارد کـــــــلي
کـــــــړه پښـــــــتون میـــــــا مـــــــلا بیګـــــــار دکـــــــلي

[۳۷] زېب سر په خپلو وړومبو کتابونو کې د سوات د دې وزیرانو ډېر صفتونه کړي دي خو چې کله د وزیرانو او د میاګل عبدالودود په مینځ کې اختلاف راغی او وزیران یې له سوات نه وویستل نو بیا زېب سر د هغوی په هجو کې یو کتاب لیکلی دی چې نوم یې "موزیرنامه" دی. داسې هم ویل کېږي چې میاګل عبدالودود په خپل دور کې په دې کتاب پابندي لګولې وه.

خـــــان بـــــه حجـــــره کلـــــه بـــــه کـــــور جـــــوړاوه
کـــــولی خپـــــل نـــــه شـــــه چـــــا کـــــار دکـــــلي
هغـــــه ســـــړی بـــــه وه نامـــــدار پـــــه ســـــوات کـــــې
چـــــې وه هغـــــه بـــــه لـــــوی خونخـــــوار پـــــه ســـــوات کـــــې
یـــــا زمانـــــه وه هغـــــه یـــــا ننـــــی
چـــــې نشـــــته نـــــن څـــــوک ســـــتمګار پـــــه ســـــوات کـــــې
د غـــــل رهـــــزن وه د شـــــوکمار زمانـــــه
پـــــه یـــــو چـــــال نـــــه کـــــوي رفتـــــار زمانـــــه[۳۰۵]

د ریاست نه په اولني دور کې او بیا د ریاست په دور کې په سوات کې ډېر بدلونونه په نظر راځي. دا خو ښکاره خبره ده چې د ریاست له جوړېدلو نه وړاندې دلته به خلکو د یو قبایلي نظام لاندې ژوند تېرولو او د حکومت له راتلو سره په ټولنه کې ډیر بدلون راغی.

## د سوات خوشنویسان

په دې دور کې په سوات کې ځینې خوشنویسان او کاتبان هم موجود وو کومو چې به د پښتو د کتابونو کتابت کولو. په دوی کې فیضان سوات، عزیز الرحمان تحصیلدار، منشي ګل برخان او مهرالنسا بانو شامل دي.

## د دې دور د ځينې ليکوالانو پېژندګلوي

### تاج محمد خان زېب سر

د تاج محمد خان زېب سر د پلار نوم پير محمد خان و، دی د سوات د بره بانډۍ کلي اوسېدونکی و. زېب سر په ۱۲۹۸هجري بمطابق ۱۸۷۴عیسوي پيدا شوی و. د ۱۹۸۱م کال د دسمبر پر ۲۵مه وفات شوی دی. هغه په نظم او نثر دواړو کې ليکل کړي او د ولي محمد طوفان او نورو شاعرانو له طرف نه ورته د ۱۹۵۱م کال د اکست پر ۲۴ مه د " فردوسي سوات" لقب ورکړل شو. مياګل عبدالودود هغه ته د "اديب سوات" لقب هم ورکړی و. هغه رسمي زدکړې نه وې کړې، خو په پښتو، فارسۍ، عربۍ او اردو ژبو پوهېده. د زېب سر چاپ او ناچاپ اثار دا دي:

علامات قيامت، اصلاحات سوات، مجموعه مضامين، افغاني ديوان زېب سر، د پښتو خطبې، عروج افغان ( څلور جلدونه)، مناسک حج (سفرنامه)، ديوان فارسي (ناچاپ)، مجموعه خطوط زېب سر به زبان فارسي، انوار سهيلي منظوم (ناچاپ)، تاريخ خلفا اربعه منظوم (ناچاپ) ، نوی سوات (څلور جلدونه)، موزير نامه.

د سوات يو ليکوال محمد اصف خان د " سرګزشت فردوسي سوات تاج محمد خان زېب سر" په نوم يو کتاب مرتب کړی، چې د زېب سر د ژوند او ادبي خدماتو ذکر لري.

### حاجي عبدالحنان

حاجي عبدالحنان د مينګورې اوسېدونکی و."د جنت حوره" په نوم يې يو کتاب له يو بل مصنّف محمد صالح مظلوم سرحدي سره په شريکه ليکلی دی. د محمد صالح مظلوم سرحدي له نوم سره په کاتب له پاسه مقام هاتيان ليکلی دی. په کتاب کې محمد صالح مظلوم په يو شعر کې د خپل کلي ذکر داسې کوي:

چــــې تـــــر څـــــو پـــــورې مظلـــــوم پکـــــې اوســـــيږي
تـــــر هغـــــې پـــــورې ګلـــــزار بـــــه وي حصـــــار[۳۰۶]

په حاشيه کې يې ليکلي، چې حصار د مظلوم صاحب د کلي نوم دی. دا کلی له هاتيانو نه مشرق طرف ته لوند خوړ ته نزدې پروت دی. د حاجي عبدالحنان صاحب له نوم سره مينګوره ليکل شوې ده. په کتاب د چاپ کېدو نېټه نشته خو په کتاب د رياست سوات

د ليکلو نه دا معلومېږي چې دا کتاب په رياستي دور کې چاپ شوی دی. د دې کتاب پبلشر حاجي عبدالحميد و محمد سعيد مالکان اسلام بک سټور بازار مينګوره رياست سوات دی. د دې کتاب کتابت عبدالودود خوشنويس کړی او د خورشيد عالم پريس لاهور نه چاپ دی. وايي چې د حاجي عبدالحنان نيکونه د صوابۍ ډاګۍ نه راغلي وو. د حاجي عبدالحنان قبر په ډېرۍ مقبره مينګوره کې دی. په مينګوره کې د ده يو نمسی فضل برهان وايي چې د ده يوه قلمي نسخه هم وه خو بې درکه شوې ده.[۳۰۷] د حاجي عبدالحنان دوه ځامن وو، يو فضل منان او بل فضل حنان. د فضل منان دوه ځامن دي فضل برهان او فضل غفران .[۳۰۸]

## عبداللطيف شاهين

مخکې له دې نه چې د شاهين په شاعرۍ کې د پښتني اقدارو جاج واخستی شي دا خبره ډېره ضروري ګڼم چې د شاهين صيب د ژوند په باره کې لنډ شان ذکر وکړی شي. عبداللطيف شاهين په ۱۹۳۴کال کې د سوات په چينداخوره[۳۰۹] نومې کلي کې د صاحبزاده احمد جان په کور کې سترګې وغړولې. د شاهين صيب د نيکه نوم صاحبزاده مدرار الله وه او د صاحبزادګانو له نسب سره يې تعلق لرلو.[۳۱۰] دوی وړومبۍ زدکړې د خپل کلي په جماعت کې کړې وې او بيا يې تر ځلورم جماعت پورې سبق د هندوستان په ډيلي ښارکې وويلو. په دغه دوران کې دوی په چهټۍ پاکستان ته راغلل او بيا چې واپس تلل نو داخلې بندې وې، نو دوی په همدرد دواخانه کې نوکري شروع کړه. اته انې به يې ورته د يوې ورځې مزدوري ورکوله او بيا چې کله نوکري پخه شوه نو يويشت روپۍ يې د مياشتې تنخواه مقرر شوه. په ۱۹۴۷ کال چې کله پاکستان جوړ شو نو دوی له ډيلي نه پاکستان ته راغلل او د دوی د وينا مطابق دا د دوی د ژوند يوه ترخه واقعه وه. شاهين صيب په ۱۹۵۸کال کې واده وکړو، الله پاک ورته شپږ زامن او درې لوڼه ورکړي دي. د هغوی د وينا تر مخه هغوی په هغه وخت کې شاعري شروع کړې وه چې لا ږيره يې په مخ نه وه راغلې. دوی په مجلس پښتون رياست سوات کراچۍ نومې يوه ټولنه کې قومي نظمونه ويل شروع کړي وو. دوی به له پېښور نه د يو وتونکي اخبار "مظلوم دنيا"کې قومي نظمونه ليکل او دغه رنګ د خانمير هلالي اخبار ته به يې هم نظمونه لېکل. د خپل دور په شاعرانو کې يې د نوښار عبدالله استاذ د خوښې شاعر و. د دوی دوه شعري مجموعې چاپ شوي دي، يوه شعري مجموعه يې د"شغلې" په نوم په ۱۹۶۹ کال کې چاپ شوې ده او بله

مجموعه يې د"ستا نظر کې څنګه ښکارم" په نوم په ۲۰۱۱ کال کې د سوات کبل د جان کتاب کور له خوا چاپ شوې ده. شاهين صيب په سوات کې د مختلفو ادبي ټولنو غړی او مشر هم پاتې شوی، چې پکې سوات ادبي کاروان او پښتو ادبي تړون کبل د يادولو وړ دي. شاهين صيب د دوه زره شپاړلسم کال د ستمبر پر دېرشمه له دې فاني دنيا نه د همېشه لپاره سترګې پټې کړې،په ګور بې نور شه.

## رحمت الله استاد

رحمت الله استاد يو ولسي شاعر و، د پلار نوم يې حبيب الله و. رحمت الله استاد په ۱۸۹۹م کې په سوات ګوګدره نومې کلي کې پيدا شوی و. د راجه ګيرا د لور متعلق يو روايت او د پيريانو په باره کې يوه قيصه عنايت الرحمان په ۱۹٦۸م کې له رحمت الله استاذ شاعر نه نقل کړې او ليکلي يې دي چې عمر يې پينځه شپېته کاله دی، نو په دې حساب د هغه د پيدايښت کال ۱۹۰۳م معلومېږي.[۳۱۱] د دښمنۍ په وجه اوډيګرام او بيا وروسته مينګورې ته منتقل شو. دی په ځوانۍ کې په انګريزي فوځ کې برتي شو، خو د خپل ازاد طبيعيت په وجه يې دا نوکري پرېښوده او بيا د څلوېښتو کالو په عمر د رياست سوات په فوځ کې برتي شو. په ۱۹٦۴م کې د حوالدار په حيثيت له فوځ نه ريټائرډ شو. د ۱۹٦۹م کال د ستمبر په وړومبۍ نېټه وفات شو، قبر يې د مينګورې د حاجي بابا په مقبره کې دی. د ده د ژوند په باره کې نور معلو مات ما د ۲۰۱۳م کال د اکتوبر پر ۲۱ مه په روزنامه چاند سوات کې ليکلي دي. د دويم نړيوال جنګ په باره کې د هغه يوه مشهوره چاربيته دلته وړاندې کوو:

راپورته شه جـــــــــرمن
دنيا شوه په لـــــــــړزان
په کور کې د يورپينو داسې جنګ جـــــــدل شه
کمزوری په کې دل شه
راپورته دا پارټي شوه
کافـــره کميټي شوه
نازيان بناوټي شوه
جـــــرګه يې داسې وکـــــړله په ښار کې د برلن
راپورته شه جـــــــــــــــرمن

گلبرزه که هټلـــــــــــــــــر
رومل[۳۸] و که املـــــــــــــــر
گوئی رنگ[۳۹] یې غټ کافـــــر
هر هاس او رمېنډراف وو په کې دواړه شیطانان
دنیا شوه په لـــــــــــــړزان
رومـــــــــــــــل به شکایت
کولو هــــــــــــر ساعت
هټلر یې کـــــــــــــړو وچت
حمله یې په پولینډ[٤٠] وکـــړه د سېلمې اور پرې بل شه
کمزوری په کې دل شه
حملـــــــــــــــه یې په پولینډ
رقم یې کـــــــــــــړو هر لینډ
چغـــــــــــــــل و چیمبر لین[٤١]
وزیر د انگـــــــــــــــرېزانو په دې جنگ و راضي من
ورته شه جـــــــــــــرمن

وزیر د انگـــــــــــــــرېزانو
خوریی د جـــــــــــــرمنیانو
جوړ کــــــــړی یې نقصان و
مدد چې یې اونکـــــــــــــــړلو د سویډن په مېدان

---

[۳۸]General Rommel د ۀټلر د ټېنکونو ماهر وه.

[۳۹]Hermann Göring د جرمني هوائي فوځ مشر و. ده په ۱۸ اگست ۱۹۴۰ په انگلینډ وړومبۍ هوایي حمله وکړه.

[٤٠]د دویم جنگ عظیم شروع د جرمني په پولینډ د حملې نه وشوه ـ جرمني په اول ستمبر ۱۹۳۹ په پولینډ اولنۍ حمله وکړه او دغه رنگ په ۲۲ ستمبر ئې دارالحکومت وارسا قبضه کړ. په ۱۷ ستمبر روس هم په پولینډ حمله اوکړه او بیا د روس او جرمني په مینځ کې په ۲۹ ستمبر د بارډر معاهده وشوه. په دې وخت کې فرانس او برتانیه د پولېنډ ملگري وو او د جرمني او روس اتحاد و.

[٤١]د جرمني خلاف په وخت په ایکشن نه اخستلو د ده خلاف خلک راپورته شول او په ۱۰ مئي ۱۹۴۰ د استعفي ورکړه. له چیمبرلېن نه وروسته ونسټن چرچل وزیر اعظم شو.

دنیا شوه په لـــــــــړزان

سویډن او د ډنمارک[42]
د ناروی[43] باچا ورک
بېلجیم غریب یې سپک
اواز یې فرانس ته وکـــــــړو تاته پاتې مې بدل شه
کمزوری په کې دل شه

کـــــــړو فرانس ته یې اواز
ښکاره یې کـــــــړلو راز
هټلر کـــــــړو کومی واز
دېره شه مخــــــــامــــــخ چې بندرگاه ته د لندن
راپورته شه جـــــــــرمن

لـــندن پسې جـــــازونه
ورپورته کـــــــړه نېزونه
پکې وو ډېر فوځـــــــونه
گــــــــولۍ به پرې د پاسه ورېدې لکـــــــه باران
دنیا شوه په لـــــــــړزان

بـــــــاران چـــې ورېدو به
هـــــر څوک ترې یرېدو به
دنیـــــــــا نه تېر ېدو به
واړه وو که زاړه وړي ماړه هــــــــــــــر سړی جل شه
کمزوری په کې دل شه

هر چا به کـــــــړو فریاد
خپل رب به یې کـــــړو یاد
دشمن یې کـــــــړو برباد

---

[42] جرمني په ۹ اپرېل ۱۹۴۰ ډنمارک قبضه کړه.

[43] جرمني په ۱۹۴۰ کې ناروې همقبضه کړ. په ناروې کې نارویجین نازي پارټي وه. د دې پارټۍ مشر Major Quisling د هټلر سره رابطې وې.

یورپ نه شو روان شــــــولــــــــو یونان د ده پسند
راپورته شه جـــــــرمن

یونان[٤٤] کې چې دېره شه
د کــــــریټ[٤٥] په ننداره شه
خپل زور ته چې غــــره شه
ټېنکونه یې ورخلاص کړلـــــو تباه یې کړل روسیان
دنیا شوه په لـــړزان

د روس سره یې جنګ
ده جوړ کـــــــړو په څنګ
میدان په وینو رنګ
داخل په سټالنګ راډ[٤٦] کې هر سړی وروستو اټکل شه
کمزوری په کې دل شه
استالن شه په قـــــــار
اوچت شه لکه مـــــــار
بیا یې دا و ګفتار

مدد دې رالــــه راکـــــــــــړي نن برطانیه تورزن
راپورته شه جـــــــرمن

برطـــــــــانیه نهنګ
وچت شه په غورځنګ
تیـــــار شه په تفنګ
فوځــــــــــــونه یې د هند کـــــــړلو ټول مصر ته روان
یا شوه په لـــــــــړزان

[٤٤] په ۲۴ اپرېل ۱۹۴۱ یونان جرمني ته سرنډر شه.
[٤٥] په میډیټیرینین کې د یوې جزیرې نوم دی. کله چې په ۲۴ اپرېل ۱۹۴۱ یونان سرینډر شه نو هلته موجود برتانوي ځواکونه کریټ ته راغلل او د میاشتې نه په کمه موده کښې یې کریټ Crete هم خالي کړه او واپس شول.
[٤٦] ١٩٤٢

ټول فوځ اتم نمـــــــبر
د جنګ شو مقـــــــرر
منټګمري کمـــــــانډر
طبروق او په سولـــم په بن غازي د غم غوبل سه
کمزوری په کې دل شه
طبروق او په سولـــــــــم
سپاهيانو د عجـــــــــم
چـــــــــې کېښودو قدم
طبريا او مراکـــــــــو ترېنه قبضه کـــــړو امريکن
راپورته شه جــــــــرمن
طـــــــــبريا او تېنوس
ورخلاص يې کړو جاسوس
اربونه د فلـــــــــوس
قامـــــــونه په دولت يې بغاوت کـــــــــړل د اټان
دنيا شوه په لـــــــــړزان
اټلي د جنګ محـــــــاذ
دوه زره ميلـــــــــه ساز
پلـــــن والـــــی يې دراز
په تېښته باندې لاړهغه ورځ لېټ مخکې مزل شه
کمزوری په کې دل شه
دويمه حملـــــــــه ياره
سرکار کـــــــــړله تياره
د فـــــــرنچ د ننګ د پاره
شپږ زره هـــــــوايي جـــــــــازونه لاړل په رفتن
راپورته شه جــــــــرمن
درې زره يې بحـــــــري وو
اواز يـــــــې د بـــــري وو

دا حکـــــــم سرکاري وو

افسر يې الېگزېنډر کمـــــــــــــــــانډر کاو کمان

دنيا شوه په لـــــــــړزان

افسر يې لکـــــــه شېر

په لاس کې يې شمشېر

دښمن يې کـــــړو راگېر

د توپو د غړمبا نه په نارمنډه[47]کې زلـــــــــــزل شه

کمزوری په کې دل شه

د توپو لـــــــــــــړايي وه

شاهـــــــــــــانه بړايي وه

بېلجيم ته چـــــړهــــــايي وه

مدد چې يې ورکـــــــــــــــړی وو بادشاه د واشنگټن

راپورته شه جـــــــرمن

بادشاه شپږم جــــــــــارج

تعليــــــــم يې د کالـــــــج

دشمن يې کـــــــــړو چارج

وسله يې کېښودلـــــــــــــــه سلاميان شو جـــــرمنيان

دنيا شوه په لــــــــــړزان

کم اصل جـــــــــــــرمنی و

کمـــــــــــــــزوری پخوانی و

جــــوړ کړی يې شيطانی و

يورپ په وزيرانو کې کامياب ځکه چرچـــــــل شه

کمزوری په کې دل شه

چرچـــــــل وزير اعظــــــــــم

تاريخ يې کـــــــړو رقــــــــم

خبر شو ترې عالـــــــــــــــم

[47] جون١٩٤٤

ملکونه د ظالم څلور ټوټې کـــــــــړل چار مسکن
راپورته شه جــــــرمن
ملکـــــــــــونه د ظاليم
بيا دوي کړلــــــــو تقسيم
لاپته دی غليــــــــم
مشرق محـــــــــاذ د روس شو جنوبي د فرانسيانو
دنيا شوه په لـــــــړزان
مغـــــــــرب شه د سرکار
پوهېنده په هـــــــر يو کار
دی گـــــــــرېټ فتن تيار
شمال يې امريکې ته حــــــواله کــړو د ده خپل شه
کمزوری په کې دل شه
سن انيس سوه خـــــــاص
انتا ليس پرې د پاس
مضبوط کـــــــومه باث
د جنگ بنياد چـــې کېښود په دنيا کې گپ سپن
راپورته شه جــــــرمن
دنيا کې جنگـــرېزي شوه
هرځای کې خونرېزي شوه
غالبه انگـــــــرېزي شوه
پنتاليس کې شـــو ختم ځکــــــه ويم د جنگ بيان
دنيا شوه په لـــــړزان
شاعر د مينگـــــــــورې
کمال کـــــــوي خبرې
لغات يې ملغلـــــــــرې
استاد رحمت الله وايي قلاره هــــــــــر محفل شه
کمزوری په کې دل شه

## زرگر شاعر

پروېش شاهين ليکي چې په ۱۹۳۵م کې د سوات په سيند کې يو طوفان راغلی و، چې زيات زيان پکې د يو زرگر عبدالکريم استاذ شوی و. د هغه په دغه تباهۍ يو بل زرگر چې شاعر و څه دا رنگ وينا کړې ده:

زرگره ټينگ شه ورته درياب موجونه وهي
د اولس ټا [کذا] د ابو سر په کوهستان اولگېد
داسې طوفان اولگېد
د باڼيال تحصيلدار
په ښکته ووهلو تار
سپه سالار شولو بيدار
وزير صيب خوشې کړه بنگله سيند وايي سندره ورته
ټينگ شه زرگره ورته
په سنگوټه به شي خلاص
ماورته کړی دی قياس
خوله دې نغاړه سين د هيچا ملازې نه کوي
دېرې ستېزې نه کوي
خوله دې بيرته که وس
لاس ورته ورته که وس
پېټۍ دې سر ته که وس
څه سنگوټې له اماني پربړده شولگره ورته ټينگ شه زرگره ورته[۳۱۲]

## سيد عثمان طالب

سيد عثمان طالب د سوات په گدا کوټ نومې کلي کې په۱۸۹۰م کال کې پيدا شوی و. دی د گدا کوټ بابا نمسی وه څوک چې د اصله سيد و او د ببرې خوشاب نه گدا کوټ ته په ميشته راغلی وه.[۳۱۳] سيد عثمان طالب په۱۹٦۲م کال کې د دوه اويا کالو په عمر وفات شوی دی، قبر يې په مينگوره کې دی.[۳۱٤]

## فضل الرّحمان فیضان

فیضان په ۱۹۲٦م کې په عالم گنج کې پیدا شوی و. د ده خپل نوم فضل الرحمان و، د پلار نوم یې عبدالرّحمان و او د نیکه نوم یې شیخ حبیب الله و، په قوم ټکریاخېل و.[۳۱۵] د پینځلسو کالو په عمر کې یې د نعتونو وړومبی کتاب "نوبهار مدینه" لیکلی و. په مردان (جمال گړهی) او شامنصور کې یې زدکړې کړې وې. په نوښار (چوکي درب) کې به د شاه افضل استاذ په جماعت کې اوسېده او د خوشنویسۍ فن یې د هغه نه ایزده کولو، په ریاستي دور کې والي سوات مرزا واخسته، څه وخت وروسته د ځینو خلکو په سازش دی له نوکرۍ نه وویستل شو او په ۱۹۵۰کال کې پېښور ته لاړه. په پېښور کې له راحت زاخیلي سره دېره شو، په دغه وخت کې د جهاد او افغان اخبارونو کاتب خاص مقرر شو. څه وخت وروسته چې کله والي صیب تحقیقات وکړل، نو په ۱۹۵۱ کې یې دی دوباره سوات ته راوست او والي صیب په خپل دفتر کې مرزا ولگولو . د خادم محمد اکبر او بادشاه گل نیازي په مشوره یې فیضان تخلص خوښ کړ، له دې نه وړاندې د ده تخلص طالب و. د بې شماره کتابونو کتابت یې کړی او په یو شمېر کتابونو یې مقدمې لیکلي دي. فیضان صیب د ۱۹۸۷ کال د اگست پر ۲۷مه وفات شوی دی. د فیضان د کتابونو نومونه دا دي: مجموعه الخطب کلان (۱۹۴۴) دیوان فیضان (۱۹۵۸)، دریتیم (۱۹٦۲)، تحفه جهانزیبي (۱۹٦۵)، قیصه د امیر افضل (۱۹۷۵)، خلورگلونه (۱۹۸٦)،سیدو بابا (۱۹۸٦)، نوراني شمع (۱۹۹٦)، گلدسته حجاز (۱۹۴۲)، فراق، عربي پشتو بول چال، گلزار تعویذات (فارسي)، گلزار تعویذات (پشتو) او نور.

## قاضي دا دا گل

قاضي دادا گل د سوات په کوزه بانډۍ کې په ۱۸۷۹کې پیدا شوی و او په ۱۹۷۴کې د پینځه کم سلو کالو په عمر کې وفات شوی دی. د ده خپل نوم قاضي محمد سید بادشاه و، د پلار نوم یې قاضي میران احمد شاه و،په قوم اباخېل وه.[۳۱٦] د قلمي نسخې یو نقل یې زما په ذاتي کتابتون کې محفوظ دی.

## قاضي مصطفی جان

قاضي مصطفی جان په غالیگي کې په ۱۸۹۴کې زېږېدلی و، په څلورم د جولائي ۱۹۷۰د خالي په ورځ وفات شه[۳۱۷]

## محمد شیرین حافظ

د محمد شیرین حافظ نیکنی کلی د سوات ټال نومې کلی دی. د شیرین نیکه د پېښې په لحاظ اینګر و. دی د خپل غربت له وجې له ټال نه کانجو ته راغلی و او دلته مېشت شوی و. شیرین حافظ چې پوره نوم یې محمد شیرین و دلته په کانجو کې په ۱۸۸۸ کال کې پیدا شوی و. دی د قران پاک حافظ هم و نو ځکه په شیرین حافظ مشهور شو. د قران له حفظ کولو نه پس شیرین حافظ نور دیني کتابونه څه په خپل کلي کانجو او څه په نورو علاقو کې وویل. له حصول علم نه پس د ځوانۍ په عمر کې کلکتې ته لاړ، اتلس کاله هغه په هندوستان کې د علم تنده ماته کړه او ورسره یې امامتي هم کوله. د اتلسو کالو له اوږدې مسافرۍ نه بعد خپل وطن ته واپس راغی، وطن ته د واپسۍ نه پس شیرین حافظ د سوات د نیکپي خېلو په علاقه بره باندۍ کې استوګنه اختیار کړه. دلته هغه تر اخري عمره پورې په یو جماعت کې امامتي کوله او په ۱۹۵۸ کال کې د اویا کالو په عمر کې هم په دې کلي کې وفات شه.[۳۱۸] د محمد شیرین حافظ قبر د بره باندۍ مشرق اړخ ته د ډهېرۍ بابا په مقبره کې دی.[۳۱۹]

شیرین حافظ د خپل وخت یو منل شوی چاربېتي شاعر و، اګر چې هغه لیک لوست هم کولی شه خو هغه خپل کلام په تحریري صورت کې نه دی محفوظ کړی. د هغه په وخت کې پښتو چاربیته په سوات کې د ارتقاء اخري منزلونو ته رسېدلې وه. دغه وجه وه چې شیرین حافظ به له چاربېتې نه علاوه په بل صنف کې طبع ازمائي نه کوله. د محمد شیرین حافظ د کلام څه نمونه ما په بره باندۍ کې د مرین[۳۲۰] نه ریکارډ کړي دي.

## مولوي مختیارالدّین

مولوي مختیارالدین د نمر خاته طرف ته د کوکارۍ په دره کې په دنګرام نوي کلي کې په ۱۹۰۴ کال کې زېږېدلی و.[۳۲۱] مختیار الدین په ۱۳۵۹هـ (۱۹۴۰م) " د فلېل خان او نسیم جان" په نوم د پښتو یو منظوم روماني داستان لیکلی و.دا د ښاپېرو، دیوانو او شهزادګانو یوه ډېره خوندوره قیصه وه.دا قیصه په ۲۵٦ مخونو مشتمله وه او په قلمي شکل کې په مینګوره کې د هغه له ځوی صلاح الدین سره وه[۳۲۲] خو بیا دغه قلمي نسخه د صلاح

الدين دلې په کور کې سوځول شوې وه.[48] د دې قيصې يو نقل رحيم شاه رحيم حاصل کړی وه[323] د قيصې په اخر کې مصنف د خپل کور کلي او د قيصې د تصنيف په هلکه داسې وايي:

يويشـــــــــــتمه د روژې وه پـــــــــــه ښـــــــــــه شـــــــــــان
خـــــــتم شـــــــوه قيصـــــــه پـــــــه فضـــــــل د منـــــــان
قيصـــــه خلاصـــــه د فلېـــــل د نســـــيم جـــــان شـــــوه
راوي دېـــــــر پـــــــه مينـــــــه کـــــــړی دی بيـــــــان
دا قيصـــــــــه مـــــــــې اورېـــــــــدلې د اســـــــــتاذ وه
څـــــه ليـــــدلې پـــــه کتـــــاب مـــــې وه عيـــــان
پـــه يـــو مـــزي مـــې ســـفته کـــړه دې کتـــاب کـــې
کـــم و زيـــات بـــه پکـــې وي يمـــه انســـان
کـــه څـــوک کلـــی مـــې پوښـــتي اصـــلي دنگـــرام دی
يـــم حـــالاً پـــه مينگـــوره درخشـــان
تېـــره ســـو يـــو کـــم شـــپېته ســـن هجـــري وه
خـــلاص داســـتان شـــه د فلېـــل د نســـيم جـــان
مخـــره نـــوم مختيـــار الـــدين زمـــا يـــاديږي
پـــلار مـــې ابښـــی پـــه طفـــلي کـــې خـــوش الحـــان[324]

[48] صلاح الدّين، محمد،( تاريخ پېدائش: ۱-۴-۱۹۴٦،حاجي بابا، مينگوره، د مولوي مختيارالدّين ځوی دی. د پرائمري سکول نه ريټائرډ استاد دی. مينگوره قلندر مارکيټ د صلاح الدّين د جم سټون دکان) انټرويو: ۲۹ جنوري ۲۰۱۵.

دی وايي چې دغه قلمي نسخه د هغه ښځې هغه وخت سوزولې ده کله چې په کور کې د اور بلولو لپاره اوچ لرگي نه وو. هغې شنو لرگو ته په اسانۍ سره د اور لگولو لپاره دا قلمي نسخه استعمال کړه. هغې وويل چې دا خو ماته يو زوړ او بېکاره کتاب ښکارېده نو ځکه مې وسېزله.

## نور شالي (نور شاه علي) جالوان

نور شاه علي جالوان د سوات د ګورتۍ کلي اوسېدونکی و. ده د نیمبولا دیمبولا قیصه په یوه چاربیته کې بیان کړې ده.[۳۲۵] د نیمبولا دیمبولا په قیصه صرف یو کتاب لیکل شوی دی، چې شل مخونه لري. دا کتاب د نوښار ملا نعمت الله د بدلې په رنګ کې لیکلی دی او د منظور عام پریس نه چاپ شوی دی. ملا نعمت الله وایي چې ما دا قیصه له فارسۍ نه په پښتو کې نظم کړې ده. په وړومبي ځل د نورشالي ذکر جیمز ډارمسټېټر په خپل کتاب "د پښتونخوا د شعر هار و بهار" کې کړی دی.[۳۲۶]

## شېر مالک

شېر مالک د سوات د بابوزو تحصیل په بلوګرام کلي کې په ۱۸۹۴کې پیدا شوی و او په ۱۹۲۰کال کې د شپږیشتو کالو په عمر کې وفات شوی دی. د هغه د پلار نوم بابری و. د یوسفزۍ د ذیلي ښاخ جولي خېل سره یې تعلق لرلو. هغه د خپل وخت مشهور سندرې ویونکی او موسیقار هم و. رباب به یې ډېر په مهارت سره غږولو. د شېرمالک ټوله شاعري ضائع شوې ده او صرف یوه چاربیته یې موجوده ده. په دې چاربیته کې هغه د دیر د نواب او د میاګل عبدالودود د ۱۹۱۸ د هغه جنګ نقشه راښکلې ده په کوم جنګ کې چې د میاګل عبدالودود ورور شیرین جان وژل شوی و. دا چاربیته په ۱۹۷۴کې محمد جان لوهار له خپلې مشرې خور نه ریکارډ کړې وه په هغه وخت کې د هغې عمر اتیا کاله و. د چاربېتې څه حصه دلته نقل کوو:

ناڅاپه زوږ سوران شو
د څېلمې بابوزي پکې تمام شو افسران
راضي وه پرې رحمان
راضي وه پرې وهاب
زوږ راغی د نواب
چاپېره د قلعه نه د ټوپکو ډزهر شو
نمر پرېوت مازیګر شو
نمر پرېوتو ماښام
مخلوق شو ټول تمام
خاونده په زړګي باندې مې غم د عمر خان شو

ناڅاپه زوږ سوران شو
غم شو په ما انبار
خالي شو ترې دربار
پوره په مړدی کمی یې وخوړ له تقدیره
نواب راغی له دیره
پوره په توره خپل و
شیرین صاحب میاګل و
ښائسته د ګل غنچه وه په لحد شو بندیوان
راضي و پرې رحمان[۳۲۷]

## ملنګ عبدالغفار

ملنګ عبدالغفار په منګلور کلي کې په ۱۸۴۲ کال کې پیدا شو او په ۱۹۱۷ کال کې په اینګرو ډهېرۍ کې وفات شو او د شاهدرې په قبرستان کې دفن کړی شه. هغه د فارسۍ نه یوه قیصه د شهزاده ګلشن په نوم پښتو ته ترجمه کړې وه. [۳۲۸]

## سیف الملوک صدیقي

صدیقي د سوات د ریاست دور په مشهورو شاعرانو کې شمار دی. د صدیقي د پلار نوم قاضي عزیزالرحمان و. هغه د ۱۹۱۸کال د فرورۍ پر نهمه پیدا شوی و. هغه له ودودیه هائي سکول نه اتم او د ګورنمنټ هائي سکول چارسدي هشنغر نه په ۱۹۳۹ کې لسم جماعت پاس کړلو. د لسم جماعت پاس کولو نه وروسته یې د میاګل عبدالودود په دفتر کې د کلرک په حیث نوکري شروع کړله. بیا تحصیلدار، حاکم، حاکم اعلی او په اخر کې د مشیر تر عهدې یې ترقي وکړه. د ۱۹۷۰م کال د نومبر پر دویمه له نوکرۍ نه ریټائرډ شه. د شاعرۍ څلور کتابونه یې په خپل ژوندانه چاپ کړي وو چې نومونه یې دا دي: درد (۱۹۵۵)، پرهرونه ټکورونه (۱۹٦۴)، انداغ (۱۹٦۵)، پئېلي زړونه (۱۹۷۱) او یو کتاب یې پس مرګي د هغه زامنو په ۲۰۱۱ کال کې د "زۀ انتظار کومه ستا د سترګو" په نوم چاپ کړی دی. جهانزېبي مشاعرې به د صدیقي په نګرانۍ کې چاپ کېدلې. هغه څه ډرامې هم لیکلی وې چې د سوات د جشن په موقعه به سټېج کېدلې. په هغې کې پېغور، ګټه ببلاد، زرابه او شاه رودشاملې دي. صدیقي د ۱۹۷۴کال د فرورۍ پر ۱۹ مه وفات شوی دی.

## حليم سرحدي

سيد عبدالحميد شاه چې په حليم سرحدي مشهور دی، د پلار نوم يې سيد محمود شاه دی، د ۱۹۳۴م کال د جون پر اتلسمه پيدا شوی دی. په پښتو شاعرۍ او نثر کې يې په مختلفو موضوعاتو لس کتابونه چاپ کړي او يو شمېر کتابونه يې چاپ ته تيار دي. د حافظ الپورۍ د ديوان ترتيب او تدوين يې هم کړی او چاپ کړی يې دی. وړومبۍ کتابچه يې په ۱۹۵۲م کې د "بخار عشق" په نوم چاپ کړې ده. دويم کتابگوټی يې په ۱۹٦۹م کې د وصال په نوم چاپ دی.

## عبدالغني قصاب

عبدالغني قصاب لکه څنګه يې چې له نوم نه ظاهره ده د پېشې په لحاظ قصاب و او د مينګورې اوسېدونکی و. هغه په ۱۹۲۴م کې پيدا شوی و. د هغه دوه کتابونه چاپ دي او څه ناچاپه ډائريانې يې له ما سره موجودې دي.

**د دې باب خلاصه**

د سوات ریاست په ۱۹۱۵م کې په وجود کې راغی. اولنی بادشاه یې سید عبدالجبار شاه و چې تر ۱۹۱۷م پورې یې بادشاهي وکړه او بیا له بادشاهۍ نه معزول کړی شو او په ۱۹۱۷م کې میاګل عبدالودود بادشاه شو. په ۱۹۴۹م کې میاګل عبدالودود بادشاهي خپل زوی میاګل محمد عبدالحق ته پرېښوده او د ریاست سوات په پاکستان کې د ضم کېدو، یعنې تر ۱۹٦۹م پورې میاګل عبدالحق د ریاست سوات والي و. دسوات د ریاست له جوړېدو نه مخکې دلته قبایلي نظام چلېده او هغې زمانې ته به یې د پښتو زمانه ویله.

د ریاستي دور په ادب کې د پښتو د زمانې او د ریاست سوات د وخت د حالاتو تقابلي جائزه هم اخستل شوې ده. په دې دور کې سوات کې یو باقاعده ریاست جوړ شو او حکومت په وجود کې راغی. د حکومت مختلفې اداري او محکمې جوړې شوې، لکه عدلیه، تعلیم، صحت او د فوځ او نورې محکمې.

دا حکومتي ترقي هم د دغه وخت په پښتو ادب کې ښکارېږي او له حکومت سره چې د خلکو په قبایلي ژوند کې کوم بدلون راغلی و هغه هم په ادب کې په نظر راځي. په دې دور کې د پښتو ژبې او ادب د ترقۍ لپاره غټ ګامونه پورته کړ شول چې پکې پښتو د ریاست سرکاري ژبه وګرځېده او دغه رنګ د پښتو ادب کتابونه هم حکومت په ریاستي خرچ چاپ کول شروع شول. د لیکوالانو او شاعرانو سرکاري سرپرستي او حوصله افزائي شروع شوه او په سرکاري سطح د مشاعرو رواج په وجود کې راغی، دغه مشاعرې به په کتابي صورت کې هم چاپ کېدلې. په دې دور کې د پښتو ادب په مروجه ټولو نثري او شعري اصنافو کې تخلیق شوی دی.په شاعرۍ کې چاربیته، غزل، نظم، مثنوي، مرثیه او نور صنفونه ډېر په نظر راځي. په نثر کې ناول، ډرامه، افسانه، تنقید، تحقیق، مضمون، سفرنامه او نور ښکارېږي.له نورو ژبو هم مهم کتابونه دې دورکې پښتو ته ترجمه شوي دي.

د پښتو د زمانې د ځینو ناکاره رسمونو او رواجونو اصلاح په دې دور کې شوې، چې د خلکو په ژوند کې یې ارام او سکون راوست. ددې دور په ادب کې شاعرانو او لیکوالانو له خپل وطن سوات سره د مینې اظهار هم کړی دی. د سوات له مینې نه علاوه د ټولې نړۍ له مسلمانانو سره د هغوی مینه هم د دې دور په ادب کې ښکارېږي.

د دې دور په ادب کې د پښتو د تاريخي ملي اتلانو، شاعرانو او بادشاهانو تذکرې هم شوي او له هغوی سره يې خپل عقيدت ښکاره کړی دی. دلته د خلکو توهم پرستي هم ښکاره کړی شوې ده. د ګرځنده وېش د ختمېدو او د توري وران وېش په رواج کې له راتلو سره چې د خلکو په ټولنيز ژوند کوم ښه اثرات پرېوتي د هغو ذکر او د توري وران وېش ذکر هم د دې وخت په ادب کې په نظر راځي.

د پښتو د دور په نسبت دلته ډله بازي او د خانانو ملکانانو په سوچ فکر کې هم فرق ښکارېږي. د پښتو دور کې عشر رايج نه و او چې رياست جوړ شو نو خلکو عشر ورکول هم شروع کړل. په دې دور کې صنعت او دستکارۍ ته هم رياستي فکر ګرځېدلی دی. په دې کې مهم صنعت د مقامي کپړې د جوړولو صنعت دی.

د اظهار خيال ډېره آزادي نه وه نو زياته شاعري او ليک درباري رنګ لري او د اقتدار د خاوندانو د ژوند او د کارنامو ستاينې پکې ډېري شوي دي، البته لږ لږ د زپلې طبقې ذکر هم يو کس نيم په اشارو کنايو کې کړی دی.

د دې دور په ادب کې د مذهبي موضوعاتو دومره زور نشته څومره چې د پښتو دور په ادب کې ليدی شي.

په دې دور کې شريکې حجرې کمې شوې، د دوی ځای بيټکونو ونيوه. د تعليم له زياتېدو سره نوی نسل د خانۍ ملکۍ او بيګارونو ته تيار نه وو، اګر چې په دې دور کې به د خانانو ملکانو بيګار لږ لږکېده خو سرکاري بيګار جاري و. دکانداري او کاروبار چې مخکې به ورته د دفتر/دوتر خاوندانو په ښه سترګه نه کتل اوس د خلکو دغو پېشو طرف ته فکر شو.

د خلکو دسېل او تفريح لپاره د مېلو انتظام په دې دور کې په نظر راځي، په دې مېلو کې به ډمې پکې هم ګډېدې او اتڼ به پکې هم کېده.

په دې دور کې اګر چې بيا وروسته رياست کې هسپتالونه جوړ شول او ډاکټران هم راغلل خو خلک پيرانو، باباګانو، زيارتونو ته د مختلفو بيمارو د علاج لپاره تلل. له دې نه علاوه د علاج لپاره به کورنۍ ځېلې بوټي هم استعمالېدل او له ملا نه دم تعويذ او څاښتونه به هم کېدل او لږ لږ به يې د حاکمانو نه هم علاجونه کول. ډاکټرانو ته به ډېر کم خلک تلل، اکثر به يې د بيمار د صحت يابۍ لپاره خيراتونه کول.

## حوالې

[1] Sultan-i-Rome, Swat A Critical Analysis, IPCS Research Papers, New Delhi, Institute of Peace and Conflict Studies New Delhi, India, No. ۱۸ (January ۲۰۰۹), p.۹.

[۲] همدغه اثر،۷ مخ.

[۳] حکیمزے،وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۳۲،۲۳۳ مخونه.

[٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۱۸۷مخ.

[۵] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, ۲۰۰۹, p.۹۷.

[٦] Jan, Farhad, Prof., Khudai-Khidmatgar Movement in N.W.F.P, n.p., n.d., p. ٦۷

[۷] خلیق، عبدالخالق. زۀ او زما زمانه، پېښور، اداره اشاعت سرحد، دویم ځل مارچ ۱۹۷۴، ۳٦مخ.

[۸] Jan, Farhad, Prof., Khudai-Khidmatgar Movement in N.W.F.P, n.p., n.d., p. ۲۲

[۹] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني دیوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۱۸مخ.

[۱۰] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford ۱۳۷University Press, ۲۰۰۹, p.

[۱۱] خلیق، عبدالخالق. زۀ او زما زمانه، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ۴٦مخ.

[۱۲] همدغه اثر،۷۴ مخ.

[۱۳] رشتین، پوهاند صدیق الله. د پښتو تاریخي سیمینار، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۸۳،۱۹۸۷ مخ.

[۱٤] شاهین، عبداللطیف. شغلې، کبل، جان کتاب کور، ۲۰۱۰/۱۹٦۹، ۷۳مخ.

[۱۵] همدغه اثر،۷۷ مخ.

[۱٦] همدغه اثر، ۷٦مخ.

[۱۷] همدغه اثر، ۱۴۴مخ.

[۱۸] همدغه اثر، ۲۵ مخ.

[۱۹] همدغه اثر، ۲٦ مخ.

[۲۰] همدغه اثر،۳۰ مخ.

[۲۱] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۱۰مخ.

[۲۲] همدغه اثر، ۱۳مخ.

[۲۳] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ٦،۳۲،۵۳،٦۵ مخونه.

[۲٤] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۱۳۷۵ هـ ، ۳، ۴۵ مخونه.

[۲۵] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني دیوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۱۷۰مخ.

[۲٦] شاهین، پروېش. سید عبدلاجبار شاه ، مقاله مشموله، پښتو، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۸، شماره: ۱۰ (نومبر ۱۹۷٦)

[۲۷] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵هـ، ۷۰، ۷۱ مخونه.

[۲۸] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۳۷۳مخ.

[۲۹] خان، محمد اصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میا گل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، م۳۵۷-۳۵۹ مخونه.

[۳۰] همدغه اثر،۳۵۷-۳۵۹ مخونه.

[۳۱] خټک، پردل. (مولّف)، د مولانا عبدالقادر خطونه، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، ۲۱۷،۱۹۸۳ مخ.

[۳۲] همدغه اثر،۲۱۸مخ.

[۳۳] همدغه اثر،۲٦۴مخ.

[۳۴] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددویم)، [۱۹۴۲]، ۹،۱۰ مخونه.

[۳۵] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او د شاه جهانزېب زمانه،(دریم جلد)، ۱۹۵۷، ۳۷،۳۸ مخونه.

[۳٦]Sultan-i-Rome, Swat State (١٩١٥-١٩٦٩) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford ٢٢٤University Press, ٢٠٠٩, p.

[۳۷]یو کتاب چې اولني دېرش مکونه نۀ لري او اخري مخ یې ۴۱۱ دی، خو پته لګي چې له دې نه وروسته به نورې پاڼې هم وې. اندازه ترې معلومېږي چې دا کتاب د ۱۹۴۹ خواوشا په افغانستان کې چاپ شوی دی.

[۳۸] بخت مشال. (اداریه)، ایلم (پښتو برخه)، جهانزېب کالج، دسمبر ۱۹٦۹، ۳مخ.

[۳۹]دیناخیل، محمد علي. جہانزیب کالج کا ایلم رسالہ چند وضاحتیں، روزنامہ چاند، سوات، ۱۰ نومبر ۲۰۱۳

[٤٠] Yousafzai, Rafiullah, Journalism in Swat, (M.A Thesis), Department of Journalism and Mass Communication, University of Peshawar, Session: ۲۰۰۲-۲۰۰۳, p. ۱۹

[٤١] Yousafzai, Rafiullah, Journalism in Swat, (M.A Thesis), Department of Journalism and Mass Communication, University of Peshawar, Session: ۲۰۰۲-۲۰۰۳, p. ۱۹

[٤٢]شاهین، محمد پروېش. ګل ورینې څوکې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۱۹۸۹، ۱۵۵مخ.

[٤٣] Yousafzai, Rafiullah, Journalism in Swat, (M.A Thesis), Department of Journalism ۲۰and Mass Communication, University of Peshawar, Session: ۲۰۰۲-۲۰۰۳, p.

[٤٤] رحیم، رحیم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله میاشتنۍ پښتو، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲، (جنوري ۱۹۸۱)، ۴۹مخ.

[٤٥] شاهین، عبداللطیف. شغلې، ۱۹٦۹، ۱۲۵، ۱۵۷مخ.

[٤٦] ګالوچي، عبداللطیف. التفسیرالتیسیر، (جلد دویم)، ناشر: مولوي محمد صالح مقام و ډاکخانه رحیم اباد تحصیل بابوزي ضلع سوات، ۱۹۸۴/۱۹۲۵، ۳مخ.

[٤٧] ګالوچي، عبداللطیف. التفسیرالتیسیر، (جلد اول)، مینګوره، ناشر: مولوي محمد صالح ، ۱۹۸۴/۱۹۲۵، ۱ مخ.

[٤٨] همدغه اثر، ۱، ۲ مخونه.

[٤٩] سرحدي،محمد صالح مظلوم او حاجي عبدالحنان. (مصنّفین)، د جنت حوره، مینګوره، اسلام بک سټور، ۲۸مخ.

[٥٠] ګالوچي، عبداللطیف. التفسیرالتیسیر، (جلد اول)، ۵ مخ.

[٥١] ګالوچي، عبداللّطیف. التفسیرالتیسیر، (جلد دویم)،۷مخ.

[٥٢] صدیقي، سیف الملوک. درد، سوات، ۱۹۵۵، ٦۹مخ.

[٥٣] همدغه اثر،۱۷۷مخ.

[٥٤] مینوش، شبېر محمد. (دیباچه)، پرهرونه ټکورونه، سېف الملوک صدیقي، ریاست سوات، ۱۹٦۴، ۹مخ.

[۵۵] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددويم)، [۱۹۴۲]، ۲۳ مخ.

[۵۶] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۳۱۵ مخ.

[۵۷] رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتنی پښتو، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲، (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۲ مخ.

[۵۸] خټک، راج ولي شاه. د پښتو ادبي تحريکونه، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، ٥٣٦ مخ.

[۵۹] سرحدي، محمد صالح مظلوم او حاجي عبدالحنان. (مصنفين)، د جنت حوره، مينګوره، اسلام بک سټور، ۱۷مخ.

[۶۰] همدغه اثر، ۲مخ.

[۶۱] ګالوچي، عبداللطيف. التفسيرالتيسير، (جلد اول)، ۲مخ.

[۶۲] ګالوچي، عبداللّطيف. التفسيرالتيسير، (جلد دويم)، ۲ مخ.

[۶۳] همدغه اثر، ۵ مخ.

[٦٤] باچا، سيد محمد علي شاه. (د کتاب د ليکونکي په حقله) مشموله زېرون مصنف قاسم سرحدي، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۹، ۱۴،۱۵ مخونه.

[٦٥] يوسفزی، سحر. (غوړ خو کېږده) [اداريه]، ايلم پښتو برخه، جهانزېب کالج سوات، دسمبر ۱۹٦۰.

[٦٦] فضل ودود. زمونږ داجي، مشموله، زۀ انتظار کومه ستا د سترګو، کبل، جان کتاب کور، ۱۸،۲۰۱۱ مخ:

[٦٧] همايون، محمد. جذبات (ډرامه) مشموله ، ايلم، جهانزېب کالج سوات، ۱۹٦۲، ۲٦ مخ.

[٦٨] مياندمي، پائنده. فن افسانه نګاري، ايلم، جهانزېب کالج سوات، مارچ ۱۹٦٦، ۱۴مخ.

[٦٩] يوسفزی، سحر. پښتو ډرامه، ايلم، جهانزېب کالج سوات، دسمبر ۱۹٦۰، ۱۸ مخ.

[۷۰] قاسمي، ميا محمد عبدالغفور. د دې کتاب اهميت، مشموله انوار سهيلي، مترجم ميا محمد عبدالغفورقاسمي، سوات، شعېب سنز پبلشرز، ۲۰۰۷/۱۹۴۳، ۱۷مخ.

[۷۱] همدغه اثر، ۱۸مخ.

[۷۲] کاکاخېل، سيد محمد تقويم الحق. (مترجم)، ميلينيم او کرزما د سوات پۀ پښتنو کښې مصنځ، ډاکټر اکبر اېس احمد، پېښور، پښتو اکيډمي، ۱۹۷۸، ۴۳مخ.

[۷۳] شهاب، فضل رازق. رياست سوات کا قومي ترانه (جواب آں غزل)، سوات، روزنامہ چاند ، جلد: ۱۰، شماره: ۲۹۵، ( ۴ نومبر ۲۰۱۳)

[۷۴] سمندر، سمندر خان. پت،[۱۹٦۱]، ۳٦، ۱۱۵ مخونه.

ځينو کتابونو ليکلی چې سمندر خان سمندر ته د "ملک الشّعراء" خطاب د سوات والي ورکړی و، خو هغه په خپل کتاب "پت" کې ليکي چې دا خطاب ماته "پښتون جرګې" راکړی دی.

[۷۵] صابر،سيد صابر شاهړ سمندر د بدرخو، ۱۹۹۹، ۳۵ مخ.

[۷٦] شهاب، فضل رازق. ايک تها بادشاه، سوات، روزنامه ازادی،جلد: ۱۷، شماره: ۲٦۴ (۱۵ اکتوبر ۲۰۱۱)

[۷۷] ديناخيل،محمد علي.رياست سوات کا قومی ترانہ، سوات، روزنامه چاند، جلد:۱۰،شماره:۲۹۲(يکم نومبر ۲۰۱۳)

[۷۸] Rubina Abidin, The Literary Achievements of Samandar Khan Samnadar, (Ph.D Thesis), Peshawar, Area Study Centre University of Peshawar, ۱۹۹۷, p.۱٤۷

[۷۹] شهاب، فضل رازق. رياست سوات کا قومي ترانه (جواب آں غزل)، سوات، روزنامه چاند ، جلد: ۱۰، شماره: ۲۹۵، ( ۴ نومبر ۲۰۱۳)

[۸۰]ديناخيل، محمد على. رياست سوات کا قومى ترانہ، سوات، روزنامہ چاند، جلد: ۱۰، شماره: ۲۹۲ .

[۸۱]شهاب، فضل رازق. رياست سوات کا قومي ترانه (جواب آں غزل)، سوات، روزنامه چاند ، جلد: ۱۰، شماره: ۲۹۵، ( ۴ نومبر ۲۰۱۳)

[۸۲] امجد علي سحاب د سوات يو تکړه ليکوال دی او نن صبا د سوات د "روزنامه ازادي" د ادارتي صفحې انچارج مدير دی. هغه ما ته وويل چې دا ترانه هغه ته د سوات د نوموړي شاعر، خوشنويس او د والي سوات د دفتر منشي فضل الرحمان فيضان له ځوی شمس الاقبال شمس نه مېلاو شوې ده. دا ترانه په ښکلي خط ليکل شوې او په کاغذ له پاسه ګس اړخ ته د رياست سوات مونو ګرام هم جوړ کړی شوی دی. له خط نه داسې معلومېږي لکه دا چې فيضان په خپل قلم خوش خط ليکلی وي.

[۸۳] فيضان، فضل الرحمان. تحفه جهانزيبي المعروف به کلام فيضاني، پېښور، اسلامي کتب خانه، ۱۹٦۵، ۲مخ.

[۸۴] زېب سر، تاج محمد خان. نوی سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ٦۱،٦۲ مخونه.

[۸۵] همدغه اثر، ٦۲مخ.

[۸۶] قريشي، عجب خان. يوم پيدائش د والي سوات، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجلّه، ۱۹٦۳، ۱۰۳مخ.

[۸۷] همدغه اثر، ۱۰۴مخ.

[۸۸] همدغه اثر، ۱۰۴، ۱۰۵ مخونه.

[۸۹] افغاني، عبدالحليم اثر. سوغات، باجوړ، دارالاشاعت، ۴،۵ مخونه.

[۹۰] همدغه اثر، ۴مخ.

[۹۱] سمندر، سمندر خان. پت، پېښور، [۱۹٦۱]، ۱مخ.

[۹۲] دهقان، رشيد علي او اشرف دراني. دروېش باچا، ۴۸مخ.

[۹۳] صديقي، سيف الملوک. (مرتب) جهانزيبي مشاعره ۱۲ دسمبر ۱۹۵۴، سوات، ناشران: عبدالحمد و محمد سعيد، ۴مخ.

[۹٤] همدغه اثر، ٦مخ.

[۹۵] همدغه اثر، ۸ مخ.

[۹٦] همدغه اثر، ۱۰مخ.

[۹۷] جهانزيبي مشاعره ۵ جون ۱۹٦۵، ۳مخ.

[۹۸] جهانزيبي مشاعره ۵ جون ۱۹٦٦، ۵مخ.

[۹۹] محمد صالح، مولوي. (ديباچه) مشموله تفسير تيسير (جلد اول)،مصنف عبداللطيف ګالوچي،ا،ب مخونه.

[۱۰۰] همدغه اثر، ب مخ.

[۱۰۱] بازارګوي، محمد ابراهيم. فتاویٰ ودوديه جلد اول (ديباچه)، مينګوره، مکتبةالقران و الحديث،[۱۹۵۲]، ح مخ.

[۱۰۲] همدغه اثر، ط مخ.

[۱۰۳] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددویم)، [۱۹۴۲]، ۷۹ مخ.

[۱۰٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۳۷۲مخ.

[۱۰۵] همدغه اثر، ٦،۷ مخونه.

[۱۰٦]همدغه اثر، ۱۹۵، ۱۹٦ مخونه.

[۱۰۷]Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford ۲۷۹University Press, ۲۰۰۹, p.

[۱۰۸] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددویم)، [۱۹۴۲]، ۷۹، ۸۰ مخونه.

[۱۰۹] سواتي، شېر. بې استاد عالم، پېښور، پبلک ارټ پریس، ۲ مخ.

[۱۱۰]سواتي، اختر. د غیرت چغه، پېښور، ایډورډز کالج، ۴ مخ.

[۱۱۱] فیض، فیض محمد خان. دا څوک دي، سوات، ۱۵، ۱٦ مخونه.

[۱۱۲] شېر، د مودودي په نوم، پېښور،پبلک ارټ پریس، ۲مخ.

[۱۱۳] فیضان، فضل الرحمان. تحفه جهانزیبي المعروف به کلام فیضاني، پېښور، اسلامي کتب خانه، ۱۹٦۵، ٦-۹ مخونه.

[۱۱٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددویم)، [۱۹۴۲]، ۱٦۷مخ.

[۱۱۵] عنایت الله، ډاکټر. د ریاست سوات تاریخي او ترقیاتي جائزه،ناشر: د سوات وېښ زلمو لۀ خوا، ۲۰، ۲۱ مخونه.

[۱۱٦] همدغه اثر، ۲۰مخ.

[۱۱۷] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۸۰مخ.

[۱۱۸] شاهین، عبداللطیف. شغلې، ۱۹٦۹، ۲۲،۲ مخونه.

[۱۱۹]همدغه اثر، ۴۰ مخ.

[۱۲۰] همدغه اثر، ۱۷مخ.

[۱۲۱] شېر، شېر محمد خان. نوے ژوند (ناول)، ۱۹٦۴، ۲۴۱ مخ.

[۱۲۲] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۱۳۷۵ هـ ، ۴مخ.

[۱۲۳] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او د شاه جهانزېب زمانه،(دریم جلد)، ۱۹۵۷، ۸۸ مخ.

[۱۲٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۹۹مخ.

[۱۲۵] خټک، پردل (مولف). د مولانا عبدالقادر خطونه، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹۸۳، ۲۱۴مخ.

[۱۲٦] ارج، محمد هراج. مینګوره سوات، [د زېږون نېټه: ۱۹۴۵-۱۱-۱]، د جهانزېب کالج ریټائرډ پرنسپل او د انګرېزي پروفېسر، (انټرویو: ۲۰۱۱-۴-۱۹)

[۱۲۷] قاسمي، سید عبدالغفور. تاریخ ریاست سوات، [۱۹۳۹]، ۱۵۳مخ.

[۱۲۸]فیضان، فضل الرحمان. دیوان فیضان سوات، سوات، افتخار بک سنټر، ۲۰۱٦، ۲۹۷مخ.

[۱۲۹] زېب سر، تاج محمد خان. موزیر نامه، ۱۹۴۵، ۵ مخ.

[۱۳۰] شاهین، عبداللطیف. شغلې، ۱۹٦۹،۲۷، ۲۸ مخونه.

[۱۳۱] شېر، شېر محمد خان. نوے ژوند (ناول)، ۱۹٦۴، ۲۳٦، ۲۳۹ مخونه.

[۱۳۲] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټي، ۱۹٦٦، ۷۱ مخ.

[۱۳۳] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۱٦۰مخ.

[۱۳٤] همدغه اثر، ۲٦۲ مخ.

[۱۳٥] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټې، ۱۹٦٦، ۱۵ مخ.

[۱۳٦] همدغه اثر،۵۸، ۱۰۴ مخونه.

[۱۳۷] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۹۷ مخ.

[۱۳۸] حبیب، حبیب الرحمان. گلستان تا کړۀ، (نظم) مشموله، مجلّه سوات، کراچي، مجلس پښتون ریاست سوات، [۵جون ۱۹٦۷]، ۸۲ مخ.

[۱۳۹] قریشي، عجب خان. یوم پیدائش د والي سوات، ایلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۳، ۱۰۳مخ.

[۱٤۰] صدیقي، سیف الملوک. درد، سوات، ۱۹۵۵، ۱۰۱مخ.

[۱٤۱] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۸،۹ مخونه.

[۱٤۲] همدغه اثر، ۱۸مخ.

[۱٤۳] همدغه اثر، ۴۸ مخ.

[۱٤٤] همدغه اثر، ۴۸، ۱۹۳ مخونه.

[۱٤٥] شبنم، ابراهیم. رواج (افسانه)، (مشموله) مجله ایلم، جهانزېب کالج، ۱۹٦۷، ۱۱مخ.

[۱٤٦] همدغه اثر، ۱۲مخ.

[۱٤۷] همدغه اثر، ۱۳مخ.

[۱٤۸] همدغه اثر،۱۲، ۱۸ مخونه.

[۱٤۹] خان، ابراهیم. د کلي حجره، (افسانه)، مشموله، ایلم، جهانزېب کالج، ۱۹٦۳، ۳٦مخ.

[۱٥۰] همدغه اثر، ۵۹ مخ.

[۱٥۱] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۴۳مخ.

[۱٥۲] همدغه اثر، ۲۴۸ مخ.

[۱٥۳] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او د شاه جهانزېب زمانه،(دریم جلد)، ۱۹۵۷، ۱۴مخ.

[۱٥٤] همدغه اثر، ۱۲مخ.

[۱٥٥] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۴۴ مخ.

[۱٥٦] همدغه اثر، ۲۴۷ مخ.

[۱٥۷] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۲٦۷ مخ.

[۱٥۸] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټې، ۱۹٦٦، ۴۲مخ.

[۱٥۹] همدغه اثر، ٦۰مخ.

[۱٦۰] همدغه اثر، ٦۷مخ.

[۱٦۱] همدغه اثر، ٦۱مخ.

[۱٦۲] قاسمي، سید عبدالغفور. تاریخ ریاست سوات، [۱۹۳۹]، ۱۴۳-۱۴۵ مخونه.

[۱٦۳] خان، محمد اصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میا ګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، ۲۸۰ مخ.

[۱٦٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۳۷، ۲۳۹ مخونه.

[۱٦۵] Sultan-i-Rome, Swat A Critical Analysis, IPCS Research Papers, New Delhi, Institute of Peace and Conflict Studies New Delhi, India, No. ۱۸ (January ۲۰۰۹), p.۷.

[۱٦٦] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۳۵مخ.

[۱٦۷] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۷۹ مخ.

[۱٦۸] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،۲۳٦، ۲۳۷ مخونه.

[۱٦۹] همدغه اثر، ۲۴۹ مخ.

[۱۷۰] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۲٦ مخ.

[۱۷۱] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۸ مخ.

[۱۷۲] همدغه اثر، ٦۹مخ.

[۱۷۳] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،۲۴۵، ۲۴٦ مخونه.

[۱۷٤] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۳٦ مخ.

[۱۷۵] همدغه اثر،۵۰ مخ.

[۱۷٦] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،۹ مخ.

[۱۷۷] خان، محمد اصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میاګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، ۲۷۴ مخ.

[۱۷۸] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۳۲ مخ.

[۱۷۹] همدغه اثر، ۱۵، ۱۷، ۵٦ مخونه.

[۱۸۰] همدغه اثر، ۱۳ مخ.

[۱۸۱] همدغه اثر، ۱۴، ۲٦ مخونه.

[۱۸۲] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټي، ۱۹٦٦، ۳۷، ۵۸ مخونه.

[۱۸۳] همدغه اثر،۴۳مخ.

[۱۸٤] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۱۳۸، ۱۸۱ مخونه.

[۱۸۵] همدغه اثر، ۱۴۴مخ.

[۱۸٦] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۱۳۷۵ هـ ، ۱۱،۱۲ مخونه.

[۱۸۷] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او د شاه جهانزېب زمانه،(دریم جلد)، ۱۹۵۷، ۵٦ مخ.

[۱۸۸] صدیقي، سېف الملوک. انداغ، پېښور، اسلامي کتب خانه، ٦۹مخ.

[۱۸۹] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني دیوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۲۵ مخ.

[۱۹۰] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۱۹، ۲۰ مخونه.

[۱۹۱] همدغه اثر، ۵۲، ۵۷ مخونه.

[۱۹۲] همدغه اثر، ۸۵ مخ.

[۱۹۳] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټي، ۱۹٦٦، ۲۴ مخ.

[۱۹۴] همدغه اثر، ۵۱ مخ.

[۱۹۵] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴ ، ۱۵۱مخ.

[۱۹٦] همدغه اثر، ۵٦ مخ.

[۱۹۷] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۵٦، ۲۵۷ مخونه.

[۱۹۸] قاسمي، سيد عبدالغفور. تاريخ رياست سوات، [۱۹۳۹]، ۱۴۹مخ.

[۱۹۹] بدر، بحر کرم. د سوات تاريخي پس منظر، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۴، ۱٦مخ.

[۲۰۰] قاسمي، سيد عبدالغفور. تاريخ رياست سوات، [۱۹۳۹]، ۱۲٦مخ.

[۲۰۱] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۵۵مخ.

[۲۰۲] همدغه اثر، ۱۱۱مخ.

[۲۰۳] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني ديوان زېب سر، ۱۹۴۹ ، ج مخ.

[۲۰۴] محمد صالح، مولوي. (ديباچه) مشموله تفسير تيسير (جلد اول) الف مخ.

[۲۰۵] شاهين، عبداللطيف. شغلې، ۱۹٦۹، ۱۴۱مخ.

[۲۰٦] صديقي، سيف الملوک. انداغ، پېښور، اسلامي کتب خانه، ۱۳مخ.

[۲۰۷] خان، نادر. د ټيډي فېشن د لاسه (افسانه)، مشموله ايلم، جهانزېب کالج، مارچ ۱۹٦۰، ۵۹ مخ.

[۲۰۸] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت  ميا گل گل شهزاده عبدالودود خان ۲۸۱ مخ.

[۲۰۹] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۳۹مخ.

[۲۱۰] همدغه اثر،۲۴۱مخ.

[۲۱۱] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددويم)،۱۳۷۵ هـ ، ۳۴ مخ.

[۲۱۲] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۷۸مخ.

[۲۱۳] نصر، نصرالله خان. اخون صاحب سوات، پېښور، تعليمي اداره، ۱۹۷۸/۱۹۵۰، ٦۵مخ.

[۲۱۴] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۳۹ مخ.

[۲۱۵] خان، غلام حبيب (مرتب). رواجنامه سوات، مينگوره سوات، سوات پرنټنگ پريس ، (۱۹۷۳) ، ص: ۸۷

[۲۱٦] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني ديوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۱۹۴، ۱۹۵ مخونه.

[۲۱۷]Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford
۲۵۱University Press, ۲۰۰۹, p.
۲۵۲[۲۱۸]Ibid., p.
۲۵۲[۲۱۹]Ibid., p.

[۲۲۰] مستانه، ذبدالله خان. سنېما او مختلف خيالات، مشموله، ايلم، جهانزېب کالج، جلد: ۱۲، شماره:۱، (دسمبر۱۹٦۹)، ۵۰ مخ.

[۲۲۱] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۳٦۹ مخ.

[۲۲۲] خان، ابراهيم. د کلي حجره، (افسانه)، مشموله، ايلم، جهانزېب کالج، ۱۹٦۳، ۳۰ مخ.

[۲۲۳] شېر، شېر محمد. لوظ (ناول)، پېښور، ټرائبل پبلسټي، ۱۹٦٦، ۱۰مخ.

[۲۲۴] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددويم)،۱۳۷۵ هـ ، ٦۱-٦۴ مخونه.

[۲۲۵] نعمتي، فضل رحمٰن. د ښځو تعلیم، ایلم ، جهانزېب کالج، جلد: ۱۲، شماره:۱، (دسمبر ۱۹٦۹)، ۸ مخ.

[۲۲٦] همدغه اثر، ۱۲مخ.

[۲۲۷] همدغه اثر، ۱۳مخ.

[۲۲۸] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۱۳۷۵ هـ ، م٦۱- ٦۴ مخونه.

[۲۲۹] همدغه اثر، ٦۱- ٦۴ مخونه.

[۲۳۰] همدغه اثر، ٦۱- ٦۴ مخونه.

[۲۳۱] همدغه اثر،۷۱ مخ.

[۲۳۲] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۱۳۵مخ.

[۲۳۳] همدغه اثر،۱۸۸ مخ.

[۲۳٤] همدغه اثر، ۵، ٦، ۷، ۸، ۳۵ مخونه.

[۲۳۵] خان، محمد اصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میا گل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، ۳۵۳مخ.

[۲۳٦] Sultan-i-Rome, Swat State (۱۹۱۵-۱۹٦۹) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford University Press, ۲۰۰۹, p. ۲۵۰،۲۵۱

[۲۳۷] قانته بېگم. زما سفرنامه، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، [۱۹۷٦]، ۳۸ مخ.

[۲۳۸] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او د شاه جهانزېب زمانه،(دریم جلد)، ۱۹۵۷، ۳۴ مخ.

[۲۳۹] شېر، شېر محمد،نوے ژوند (ناول)، پېښور،۱۹٦۴، ۵۵مخ.

[۲٤۰] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۲٦ مخ.

[۲٤۱] بدر، بحر کرم. د سوات تاریخي پس منظر، ایلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۴، ۱۴مخ.

[۲٤۲] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددویم)،۱۳۷۵ هـ ، ۴۸مخ.

[۲٤۳] خان، ابراهیم. د کلي حجره، (افسانه)، مشموله، ایلم، جهانزېب کالج، ۱۹٦۳، ۳۰مخ.

[۲٤٤] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددوېم)،۱۳۷۵ هـ ، ۴۹- ۵۲ مخونه.

[۲٤۵] همدغه اثر، ٦۹مخ.

[۲٤٦] خان، محمد اصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات حضرت میا گل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، ۲٦٦ مخ.

[۲٤۷] کاکا خېل، سید محمد تقویم الحق. (مترجم)، میلینیم او کرزما د سوات پۀ پښتنو کښې مصنف، ډاکټر اکبر اېس احمد، پېښور، پښتو اکېډمي، ۱۹۷۸، ۱۹۳مخ.

[۲٤۸] قاسمي، سید عبدالغفور. تاریخ ریاست سوات، [۱۹۳۹]، ۱۴۹مخ.

[۲٤۹] نصر، نصرالله خان. اخون صاحب سوات، پېښور، تعلیمي اداره، ۱۹۷۸/۱۹۵۰، ٦۴مخ.

[۲۵۰] شاه، میامحمد علي. د سوات د سنټرل جېل د یو قیدي تاثرات، ایلم، جهانزېب کالج، دسمبر ۱۹٦۰، ۸۰ مخ.

[۲۵۱] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان جلد اول، ۱۹۴۱، ۹۸مخ.

[۲۵۲] خان، محمد آصف. تاریخ ریاست سوات و سوانح حیات باني ریاست سوات میا گل گل شهزاده عبدالودود خان باد شاه صاحب، [۱۹۵۸] ، ۳۱۲مخ.

[۲۵۳] قاسمي، سید عبدالغفور. هدیه ودودیه، بریلي، مطبوعه سوداگر پریس، ۱۹۳٦ ، ۷۵،۷٦ مخونه.

[۲۵٤] همدغه اثر،۳۱۳، ۳۱۴ مخونه.

[٢٥٥] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۵۴مخ.

[٢٥٦] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۵۴مخ.

[٢٥٧] زېب سر، تاج محمد خان. موزير نامه، ۱۹۴۵، ۲۵ مخ.

[٢٥٨] خان، محمد آصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات ميا گل گل شهزاده عبدالودود خان باد شاه صاحب، [۱۹۵۸] ، ۳۱۳ مخ.

[٢٥٩] همدغه اثر،۳۱۳، ۳۱۴ مخونه.

[٢٦٠] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلددوېم)، [۱۹۴۲]، ۹۸ مخ.

[٢٦١] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۲۵۴مخ.

[٢٦٢] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياگل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، [۱۹۵۸]، ۱۵۳ مخ.

[٢٦٣] همدغه اثر، ۵ مخ.

[٢٦٤] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۱۸۴مخ.

[٢٦٥] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياگل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب،١٨٦- ١٨٨ مخونه.

[٢٦٦] همدغه اثر، ۱۸۸،۱۸۹ مخونه.

[٢٦٧] همدغه اثر، ۲۵۵- ۲۵۷ مخونه.

[٢٦٨] همدغه اثر، ٢٦٠، ٢٦١، ٢٦٧، ٢٧٢ مخونه.

[٢٦٩] Bellew, H.W., A General Report on the Yusufzais, Lahore, Sang-e-Meel Publications, ٢٠٠١/١٨٦٤, p.٢٠٣.

[٢٧٠] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ٢٧٦ مخ.

[٢٧١] Bellew, H.W., A General Report on the Yusufzais, Lahore, Sang-e-Meel Publications, ٢٠٩٢٠٠١/١٨٦٤, p.

[٢٧٢] نعمتي، فضل رحمٰن. اولسي لباس، ايلم، جهانزېب کالج، جون ١٩٦٨، ۴۳، ۴۴ مخونه.

[٢٧٣] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني ديوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۱۷ مخ.

[٢٧٤] بدر، بحر کرم. د سوات تاريخي پس منظر، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۴، ۱۴مخ.

[٢٧٥] Sultan-i-Rome, Swat State (١٩١٥-١٩٦٩) From Genesis to Merger, Karachi, Oxford ١٨University Press, ٢٠٠٩, p.

[٢٧٦] شېر، شېر محمد. نوے ژوند (ناول)، پېښور،١٩٦۴، ۱۱۹مخ.

[٢٧٧] همدغه اثر،۱۳۴مخ.

[٢٧٨] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياگل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، ۳۵۲، ۳۵۳ مخونه.

[٢٧٩] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۱۱۰مخ.

[٢٨٠] همدغه اثر، ۱۰۹ مخ.

[٢٨١] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياگل گل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، ۲۰۱ مخ.

[٢٨٢] همدغه اثر، ۲۰۱-٢٠٦ مخونه.

[283] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۴۰-۴۴ مخونه.
[284] بدر، بحر کرم. د سوات تاريخي پس منظر، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۴، ۱۴، ۱۵ مخونه.
[285] عمر زاده. زمونږ موجوده ترقي دماضي پهٔ رڼا کښې، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله،جلد؛ ۴، نمبر: ۲، (دسمبر ۱۹٦۰)، ۴۹، ۵۰ مخونه.
[286] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، ۲۰۱-۲۰٦ مخونه.
[287] قريشي، عجب خان. يوم پيدائش د والي سوات، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۳، ۱۰۲،۱۰۳ مخونه.
[288] بازارګوي، محمد ابراهيم. (ديباچه)، فتاويٰ ودوديه (جلد اول)، مينګوره، مکتبه القران والحديث، ۱۹۵۲، ب مخ.
[289] خان، محمد اصف. تاريخ رياست سوات و سوانح حيات باني رياست سوات حضرت مياګل ګل شهزاده عبدالودود خان بادشاه صاحب، ۲۱۴ مخ.
[290] همدغه اثر، ۲٦۳، ۲٦۴ مخونه.
[291] زېب سر، تاج محمد خان. موزير نامه، ۱۹۴۵، ٦۹مخ.
[292] همدغه اثر، ۲٦ مخ.
[293] همدغه اثر، ۸۴ مخ.
[294] طائر، محمد نواز. (ديباچه)، تواريخ حافظ رحمت خاني، مولف پير معظم شاه، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي، ۱۹۸۷/۱۹۷۱، ۲۹-۳۱ مخونه.
[295] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددويم)،۱۳۷۵ هـ ، ۱۱، ۱۲ مخونه.
[296] همدغه اثر، ۹، ۱۰ مخونه.
[297] همدغه اثر، ۹، ۱۰ مخونه.
[298] همدغه اثر، ۱۷-۱۹ مخونه.
[299] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني ديوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۱۵۴، ۱۵۳ مخونه.
[300] زېب سر، تاج محمد خان. عروج افغان (جلد اول)،[۱۹۴۱]، ۱۵مخ.
[301] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلداول)، ۱۳۷۵ هـ، ۴۴-۴٦ مخونه.
[302] بدر، بحر کرم. د سوات تاريخي پس منظر، ايلم، د جهانزېب کالج علمي او ادبي مجله، ۱۹٦۴، ۱٦، ۱۷ مخونه.
[303] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات او شاه جهانزېب، (جلددويم)،۱۳۷۵ هـ ، ۱۷-۱۹ مخونه.
[304] زېب سر، تاج محمد خان. افغاني ديوان زېب سر، ۱۹۴۹، ۲۰۰-۲۰۳ مخونه.
[305] حبيب، حبيب الرحمان. پخوانے سوات او نن (نظم)، مشموله مجله سوات، کراچي، مجلس پختون رياست سوات، ۱۹٦۷، ۸۴، ۸۵ مخونه.
[306] سرحدي، محمد صالح مظلوم او حاجي عبدالحنان. د جنّت حوره، مينګوره رياست سوات، اسلام بک سټور،۲۱ مخ.
[307] فضل برهان.( تاريخ پيدائش:۱۹٦۵ ،حاجي باباچوک مينګوره، دحاجي عبدالحنان نمسى دى. نيو فضل اينډ کمپني پېنټ اينډ هارډوئېر سټور حاجي بابا چوک مينګوره) انټرويو: ۲۹جنوري ۲۰۱۵.
[308] فضل برهان.( تاريخ پيدائش:۱۹٦۵،حاجي باباچوک مينګوره، دحاجي عبدالحنان نمسى دى. نيو فضل اينډ کمپني پېنټ اينډ هارډوئېر سټور حاجي بابا چوک مينګوره) انټرويو: ۲۹ جنوري ۲۰۱۵.
[309] چيندا خوره د کبل زوړ نوم دى، د سوات والي دا نوم بدل کړو او کبل نوم يې ورته کېښوده.

[۳۱۰] د شاهين د ژوند په باره کې دا ټول معلومات ما له هغوی نه په يوه انټرويو کې اخستي وو. دا انټرويو ما له هغوی نه په ۲۰۱۱کال د اپرېل مياشتې په څلورم تاريخ کړې وه .په دې موقعه له ما سره د کبل نقيب احمد جان هم و.

[۳۱۱]عنايت الرحمان. د سوات پخوانی قيصې (اوله حصه)، روم، IsMEO، ۱۹٦۸، ۹مخ.

[۳۱۲] شاهين، محمد پروېش. د سوات گلونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۸۸، ۴۰، ۴۱ مخونه.

[۳۱۳] رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۴۹مخ.

[۳۱٤]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۰ مخ.

[۳۱٥]د فيضان صيب د ژوند، تعليم،او قام نسب دا بنيادي معلومات د هغه له ځوي شمس الاقبال شمس نه په ۲۰۱۱-۴-۷تر لاسه شو. شمس صيب د فيضان مشر ځوی دی او تاريخ پيدايش يې ۱۹۵۹-۱۲-۲۱ دی.

[۳۱٦]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۰ مخ.

[۳۱۷]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۳ مخ.

[۳۱۸]رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپه)، ۲۵۳مخ.

[۳۱۹]مرين،(عمر:۷۰ کاله،بره بانډی، يو سپين گيری سړی چې حافظ يې ليدلی وه. د مرين حجره) انټرويو: ۱۱ اپرېل ۲۰۱۱.

[۳۲۰]د مرين نه د شيرين حافظ کلام ما په ۲۰۱۱-۴-۱۴ ريکارډ کړه او بيا مې وروسته وليکلو. په دې موقعه له ما سره د کوزې بانډې يو شاعر عبدالواحد جلبلي هم وه. مرين د اويا کالو يو سپين ږيری سړی وه او هغه ماته وويل چې دا کلام ما په کراچۍ کې د شيرين حافظ د يو شاگرد عبدالرحيم نه ياد کړی وه. مرين وويل چې حافظ په دواړه سترگو ړوند وه او عبدالرحيم به لاس نيولی گرځولو او هغه به خپل کلام ويلو او خلکو به ورسره مالي مرسته کوله.

[۳۲۱]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (ووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲(جنوري ۱۹۸۱)، ۵۱ مخ.

[۳۲۲]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (اووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۲ مخ.

[۳۲۳]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (اووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۲ مخ.

[۳۲٤]رحيم، رحيم شاه. د سوات ورک شاعران (اووم ټوک)، مشموله مياشتينی پښتو، پښتو اکيډمي پېښور يونيورسټي، جلد: ۱۲، شماره: ۱۲ (جنوري ۱۹۸۱)، ۵۲ مخ.

[۳۲٥]سهېل، فضل عزيز. نيمبولا ديمبولا، مياشتينی پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ۱۰، شماره: ۸ (ستمبر ۱۹۸۱)، ۴۸مخ.

[۳۲٦]ډارمسټېټر، جيمز. د پښتونخوا د شعر هاروبهار، کابل، پښتو ټولنه، دريم چاپ ۱۹۷۷، ۲۳، ۱۲۴ مخونه.

[۳۲۷] رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپه)، ۱۸۳مخ.

[۳۲۸] رحيم، رحيم شاه. غټه خزانه (ناچاپه)، ۲۰۸ مخ.

# شپږم باب

# د سوات پښتو ادب او ثقافت

# (۱۹٦۹ – ۲۰۰۰)

## د رياست سوات ادغام او ټولنيز بدلون

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي، چې په باقاعدن توګه رياست سوات په ۱۹۱۵م کې په وجود کې راغلی و او د ۱۹٦۹م د جولای پر ۲۸ مه د سوات د رياست په پاکستان کې د ضم کېدو اعلان وشو،[۱] خو په باقاعده توګه د ۱۹٦۹م کال د اګست پر ۱۵ مه ختم کړی شو او د سوات په تاريخ کې له دغه وخت نه يو نوی باب شروع شو. د رياست سوات له پاکستان سره د انضمام له اعلان نه په سوات کې انتظامي، سياسي او ټولنيز بدلونونه شروع شول. د رياست سوات په پاکستان کې له ضم کولو وروسته دلته چې کومه انتظامي مشينري راغله د هغوی د کار طريقه او نفسيات د دې خلکو لپاره ډېر نا اشنا وو. اول ټول اختيارات د رياست دننه خپل وو او له ضم کېدلو وروسته اختيارات يا له مرکز او يا له صوبې سره شول. ترقياتي فنډونه هم له مرکز يا له صوبې سره وو او د ترقياتي منصوبو د سر ته رسولو طريقه کار هم بدل شو. رياست خو په پاکستان کې ضم کړی شو خو د سوات چې کوم خصوصي قانوني حيثيت و، هغه برقرار پاتې شو او ورسره دلته عدالتي نظام هم بدل شو، نو له دې سره قانوني مشکلات او مسئلې پيدا شوې، د هغې نتيجه دا شوه چې عدالتي فېصلو به ډېر زيات وخت اخسته او ډېرې پېسې به د خلکو په عدالتي فيصلو لګېدلې، په دې باره کې سلطان روم داسې ليکي:

With bringing an end to Swat State by Government of Pakistan, drastic changes occurred in all respects. A new and alien

administrative apparatus was brought, characterized by federal and provincial centralization, bureaucratic mindset, red tape and dilly-dally. Determining priorities, developmental schemes and the allocation of funds were now made at the federal and provincial levels and the implementation was done through the bureaucratic hierarchy and chain which was a new and alien thing for the people. Besides, the constitutional status of the area as a tribal area was retained; and the judicial system and apparatus was changed, which now was characterized by technicalities, delay and high costs. All these proved some of the negative results and outcomes of the merger of Swat State.[٢]

ترجمه: کله چې پاکستاني حکومت د سوات ریاست په پاکستان کې ضم کړ، نو په هر لحاظ ډېر بدلونونه رامخې ته شول. یوه نوې او نا اشنا انتظامي مشینري راوړل شوه، د دې نوې انتظامیې خصوصیات دا وو چې اختیارات له صوبې یا مرکز سره وو، افسر شاهي وه، د کلرکانو له لاسه دفتري مشکلات وو. د ترجیحاتو تعین، ترقیاتي منصوبې او د فنډ تقسیم به اوس په مرکزي یا صوبایي سطح کېده او د دې نفاذ به د افسر شاهۍ په ذریعه کېدلو چې دا د سوات د خلکو لپاره ډېر نااشنا او عجیبه خبره وه. بل طرف ته د دې علاقې ائیني حیثیت د قبایلي علاقې و، عدالتي نظام او مشینري بدله شوه چې اوس په هغې کې باریکیانې او لېټ کېدل وغیره شروع شول، دې ټولو خبرو دا ثابته کړه چې د ریاست ضم کېدلو منفي اثرات پیدا کړل. دې (انتظامي او عدالتي مسئلو) د خلکو په ژوند ژواک ډېر اثرات مرتب کړل او د خلکو په سوچ او فکر کې هم ډېر بدلون شروع شو.

## د ریاست له ادغام وروسته د بدلون وجوهات

لکه څنګه چې مخکې ووېل شول، ریاست سوات چې کله په پاکستان کې ضم کړی شو، نو له دې وروسته دلته ډېر بدلونونه را مخې ته شول، لکه څنګه چې له ریاست نه مخکې د سوات خلکو د یو قبایلي نظام لاندې ژوند تېرولو او د حکومت د پابندو نه نا اشنا وو او ناڅاپي پرې حکومت راغی او ریاست جوړ شو، نو د دوی د ژوند په هر اړخ کې بدلون راغی، همدغه ډول کله چې د سوات خلک له یو ریاست او بادشاهت سره عادت

شول او ناڅاپي دغه نظام مکمل بدل کړی شو، نو د سوات په ټولنیز ژوند کې له دې سره بیا بدلون شروع شو. د دې بدلونونو په شا د خلکو له خپلو نفسیاتي عواملو نه علاوه څه قومي او څه بین الاقوامي عوامل موجود وو. په دې باره کې ډاکټر سلطان روم داسې لیکي:

The tribal structure and social organization underwent great change under the Swat State, which further altered in the post-Swat State years due to a number of local and global factors; and hence the roles and structure of the society evaluated in the anthropological and sociological studies in the ١٩٥٠s but even those carried out in the ١٩٦٠s and ١٩٧٠s did not portray the real picture of ١٩٩٠s and the first decade of the twenty first century.[٣]

ترجمه: د سوات په ریاست کې په زوړ قبایلي جوړښت او په ټولنیز تنظیم کې غټ بدلونونه راغلل او د ریاست سوات له ضم کېدلو نه په وروسته کلونو کې په دې کې د څه سیمه ییزو او نړیوالو عواملو له کبله نور هم بدلون راغی او دغه وجه ده چې د بشر پوهنې او ټولنپوهنې د علومو پوهانو د سوات د ټولنې د کردار او جوړښت کومې مطالعې او څېړنې په ۱۹۵۰ یا ۱۹٦۰ یا ۱۹۷۰م کلونو کې کړې وې، هغه څېړنې او مطالعې د ۱۹۹۰م کال د لسمې یا د شلمې پېړۍ د وړومبۍ لسمې د سوات د ټولنې تصویر نه شي وړاندې کولی.

## سوات او پاټا (PATA)

په پاکستان کې د سوات د ریاست له ضم کولو سره د سوات ځانګړی ائیني حیثیت بحال پاتې کړی شو، چې وروسته د پاټا حصه شوه. اوس ګورو چې د سوات د پاټا ائیني حیثیت څه دی . سوات او نړلو نورو علاقو ته د پاټا حیثیت ورکولو په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې لیکي:

Under Article ٢٦٠ of The Interim Constitution of the Islamic Republic of Pakistan, ١٩٧٢, the Provincially Administered Tribal Areas (PATA) were created; and the ‘districts of Chitral, Dir and Swat (which includes Kalam), Malakand Protected Area, the Tribal Area adjoining Hazara district and the former State of Amb’ of the Frontier Province were made part of it.[٤]

ترجمه: د پاکستان د اسلامي جمهوریت د ۱۹۷۲م کال د عبوري قانون د ۲٦۰ مادې لاندې د صوبايي انتظام لاندې قبايلي علاقې، يعنې پاټا جوړه کړی شوه او د سرحدي صوبې د سوات، چترال او دير ضلعې (له کالام سره)، د مالاکنډ محفوظه علاقه، د هزارې ضلعې سره تړلې قبايلي علاقې او د امب پخوانی رياست د دې حصه جوړه کړی شوه.

لکه وړاندې چې ذکر شوي، چې سوات له رياست نه وړاندې يوه قبايلي علاقه وه، د رياست له جوړېدو سره د دې ځای په ټولنيز تنظيم کې بدلون راغی، لکه ډاکټر سلطان روم چې ليکلي دي:

> The tribal social organization and setup of Swat was altered drastically by the rulers of the state and hence, Swat as a tribal society, receded into the background. The area's constitutional status as a tribal area however, is significant, as it makes the area constitutionally different from the settled areas and also provides it a separate status. Since Swat is part of the Provincially Administered Tribal Areas (PATA), it is crucial to understand its constitutional status.[٥]

ترجمه: د سوات د رياست حکمرانانو د سوات په قبايلي او ټولنيز جوړښت کې لوی بدلون راوست او دغه رنګ د سوات قبايلي ټولنه په شاليد کې پاتې شوه. د دې علاقې ائيني حيثيت کوم چې يو قبايلي حيثيت دی دا هم ډېر اهميت لري، ځکه چې دې حيثيت دا علاقه له نورو علاقو نه په اييني لحاظ سره يوه جدا علاقه وګرځوله او يو جدا حيثيت يې ورته ورکړ. سوات چونکې د صوبايي حکومت تر انتظام لاندې يوه قبايلي علاقه ده، نو ځکه د دې علاقې قانوني حيثيت پېژندل ډېر مهم دي. د ۱۹٦۲ د قانون د ۲۴۲ سيکشن لاندې د امب، چترال، دير او سوات رياستونه يوه قبايلي علاقه وګرځول شوه او صدر سره دا اختيارات وو چې د مقامي خلکو په رضا هغه په دې قبايلي حيثيت کې بدلون راوستلی شي، لکه څنګه چې د ۱۹٦۲ په قانون کې ليکلي دي:

> The President may,at any time, by order, direct that the whole or any part of a Tribal Area shall cease to be a Tribal Area and any such order may contain such incidental and consequential provisionsas may appear to the president to be

necessary and proper. Provided that before making any order under clause, the president shall ascertain in such manner as he considers appropriate, the viewsof the people of the area concerned, as represented in Jarga.[٦]

صدر خپل هغه اختيارات استعمال کړل کوم چې والي صيب په ۱۹۵۴کې د سپلمنټري انسټرومنټ اف ايکسيشن تحت د پاکستان قانون سازې ادارې ته ورکړي وو او د سوات رياست يې په پاکستان کې ضم کړ. د رياست له ادغام وروسته دلته پاټا ريګولېشن جوړ کړې شو.[۷] د پاټا ريګولېشن په باره کې يو شاعر داسې ليکي:

هـــــــــــر کلـــه چـــې رياســـتونه شـــو ادغــــــــــام
ډېـــر خوشحـــــــاله شـــو پـــه دغـــه کـــار عــــــــوام
تبـــــديلي غوښـــــته انســـــان کـــــې بـــــل فطـــــرت دی
فکـــر نـــه کـــړي بعضيـــ وخـــت کـــې پـــه انجـــــام
ليکــــــــــن بيـــا نـــوی قـــــانون چـــې دلتـــه راغـــی
دوی شـــــو بيـــا زر حکـــــــــــــومت تـــه لاس پـــه نـــام
دوی وې مــــــونږه يــــو جاهــــــل، قـــــانون مشــــکل دی
ځــــــه زمـــــــــــونږ د پــــاره اوکـــــــــــــړئ انتظـــام
حکومـــــت هـــــم پــــه درخواســــت يـــــې غــــــور اوکــــړه
چـــــــــــې خــــــبره جــــــــــــائز اوري دوی مــــــــــدام
د پاټـــا پـــه نـــوم قـــــــانون يـــې ورلـــــــــه جوړکــــه
پــــه جــــــــــرګه وي پکــــــې جــــوړه د عــــــــــــوام[۸]

او بيا څه وخت وروسته د ۱۹۹۰م کال د فرورۍ پر ۲۴ مه د هائي کورټ د يو عدالتي حکم تر مخه په مالاکنډ ډويژن کې پاټا ريګوليشن کالعدم وګرځولی شو.[۹] تر دې ځای پورې مونږ هغه قانوني نکتې په ډاګه کړې د کومو پر بنسټ چې د سوات انضمام وشو او يا د سوات بېل قانوني حيثيت و. د سوات د انضمام او د يو بېل قانوني حيثيت د سوات پر ټولنه اثرات او بدلون هم په ډاګه شو، اوس به مونږ د دې دور د ادبي رجحاناتو طرف ته راځو.

## ادبي تحقيق

د سوات د ادب په دې دورکې مونږ ته په ادب کې د تحقيق رجحان په نظر راځي. په دې وخت کې د مختلفو ديوانونو تدوين او د دوباره چاپ انتظام وشو. په دې کې د احمد دين طالب ديوان او دحافظ الپورۍ ديوان شامل دي. د پښتو په کلاسيکي شاعرانو باندې هم په دې دور کې د سوات څېړنکارانو تحقيقي مقالې او کتابونه ليکلي، لکه د شېرافضل خان بريکوټي د پښتو شعر و ادب تاريخ، دبدبه خوشحال[١٠]، زمزمه رحمان، عندليب سوات حافظ الپوري، سخن طراز عبدالحميد مومند[١١] او نور. شېرافضل خان بريکوټي له دې ذکر شوو کتابونو علاوه په اردو کې هم په بايزيد انصاري، پير بابا او اخوند درويزه يو يو کتاب ليکلی دی. رحيم شاه رحيم د سوات په زړو شاعرانو او اديبانو ډېرې مقالې ليکلي دي. په دې شاعرانو او اديبانو کې د کانجو مياکريم داد، محمداکبر عرف ملابابا، مياعبدالحليم، مصطفیٰ محمد، ميا عبدالسّلام، مياعبدل، مياقاسم، احمد دين طالب، سيد حسېن، دوست محمد خان، سيد عثمان طالب، قاضي دادا گل، مولوي مختيارالدّين، قاضي مصطفیٰ جان او نور شامل دي. د ځينو کتابونو ديباچې کومې چې په دې دور کې ليکل شوي، هغه هم د تحقيقي مقالو برابرې دي. دغه ديباچې هم په ادبي تحقيق کې اهم مقام لري، لکه د انوار سهيلي ديباچه، د احمد دين طالب د ديوان ديباچه، د ديوان حافظ الپورۍ ديباچه او نور. د پښتو ژبې او د پښتون قام د تاريخ په باره کې په دې دور کې محمد پرويش شاهين هم ليکونه کړي، اگر چې د هغه ډېر ليکونه د اصلاح قابل دي او ډېرې تاريخي تېروتنې لري خو بيا هم د نورو څېړنکارانو لپاره يوه لار پرانستل شوې ده.

## تذکره ليکنه

په دې دور کې د ادبي تحقيق په لړ کې يو شمېر تذکرې هم ليکل شوې دي، په دې تذکرو کې د رحيم شاه رحيم تذکره "واورينې څوکې"[١٢]، د مهرونېش خان صديقي تذکره "د صحرا کاروان"[١٣] او د اختر ملک ملک او د رحيم سيد خان تذکره "لعلونه"[١٤] شامل دي. له دې علاوه ځينو شاعرانو په خپلو نظمونو کې هم د ځينو شاعرانو ذکر کړی دی، چې مونږ ترې په اسانۍ سره د هغه دور د شاعرانو د مرتبې تعين کولی شو، لکه د نمونې په ډول دا شعرونه:

حمزه رهبر د نوي ژوند د کاروان
ختلی نمر دی په اسمان د پښتو
یو خوا دی شمس بل خوا پرېشان ولاړ دی
د غزل غرونه په جهان د پښتو
هر یو د خپل زړګي قطرې ورکوي
مهمند، صابر، خټک، فیضان د پښتو
تا چې کوخو کې په سر کانې خوړل
ارماني سر دې شو ارمان د پښتو[۱۵]

او یا لکه دا دوه شعرونه:

دا یو حمید دی بل خوشحال یاديږي
عبدالرحمٰن دی بل اقبال ناميږي
کلام د واړو د سوزونو ډک دی
لري چې څه جلال جمال یاديږي[۱۶]

محمد نواز خټک د سوات او د چاپېره علاقو د یو څو شاعرانو ذکر په یو نظم کې داسې کړی دی:

مېشته د سوات په سیمه پوهان اوسي     شاهین دی هم رحیم دی فیضان اوسي
طائر دی که نسیم دی که سلیم دی     طالب پکې عزیز د رحمان اوسي
بیتونه د نذیر هم بې نظیر دي     میشته د شموزو په دالان اوسي
هم اوسي بخت محمد کوزه باندې کې     لوهار د مینګورې مې جان اوسي
فطرت نقیب د فن دی په کوټکي کې     ستي په فن ادب هم امان اوسي
څوک له خدایه کړي طلب څوک د بنده نه     شته څني په اسره د انسان اوسي
ستاینه د لادین چې په سخن کړي     په مینه کې ستي وي د نان اوسي
د شمس په پلو شو ادب رڼا شه     ځلانده د بونېر په اسمان اوسي
زېب سر ادیب د سوات د یادو وړ دی     صدیقي په فن ادب کې په شان اوسي
ته خیال د صدیقي انداغ کې ګوره     پخپله فنپاره کې روښان اوسي
داخل په سلسله د دستګیرۍ کې     حکیم په محبت د منان اوسي
شېر زمان ماهر بل شېر په لیلونۍ کې دا زمري د فن ادب په میدان اوسي

مجبور د الپورۍ دی کـــــه جانان دی مئـــېن پـــه پښـــتو ژبـــه پوهـــان اوسي
درخـــــــ د پښتو ژبې بیا ژوندی شوه سر ځنـــې د پښـــتو تـــه زلمیـــان اوسي
خدمت چې د ملت په طبابت کړي ډاکټر کوزه بانډۍ کې حکیم جان اوسي
د فـــــــادب په لړ غني قصاب ردیـــــف د قـــــافیو پـــــه دکـــــان اوسي
ندیم دی که کمـال کـه محبت دی دې فـــن کـــې د لالونـــو پـــه کـــان اوسي
مئېن واړه پښتانه په پښـــــتو باندې پـــه عـــزم کـــې مضـــبوط پـــه ایمـــان اوسي
سرحدي په مینګـــــــوره کې حلیم مملکـت د فـــن کـــې هســـې تابـان اوسي
اجملي د ارماني ذکـــــــر کـــــوم د فـن ادب چمـن کـې رقصــــــان اوسي
رحمت د مینګـــورې پرې رحمت شه نـن خـوا کـې د حـــــورانو شـادان اوسي
حـــافظ د الپورۍ به کلـــه هېر شي جنت کې دا حـــــــافظ د قران اوسي
اکبر د کـــوکارۍ چې نن مرحوم دی اشعار یې د هـــــــــر پوه په زبان اوسي
لندن د پاڼو ځـــــای کي اکبر پټ وه طــــــائر ویـل تـر څـو بـه پنهـان اوسي
معافي غـــــواړم له نورو واقف نه یم شته ستوري ګڼ دې په اسمـــــــان اوسي
ختـک پـه یـو اویـا کـې قـــــدم کېښـو دی زوړ پـه تـن پـه فکـر کـې ځـوان اوسي
په اتیا د اکـــــــتوبر اتم تاریخ دی د سـوات مـې پـه مغـزو کـې بیـان اوسي[۱۷]

په دې نظم کې د سوات له ډېرو شاعرانو علاوه د بونېر او د شانګلې هم د یو څو تنو شاعرانو ذکر شوی دی. د سوات د ځینو کلاسیکي شاعرانو ذکر یې هم کړی دی کوم چې د دې لیک له زمانې نه ډېر وړاندې وفات شوي وو.

## لغت لیکنه

د ادبي دیوانونو له ترتیب او تدوین علاوه په دې دور کې د پښتو ژبې په لغتونو هم کافي کار شوی دی. دا کار د دیوانونو له شرحو او حاشیو علاوه د عربي ـ پښتو لغت "المنجد" په شکل کې هم موجود دی. د دیوانونو په شرح کې هم د پښتو د الفاظو ډېره ذخیره محفوظ کړی شوې ده. زیاتې شرحې د حافظ الپورۍ د دیوان شوي دي. په دې کې یوه شرحه ابو حسېن چندا خوري بله شرحه قاضي غفران الدین کوکارۍ او بله شرحه حلیم سرحدي کړي ده. له دوی علاوه نورو خلکو هم د لغت نویسۍ په حواله په څه نه څه رنګ کې کار کړی دی."المنجد" یو عربي ـ پښتو لغت دی، دا لغت مولوي ګل برخان سواتي لیکلی دی. د

مولوي ګل برخان کنيت ابو حسين دی او د سوات چندا خوری (موجوده نوم يې کبل دی) اوسېدونکی دی، ځکه د ده له نوم سره چندا خوري هم ليکلی وي. ابو حسېن چنداخوري د ديوان حافظ الپوری شرح هم ليکلې ده. المنجد لغت ۱۱۸۲ مخونه لري.

## ناول ليکنه

ناول يو جديد صنف دی چې د اردو او انګرېزۍ له لارې پښتو ته راغلی دی. د سوات د پښتو ادب په دې دور کې ناولونه هم ليکل شوي دي. په دې دور کې چې کوم ناولونه ليکل شوي دي هغه دا دي: خوابښې اينګور(۱۹۷۳)، د سيند په غاړه ترې (۱۹۸۷)، راجګنه (۱۹۸۹)، بي بي مبارکه (۱۹۹۱)، اجړه (۱۹۹۴)، د دشت لوط مسافر(۱۹۹۶)، تورونه سازښتونه (۱۹۹۷) وغيره. په دې ناولونو کې "راجګنه" د سوات وړومبی تاريخي ناول دی.[۱۸]

## سفر نامې

په دې دور کې سفرنامې هم ليکل شوي دي چې ځينې په کتابي شکل او ځېنې په رسالو کې چاپ شوې دي. په دې کې د تاج محمد خان زېب سر سفر نامه " زما د حج سفر او مناسک د حج" دا په کتابي شکل په ۱۹۷۴م کال کې چاپ شوې ده. فضل الرّحمٰن فيضان هم په پښتو رساله کې " زما د حج سفر" د سر خط لاندې خپله سفرنامه ليکلې ده.

## ترجمې

د سوات د پښتو ادب په دې دور کې له نورو ژبو نه پښتو ته ترجمې هم شوي دي . په دې کې لائق زاده لائق د سيد سليم ګرديزي کتاب "ميں نی کشمير کو جلتی ديکها" ترجمه د "اوښکې او لمبې"[۱۹] په نوم کړې ده. سيد ناصر علي شاه د بېنظير بهټو د کتاب ترجمه " د ختيز ملالی" په نوم کړې ده. رحيم شاه رحيم د وليم ورډز ورتهـ د انګرېزۍ د يو مشهور نظم Solitary Reaper ترجمه د "تنها لوګرې"[۲۰] په نوم کړې ده او دا رنګ نورې ترجمې هم په دې دور کې په نظر راځي.

## منظوم تاريخونه

د سوات تاريخ ځينو خلکو په منظوم ډول هم ليکلی دی. په دې کې قيمت ګل انقلابي د "ځلنده ستوري"[۲۱] په نوم د سوات د ماما خپلو تاريخ ليکلی دی، دغه رنګ نور محمد شاه عرف غوبه جان هم " منظوم تاريخ سوات"[۲۲] ليکلی دی.

## د ماشومانو ادب

په دې دور کې د ماشومونو په ادب کې هم څه نه څه تخليق شوی دی، لکه د جوان بخت اسير "چورلکونه" کتاب د ماشومانو په ادب مشتمل دی.

## ښځينه ليکوالانې

د دې دور په ادب کې د ښځينه ليکوالانو منظوم تخليقات هم چاپ شوي دي، لکه د کشره بېګم "نيمګړی ژوند"[23] او "يادونه"[24] او نور.

## ادبي اصناف

د وخت په تېرېدو سره په ځينو ولسي اصنافو کې کمی راځي خو په تحريري ادب کې په اصنافو کې اضافه ليدلی شي.

خـــــولې يـــــې ســــــپړدلې غـــــوټی پـــــانې کـــــوي
راغـــــــی ســــــپرلی پـــــه ګلســــــتان د پښـــــتو
پـــــه هـــــر محفـــــل کـــــې يـــــې سر پورتـــــه کړلـــــو
نظم،غـــــــزل، ټپـــــــې داســـــــتان د پښـــــــتو[25]

د پښتو ادب په مروجه تقريباً ټولو صنفونو په دې دور کې طبع ازمايي شوې ده، په دې کې غزل، نظم، رباعي، قصيده، مرثيه او نور شامل دي.

## غزل

د سوات د پښتو ادب په هر دور کې غزل د نورو صنفونو په نسبت زيات ليکل شوی دی، بعضې خلک غزل ته رباعي وايي لکه د رحمان بابا غزلو ته اکثر مجلسيان رباعيانې وايي. په سوات کې د ميا سيد عمر ناصح يو کتاب د "سوی زړه"[26] په نامه چاپ دی، هغه د هر غزل د پاسه غزل او رباعي دواړه ليکلي دي.

## تضمين

په دې دور کې د تضمين نمونې هم موندلی شي. د خوشحال د شعر په دې مصرعه " په ښکاره نعرې وهم چې خوله يې راکړه" د سيف الملوک صديقي د تضمين دا يو شعر وړاندې کولی شي:

په نخرو چې خوا له راغله رقيب شا کړه
په ښکاره نعرې وهم چې خوله يې راکړه[۲۷]

فضل الرحمان فيضان د رحمان بابا د کليزې مشاعرې په موقعه د هغه په دې شعر تضمين کړی دی:

تل به نه وي شگفته بازار د عمر
نه به جوړ وي همېشه بهار د عمر

د فيضان د تضمين يو شعر دا دی:

مه نازېږه په دې لنډ بازار د عمر
خزان لوټ کړي اخر دا بهار د عمر[۲۸]

شېر اکبر خان فکري د حافظ الپوری په يوه مصرعه تضمين کړی دی. هغه مصرعه دا ده:

"خزان زپلی عندليب وه گلستان ته راغی"

په دې مصرعه د فکري د کلام دوه شعرونه دا دي:

په کفرياتو کې وه غرق دارالامان ته راغی
خزان زپلی عندليب وه گلستان ته راغی
چې چا يې نوم اخستی نه شه د بد خوي په وجه
نن د دعا د پاره خولې د مسلمان ته راغی[۲۹]

## ازاد نظم

په دې دور کې په پښتو ادب کې د جديديت نخښې په نظر راځي. د مغربي ادب د اثر لاندې دلته په پښتو کې ازاد نظمونو ته هم وده مېلاو شوې او د دې دور ډېرو شاعرانو د ازاد نظم ښې تجربې کړي دي. د ازاد نظم په ليکونکو شاعرانو کې د يو څو شاعرانو نومونه دا دي: لايق زاده لايق، عبدالسّلام خالص، روح الامين ناياب، فضل محمود روښان او نور. دلته د لايق زاده لايق يو ازاد نظم "سلگۍ" د نمونې لپاره وړاندې کولی شي:

تا چې سترگې پټې کړې
د" شهيد بابا" مزار کې
وې خاموشه شان ولاړه

مـــــــا دې غلـــــــــې تماشـــــــــې کـــــــړې
پــــــه ســـــپین مـــــخ دې رنـــــې اوښـــــکې
وې لــــــــــــړی لــــــــــــړی روانــــــــــــې
گــــــــــــلابي شــــــــــــــــــوندې دې رو رو
رپېــــــــــــــدلې مـــــــــــــا لیـــــــــــــدلې
پوهېـــــــــدم چـــــــــې د مـــــــــولا نـــــــــه
پــــــه ســـــــلگو کـــــــې دې غـــــــوختلم
پــــــــــه لېمـــــــــــو دې ښـــــــــکلولم[30]

د لایق زاده لایق د یو څو نورو ازاد نظمونو نومونه دا دي: ماشوم، لېونتوب، کنډر، تیندک، جواب، مینه، بت، یکه زار،جنت، خندا، خبرې، نظر، غبږ او نور. د روح الامین نایاب یو ازاد نظم "د پښتون زړه" د نمونې لپاره لاندې ورکولی شي:

د پښـــــــــتون زړه نـــــــــه خـــــــــبر یـــــــــې
چـــــــې پښـــــــتو پکـــــــې پرتـــــــه ده
پـــــــه مـــــــــودو یـــــــــارانو
پـــــــه مثـــــــال د هغـــــــه کـــــــاڼي
چـــــــې پـــــــه تـــــــل وي د ابـــــــو کـــــــې
د عمرونـــــــــو پـــــــــورې داســـــــــې
لکـــــــه اوس وي چـــــــا چـــــــې ایښـــــــی
نـــــــه زړیـــــــږي نـــــــه بـــــــدلیږي
د اولـــــــــه غونـــــــــدې ســـــــــخته
د اول غونـــــــــــــدې متاکـــــــــــــه[31]

عبدالسلام خالص هم ازاد نظمونه لیکلي دي، یو نظم "د خبېر په خوا"[32] یې ډېر زړه راښکونکی دی. فضل محمود روښان د ازاد نظمونو یو کتاب " لټون د پوهې"[33] لیکلی دی. د دې کتاب د ټولو ازادو نظمونو ترجمې په انگرېزی ژبه کې هم شوې دي.

## مرثیه

مرثیه د ادب په هر دور کې په نظر راځي. د دې دور په ادب کې هم ډېرې مرثیې

موندل کېږي، د نمونې لپاره د يو څو مرثيو ذکر دلته کولی شي. محمد جان لوهار د قائد اعظم مرثيه ليکلی ده يو څو شعرونه يې دا دي:

نـــــن قائـــــداعظم فنـــــا شـــــه لـــــه دنيـــــا نـــــه
ژړيــــــږي هــــــر مســــــلم د ده پــــــه بــــــې وختــــــه رحلــــــت
افســــــــــــــــــوس دې دا ســــــــــــــــــاعت
افســــوس دې ډېــــر ارمــــان جنــــاح صــــيب شــــه روان
پــــــــــــه لــــــــــــور د قبرســــــــــــتان[٣٤]

کشره بېگم چې د سوات د والي مياگل جهانزېب کشره بي بي وه هغې د والي سوات مرثيه داسې ليکلې ده.

يــــــو کــــــال دې بــــــل د جــــــدايۍ تېــــــر شــــــه
څــــــه پــــــه ژړا او پــــــه ســــــلگۍ تېــــــر شــــــه
د پاڅېــــــــــدو را پکــــــــــې دم نشــــــــــته دی
ډېــــــر مــــــې ژونــــــدون پــــــه مايوســــــۍ تېــــــر شــــــه
هېــــــر بــــــه مــــــې نــــــه شــــــي قدردانــــــه اشــــــنا
هســــــې مــــــې ژونــــــد پــــــه بــــــې وســــــۍ تېــــــر شــــــه[٣٥]

فيضان د دوست محمد خان کامل په مرگ يوه مرثيه ليکلې ده يو دوه شعرونه يې دا دي:

اخــــر فنــــا شــــه لــــه دنيــــا دوســــت محمــــد خــــان کامــــل
د ده پــــه مــــرگ بانــــدې کــــوو مــــونږه ارمــــان کامــــل
د هــــرې ژبــــې پــــه ادب يــــې ښــــه عبــــور لرلــــو
داســــې دنيــــا کــــې کــــه پيښــــيږي اديبــــان کامــــل[٣٦]

سيف الملوک صديقي يوه مرثيه "د فضل ودود مور چاچي" د سر خط لاندې ليکلې ده، وړومبی شعر يې دا دی:

پـــــــــه ســـــــــفر لاړې بـــــــــې زمـــــــــا نـــــــــه لاړې
پـــــــــه حسرـــــــــتونو د دنيـــــــــا نـــــــــه لاړې[٣٧]

د دې مرثيې اخري بند دا دی:

د مـــــــرگ پيالـــــــه د هـــــــر زنـــــــده برخـــــــه ده
پـــــه خپـــــل خپـــــل وخـــــت بـــــه يـــــې پـــــه دهـــــن کېـــــږدي

د هـــــر بهــــــار انجـــــام تــــــه فكــــــر اوكــــــړئ
اخــــــر خــــــزان يــــــې پــــــه گلشــــــن كېــــــږدي
د نــــــور جهــــــان او تــــــاج محــــــل قبرونــــــه
جــــــدا جــــــدا چــــــې يــــــې ځنبــــــتن كېــــــږدي
پــــــوره خــــــدمت بــــــه پــــــه قســــــمت مــــــې نــــــه وه
څــــــوک چــــــې مجبــــــور شي پــــــرې قــــــدغن كېــــــږدي
د ودود مــــــور بــــــه زه اوس چــــــا تــــــه وايــــــم
د صــــــديقي غونــــــدې جليــــــا نــــــه لاړې[٣٨]

فضل يزدان افتاب هم يوه مرثيه "مرثيه په حق كې د زهرا بېگم" ليكلې ده:

ســــــتا جــــــدائۍ كــــــې رانــــــه پــــــاتې كلــــــى كــــــور
همــــــېش ســــــوزم پــــــه اور د لاســــــه د هجــــــران
قــــــبر كــــــې پرېــــــوتې يــــــواځې
بېلتــــــون پــــــه مــــــا اوكــــــړې نــــــا ســــــازې
ژونــــــد پــــــه دنيــــــا بانــــــدې مــــــې نــــــه تېريــــــږي نــــــور.....
زه د زهــــــرا پــــــۀ غــــــم ســــــتي يــــــم
قــــــبر لــــــه تلــــــى يــــــې وختــــــي يــــــم
زړه صــــــبرومه خــــــو د خــــــولې مــــــې خيــــــژي اور....
اللــــــه زمــــــا دې كــــــړي پــــــه نفــــــع
زړگــــــى زمــــــا دې كــــــړي تــــــرې دفــــــع
د پــــــلار پــــــه غــــــم بانــــــدې لا پــــــروت وومــــــه نســــــكور[٣٩]

روح الامين ناياب "د سلمىٰ په مرگ" يوه مرثيه ليكلې ده، د دغې مرثيې دوه شعرونه دا دي:

پــــــه مــــــا راغلــــــى دى مابنــــــام خفــــــه
نــــــن رانــــــه تلــــــى دى گلفــــــام خفــــــه
مــــــخ رانــــــه پــــــټ يــــــې كــــــړۀ او هــــــم اخــــــر
ماتــــــه يــــــې كــــــړى دى ســــــلام خفــــــه[٤٠]

حبيب الرّحمان حبيب د خپل پلار مرثيه ليكلې ده چې دوه شعرونه يې دا دي:

زمــــــا والــــــد بزرگــــــوار د علــــــم غــــــر د دنيــــــا

د گـــلاب گـــل د گـــل پـــه ورځ اوكـــړه ســـفر د دنيـــا
خـــزان ظـــالم د دســـمبر پـــه شپږيشـــتم اوربـــژو
وخـــت ماســـخوتن وه چـــې د پورتـــه كـــړه بســـتر د دنيـــا[٤١]

د عليگرامې اوسېدونكي احمد جان نشتر د تاج محمد خان زېب سر د ځوی محمد شريف مرثيه ليكلې ده، د نمونې په توگه يو څو شعرونه وړاندې كولی شي:

راكـــوز شـــو د پـــروازه بيـــا مـــخ وهـــي طوطيـــان
محمـــد شريـــف خـــان كـــړی انتقـــال پـــه لـــور د گـــور ځـــي
مخلـــــــوق پـــــــه هغـــــــه لـــــــور ځـــــــي
لونـــــد كـــــړی دی گرېبـــــان بلبـــــل فصـــــيح زبـــــان
سرگنـــــــــــد شـــــــــــه دا خـــــــــــزان
ســـوه زيـــږي جهـــان واړه جهـــان ســـوز لـــه دې اوازه
راكـــــــــوز شـــــــــو د پـــــــــروازه[٤٢]

او دغه رنگې نورې هم ډېرې مرثيې د سوات په پښتو ادب كې موندلی شي:

## چاربيته

چاربېته اگر چې په دې دور كې د نورو شاعرانه صنفونو په نسبت كمه ليكلې شوې، خو بيا هم د دې دور په ادب كې د چاربېتې نمونې په نظر راځي. ځينې چاربېتې سوچه اسلامي موضوعات بيانوي لكه د گل بشر بشر چاربېتې، د هغه په يوه چاربېته كې د جنت د څلورو ولو بيان شوی دی.[٤٣] دغه رنگ اسلامي تاريخي واقعات او نعتونه يې هم د چاربيتو په شكل كې ليكلي دي. له دې نه علاوه د روزي خان لېوني كتاب "اوښكې"[٤٤] او د محمد جان لوهار كتاب " ديوان محمد جان لوهار"[٤٥]كې هم چاربېتې ليكل شوي دي.

## لوبه

لوبې هم د پښتو ادب يو اهم صنف دی چې د سوات د پښتو ادب په دې دور كې يې نمونې موندلی شي. د دې دور په كومو كتابونو كې چې لوبې موندلې شي په هغو كې يو څو كتابونه دا دي ـ ستړې قافلې،[٤٦] د حقيقت گلونه،[٤٧] د احساس لمن،[٤٨] ديوان محمد جان لوهار[٤٩] او نور.

## رباعي

د دې دور په پښتو ادب کې رباعیانې هم موندلی شي. فضل خالق فضل په خپل کتاب "احساسونه" کې رباعیانې لیکلي دي.[۵۰]

## سندره

سندره هم د دې دور یو اهم صنف دی. د لایق زاده لایق کتاب "وېښ خوبونه" کې د سندرو ځانله جدا برخه ده، د دغه کتاب نه "د کلي مازیګر" په نوم د یوې سندرې یو څو شعرونه دا دي:

کـــــه کراچـــــی کـــــې رنګینـــــی ډېـــــرې دي
شـــــوخي ده ډېـــــره هـــــم مســـــتی ډېـــــرې دي
مـــــا تـــــه منګـــــی مـــــا تـــــه ګـــــودر یـــــادیږي
ماتـــــــه د کـــــــلي مـــــــازیګر یـــــــادیږي
زمـــــا پـــــه ســـــتر ګـــــو کـــــې غږیـــــږي مـــــدام
هـــــا غـــــه خـــــاورین هاغـــــه کچـــــه کورونـــــه
زمـــــا د خیـــــال نـــــه د وتلـــــو نـــــه دي
هاغـــــه خـــــواره ســـــاده بـــــاده کورونـــــه
یـــــاران د ژونـــــد راتـــــه اکـــــثر یـــــادیږي
ماتـــــــه د کـــــــلي مـــــــازیګر یـــــــادیږي[۵۱]

سندرې د سوات د دې دور په ادبي اصنافو کې یو اهم صنف دی.

## مناجات

هغه نظم چې له الله پاک نه پکې سوال او دعا شوې وي ورته مناجات ویلی شي. فضل یزدان افتاب یو مناجات "مناجات بدرګاه قاضي الحاجات" لیکلی دی، د دې مناجات دوه شعرونه د نمونې په توګه دلته وړاندې کولی شي:

لاس نیـــــولي مـــــو دي ربـــــه پـــــه دربـــــار ســـــتا
تـــــه رحـــــیم یـــــې د رحمـــــت یـــــو امېـــــدوار ســـــتا
هـــــم مـــــو بـــــچ کـــــړې د شـــــیطان د وسوســـــو نـــــه
بنـــــدګان یـــــو مـــــونږ عـــــاجزه ګناهګـــــار ســـــتا[۵۲]

د مناجات روایت د سوات په پښتو ادبي روایت کې یو زوړ مقام لري.

## منظوم خطونه

په دغه دور کې د پيغام رسولو لويه ذريعه خطونه وو. اکثر به شاعرانو او اديبانو خلکو ته منظوم خطونه هم لېږل چې ذکر يې په ادب کې په نظر راځي، لکه سيف الملوک صديقي په ۱۹۷۵کې "د ژوند اخري ملګري" ته د خط جواب داسې ليکي:

ای زمـــا د زړګـــــي سره چـــــې راورســــېدو ســــتا خــــط
مــا د زړه پــــه ســترګو اوکــوت ډېــر پــه مينــه پــه صــحرا خــط[٥٣]

او تره ته د يو خط په جواب کې داسې ليکي:

ډېـــرې نېکـــی دي د عـــالي جنـــاب بـــه ځنـــګ اولـــيکم
تـــره ســـتا د مينـــې د دې خـــط ځـــواب بـــه ځنـــګ اولـــيکم[٥٤]

## زنداني ادب

هغه ادب چې په جېلونو کې تخليق شوی وي ورته زنداني[١] ادب ويلی شي. په دې دور کې د زنداني ادب نمونې هم په لاس راځي، لکه د عبدالسّلام خالص د يو زنداني غزل دا شعرونه د نمونې په توګه وړاندې کولی شي:

زړګيـــه ډېـــر زمـــا پــــه شــــان دي زه يــــواځې نــــه يــــم
پــــه دې قفـــس کـــې څـــه طوطيــــان دي زه يــــواځې نــــه يــــم
اګـــــر کـــــۀ ګېـــــر نـــــن د مفـــــادو پجاريــــانو کــــې يــــم
څــــه خوښـــــونکي د تــــــاوان وي زه يـــــواځې نـــــه يـــــم
ډېـــر راتـــه وايـــي ښـــه بـــه دا وي چـــې خولـــه بنـــده ســـاتم
دلتـــه خـــو زيـــات تـــر بـــې زبـــان دي زه يـــواځې نـــه يـــم
حوصـــله اوکـــړه ټـــول راغونـــډ کـــړه يـــو طوفـــان تـــرې جـــوړ کـــړه
دلتـــه بـــې شـــماره مظلومـــان دي زۀ يـــواځې نـــه يـــم[٥٥]

د روزي خان لېوني دا يو نظم " د قطر په جېل کې" هم د زنداني ادب يوه نمونه ده، يو څو شعرونه يې دلته ليکلی شي:

---

[١] په پښتو کې د زنداني ادب په روايت ډاکټر نورالبصر امن د پېښور پوهنتون له پښتو څانګې نه د ډاکټرېټ مقاله ليکلې ده.

يخ بې مهره تور دېوان    دېوالونــــــــــــه د زنــــــــــــدان
دا سنگين او تور مهين    زنـــــگ وهـــــلي شــــــنه او ســـــپين
د مجرمو نگهبان    دېوالونــــــــــــه د زنــــــــــــدان
دا اوږدې اوږدې غرمې    دا د ژمــــــــــي يخـــــــــې شـــــــپې
دا اودې اودې نغمې    دا د غـــــــــم تـــــــــورې چپـــــــې
سترگې خړې زړه پرېشان    خـــــــــاموشي د قبرســـــــــــتان
دا زمونږ سوی ارمان    دېوالونــــــــــــه د زنــــــــــــدان[56]

عبد القهار مخلص "د پنجرې طوطي" د سر خط لاندې داسې ليکي:

د خپـــــل ســـــېل نــــه شــــوم جـــدا چـــې نـــــن اســـير شـــــوم
د ملگــــــرو نـــــه شــــــوم بيـــــل پــــه دې زهـــــير شــــــوم
ټـــــول ملگـــــري مـــــې نـــــن ســـــېل د سردرو کـــــړي
زه د بـــــــل د لاســــــه خورمــــــه چــــــې فقــــير شــــــوم
پـــــه پنجــــره کـــــې يـــــم راگېــــر وزر مـــــې مـــــات دي
بنـــــديوان پـــــه کـــــوم گنـــــاه پـــــه څـــــه تقصـــير شـــــوم
د دې ظلــــــم ســــــــزا رب بـــــــه ورلـــــــه ورکــــــــړي
د چـــــا دام د شرارت کــــــې چـــــې زه گېـــــــر شــــــوم[57]

او بل ځای کې "د جېل نغمه د جېل په ژبه کې" دا سې بيانوي:

زه خــــو يمــــه جېــــل د چـــا پـــــه ژبـــــه زه زنــــدان يـــــم
زه يــــم هــــم جنــــت او هــــم دوزخ ډک د قيــــديان يـــــم
مـــا لــــه د رب دوســــت هــــم پېغمــــبر لکــــه يوســــف راځــــي
زه هــــم يمــــه کــــور د غـــــل رهـــــزن ډاکـــــو شـــــېطان يـــــم
مالــــه چــــې راځــــي نــــو ورسره خــــو يــــو ټکــــټ وي تـــــل
څــــوک ورتــــه وارنــــټ وايــــي زه ټکــــټ پــــه دې حېــــران يـــــم
دا وارنــــټ ډاکــــوان څــــه حــــاکمان څــــه منصــــفان ليکــــي
څــــه وي حقيقــــت او ډېــــر دروغ زه پــــرې پرېشــــان يـــــم
دا پــــه پړپــــړو د پوليســــانو او يــــا د حــــق وي جــــوړ
څــــه پــــه پېســــو جــــوړ وي څــــه وي ټيــــک پــــه دې گويــــان يـــــم

مــــــا سره دېــــــره دا مېلمانـــــــه پـــــه ټکټونـــــــو وي
چـــا سره يـــم نـــرم چـــا تـــه تنـــدر د اســـمان يـــم
دوي زمـــا نـــه اوځــــي کلـــه بنـــد پـــه زنځيرونــــو کــــې
څـــوک ځـــي هســـپتال تـــه څـــوک وئ زه صـــبې لـــه روان يـــم
څـــوک وئ زه تـــاريخ لـــه ځـــم او څـــوک دېـــوال پېشـــی لـــه ځـــي
ســـبل د پوليســـــانو تـــري چـــاپېر وي زۀ خنـــدان يـــم
دوي لکـــه د گـــډو بيـــزو شـــمار پـــه دروازه کـــې شي
ورکــــړي دوي پـــوليس تـــه زه خـــبر هـــم د دربـــان يـــم
دا يـــو قافلـــه بـــس د اوښـــانو جېـــل نـــه ځـــي راځـــي
دوي پـــه دې حېـــران وي چـــې څـــاروی کـــه زه انســـان يـــم[58]

او دا رنگې د سوات د پښتو ادب په دې دور کې د زنداني ادب نمونې په لاس راځي، له دي نه مونږ ته د جېلونو د حالات، د مختلفو مقدمو او نورو اندازه لگېدلی شي.

## ولسي ادب

په دې دور کې د ولسي ادب په لړ کې هم د زيار وړ تحقيقي کار شوی دی. د اټلي د يو پراجېکټ په مالي مرسته د سوات پخوانی قيصې راجمع کړی شوي او په دوه جلدونو کې چاپ شوي دي. په دې کې وړومبی جلد په رياستي دور کې چاپ شوی دی او دويمه حصه " د سوات پخوانی قيصې دويمه برخه[59]" په نوم باندې په ۱۹۸۴ کې چاپ شوې ده. دا قيصې په پښتو او انگرېزی دواړو ژبو کې ليکل شوي دي. د دې قيصو په دويمه برخه کې مصنّف په خپل نوټ کې د دې قيصو د اهميت په باره کې ليکي چې يوه اهمه نکته چې د دې قيصو له لوستو نه څرگندېږي هغه د ډېرو تهذيبونو اثر د سوات پر ثقافت دی. مختلف بهرني نومونه چې په قيصو کې راځي لکه سياهوش، کېبب، کدمېر، لپ دک، هيمل وغېره د دې حقيقت ثبوت دی. بايد چې دې قيصو کې د پلار نه ځوی ته د رارسېدو په دوران کې څه بدلي راغلي وي، ولې بيا هم دې کې د رښتياؤ گډون ضرور شته. دا قيصې د سوات د پخوانيو مذهبونو، رسمونو او رواياتو يو دلچسپ پېوندي رخ پېش کوي او نور هم دلچسپ دا چې سوات د بدهـ مت د وجرايانه څانگې گړ وه، حقيقت کې د دې قيصو يوه لويه برخه په دې خبره رڼا غورځوي او دې کې د دې علاقې د څېړنې د عالمانو فاضلانو لپاره ډېر معلومات دي.[60] د ولسي ادب په حقله په رسالو کې وخت په وخت مقالې

هم چاپ شوي دي، لکه د محمد پروېش شاهين مقاله "ټپه"[٦١] د عزيز سهېل مقالې"کالي پتري او پښتو ادب (ټپه)"[٦٢]، "زمونږ اساطيري روايات نيمبولا ديمبولا"[٦٣] د رحيم شاه رحيم شفاهي قيصې[٦٤]، د محمد پروېش شاهين شفاهي قيصې.[٦٥] له شفاهي قيصو نه علاوه په ولسي ادب کې په متلونو هم کار شوی دی. په دې حقله د اختر ملک اختر کتاب "متلونه په سوات کې[٦٦]" او "د پښتو متلونه"[٦٧] د ذکر وړ دي. په پښتو محاورو باندې هم خيرالحکيم حکيمزي يو کتاب "د پښتو محاورې"[٦٨] ليکلی دی.

## په شاعرۍ کې ولسي رنګونه

د سوات د ځينو شاعرانو په شاعرۍ کې ولسي رنګ ډېر ښکاره دی. په دې شاعرانو کې يو محمد حنيف قيس هم دی. د قېس په شاعرۍ کې د ولسي رنګونو په باره کې لايق زاده لايق داسې ليکي:

> ولسي شاعري د يو قام د کلتور، ثقافت، مذهبي اقدارو او ولسي رواياتو ترجماني کوي. د دې شاعرۍ هره مصرعه د کليوال ژوند په ښکلا ګانو کې الول کيږي. که د واورينو څوکو واورين بادونه وي او که د خورو دشتو تاوده بادونه، که په ګودرونو د پېغلو خندا ګانې وي او که په حجره کې د رباب او منګي سره د ځوانۍ ټپه. که په پټي کې د سټړي زميدار په تندي راغلې خوله وي او که د چا په وربل کې د ګلونو قطارونه. دا هر څه د ولسي شاعرۍ ځنېه سترګه ده او عن تر دې چې زمونږ ولسي روماني داستانونه د روايتي دښمنو او تربګنو ذکر هم د روايتي شاعرۍ په لمن کې ځايوي.[٦٩]

د حنيف قيس له شاعرۍ نه د اولسي رنګونو يو څو نمونې دلته ورکولی شي:

د ښـــــار ملګـــــــرو راشــــــئ وڅکـــــئ مېـــــوه د کلــــــو
زمــــونږ پـــه کـــلي کـــې تـــوريږي اينځـــران پـــه هــــر کـــې
ښنـــګ بـــه مـــې ســـټړی ښنـــګ ســـتومان کـــړي د غنمـــو غوبـــل
چـــې پيــــاز شــــوملې ډوډۍ غرمـــه راوړي جانـــان پـــه هــــر کـــې
د فــــراق تــــاوکې د زغـــــم غــــره کـــې واورې ويلــــې شــــولې
اوښــکې مـــې راغلـــې لکـــه وي ســـين کـــې طوفـــان پـــه هـــر کـــې[٧٠]

يو څو نور مثالونه يې دا دي:

پکــــې ګلونــــه ســــتا د يــــاد د مــــاضي ماتــــه کټــــوۍ

دا بـــه تـــر عمـــره د ارمـــان پـــه دېوالـــه کېږدمـــه
تـــور خـــال تـــرې لـــرې کـــړه د زلفـــو تېـــرې بـــس دې کنـــه
مـــړې! مـــخ دېخـــوا کـــړه خالونـــه چـــې پـــرې شـــنه کېږدمـــه
زمـــــا د تـــــره د تربـــــورۍ قیصـــــو دی زړه چـــــولی
ځکـــه پـــه مینـــه پـــه سر لاس د خپـــل ورارهٔ کېږدمـــه[۷۱]

له دې شعرونو نه د پښتون د تهذیب او ثقافت ښه واضح منظر په نظر راځي، لکه د غنمو غوبل، پیاز شوملې خوړل، په دېوالونو ماتې کټوې اېښودل او د تره تربور دښمني او نوور د پښتني ماحول د یو کلیوال ژوندخدوخال دي. د روزي خان لېوني دا شعر هم ولسي او کلیوال رنګ لري.

کـــــوچ د تشـــــو شـــــوملو کلـــــه چـــــا ویســـــتلي
منـــــداڼو کـــــه پکـــــې تـــــاو کـــــړې کـــــوز او پـــــاس[۷۲]

په کلېو کې خلک څاروي ساتي او دغه کوچ غوړي، پی، ماسته، شوملې او نور د دوی خوراکونه دي. دغه رنګ د کلي د ژوند د ځینو مادي څیزونو ذکر هم لري، لکه په دې شعر کې د منداڼو ذکر چې شوی دی. منداڼو د شوملو شاربلو لپاره کارول کېږي.

## داستانونه او قیصې

په دې دور کې د عشق او محبت داستانونه هم لیکل شوي دي. دا عشقیه قیصې او داستانونه په نظم او نثر دواړو کې لیکل شوي دي. داسې قسم یوه قیصه فیضان د "څلور ګلونه" په نوم په نثر کې لیکلې ده. د دې قیصې په دیباچه کې فیضان لیکي چې دا قیصه د اردو نه پښتو ته ترجمه کړی شوې ده.[۷۳] بیا وروستو فیضان دا قیصه په نظم کې هم لیکلې ده. په نظم کې د دې قیصې نوم "یوه رنګینه افسانه څلور ګلونه" دی. د دې منظومې قیصې په سریزه کې محمد اصف خان لیکي چې دا مختصر کتاب د پښتو داستاني ادب کې یوه ښکلې اضافه ده.[۷٤] له حمد و ثنا نه وروسته د دې قیصې شروع داسې کوي:

پـــس لـــــــه دې نـــه یـــو قیصـــه وایـــم د مینـــې
کـــه دې واورېـــده بیـــا خـــورې بـــه د زړه وینـــې
دا قیصـــه ډېـــره درد ناکـــــه مـــــا وئیلـــــې

تـــــا بـــــه داســــــــــــې قيصــــــه نــــــه وي اورېدلــــــې
يـــــو بادشـــــــاه د زمــــــــــــانې وه پـــــه دنيــــــا كــــــې
راشـــــه كېنـــــه غـــــوږ مــــــې كېــــــږده پـــــه وېنـــــا كــــــې
وه د دې بادشـــــــــاه يـــــــو ښځــــــــــــــه حســـــــــن داره
وه بادشـــــــــاه د دې پـــــــه عشـــــــق كــــــې نــــــا قـــــــلاره[۷۵]

شېر اكبر خان فكري د هارون الرّشيد باد شاه د ځوى كيسه په نظم كې ليكلې ده. د دې كيسې شروع يې داسې كړې ده:

يـــــو قيصـــــــه مـــــــــــې اورېــــــدلې پــــــه دا شـــــــان
اى سامعــــــــــــه ځــــــان خــــــبر كــــــه پــــــه بيـــــــان
يـــــو بادشـــــــاه بــــــه يادېـــــده هــــــــــارون رشـــــــيد
ډېـــــــر نېـــــــك خويـــــــه پرهېزگـــــــار وه مهربـــــــان[۷۶]

حبيب الرّحمان حبيب هم په خپل كتاب "د حبيب مينه" كې منظومې كيسې ليكلي دي، د يوې كيسې شروع داسې كوي:

زمانــــــــه كــــــې د مــــــــوسىٰ عليــــــــه ســــــــلام
وه يــــــو كــــــس يــــــوه يـــــې ښــــځه يــــــو غـــــــلام
وو دا درې واړه بــــــــــــر بنـــــــــــــد وږي نهــــــــــــــــر
نـــــــا قــــــرار وو واړه دوي پــــــــه صـــــــبح شـــــــام[۷۷]

او په بل ځاى كې د هارون الرشيد باچا د يوې وينځې كيسه داسې بيانوي:

دى هـــــــــارون رشـــــــيد تېــــــر شــــــوى يــــــو كشــــــور
يـــــوه شـــــپه خـــــوب نــــــه ورتــــــه پاڅېــــــد لــــــــه بســـــتر
گرځېــــــــده ډېـــــــر ســــــــاعت غــــــولي د محــــــــل كــــــې
بيـــــــا كمـــــــــــــرو تــــــــه لاړ د وينځــــــــــــــو برابـــــــر
يــــــوه وينځــــــه يـــــــې اوليدلـــــــــــــــــه چـــــــې اوده وه
پــــــــه دنيــــــا كــــــې نمـــــــــــونه وه د قمـــــــــــــــــر[۷۸]

او دغه رنگ كيسه د هارون الرشيد او ابو نواس شاعر يې هم په نظم كې ليكلې ده.[۷۹] له دې نه علاوه " قيصه د زيركي د لور د هارون رشيد" يې هم په نظم كې ليكلې ده.[۸۰] عبدالقهار مخلص په خپل كتاب "عبرت نامه" كې هم منظوم كيسې ليكلې دي، لكه

کیسه د حضرت یوسف [۸۱]، کیسه د اصحاب کهف[۸۲]، په جنګ احد کې یوه عبرتناکه واقعه[۸۳]،عدل جهانګیري، د قاضي انصاف، د بې صبرۍ انجام، اتفاق[۸٤] او نورې.

## د مشاعرو روایت

په ریاستي دور کې چې کومې مشاعرې کېدلې هغه به د دربار تر سیوري لاندې کېدلې او بیا به په سرکاري خرچ چاپ کېدلې. د سوات د ریاست له انضمام نه بعد به هم په ازاده توګه وړې وړې مشاعرې کېدلې او دا به چاپ کېدلې. په دې کې یو څو مشاعرې دا دي کومې چې په کتابي صورت کې چاپ شوي دي، مشاعره شاه فیصل،[۸۵] مشاعره د عبدالغني قصاب د ځوی د واده،[۸٦] مشاعره د نور محمد شاه د ځوی د پیدا کېدو،[۸۷] او نورې . په جهانزېب کالج کې به هم طرحي او غېر طرحي مشاعرې کېدلې.[۸۸]

## ادبي ټولنې

د ریاست له ادغام نه وروسته په سوات کې ادبي ټولنې هم په وجود کې راغلې چې د ادب په وده او روزنه کې یې ډېر مهم کردار ولوبولو. په سوات کې وړومبۍ ادبي ټولنه د "سوات ادبي ټولنه مینګوره سوات" په نوم په ۱۹۷۲ کال کې جوړه شوه. د دې ټولنې وړومبۍ غونډه د محمد جان لوهار په حجره کې شوې وه. د دې ټولنې په بانیانو کې محمد جان لوهار، فیضان، خانی قصاب، قوي خان غمګین، او رحیم شاه رحیم شامل دي. د دې ټولنې سرپرست محمد جان لوهار و. صدر یې خانی قصاب، جنرل سیکرټري عبدالکمال کمال او جاینټ سیکرټري رحیم شاه رحیم وه. دې ټولنې د علي خان هشتنغري او د احمد دین طالب په یاد کې مشاعرې کړې وې. د ۱۹۷٦ م د می پر ۲۴مه د دې ټولنې تر سیوري لاندې د حافظ الپورۍ په مزار یوه درنه مشاعره هم کړې وه. له دې نه علاوه دې ټولنې د کریم داد شهید او محمد اکبر په مزار هم طرحي مشاعرې کړې دي.[۸۹] د ۱۹۸۴م کال د اګست پر ۲۴مه د فضل رحمان فیضان، فضل محمود روښان، محمد امین امین، برهان الدّین حسرت، بخت محمد بخت، فضل ربي راهي، حاجي شیرین جلال، ماسټر عبدالکمال کمال او شاه بخت منیر استاد په کوښښونو"سوات ادبي ځانګه مینګوره" په وجود کې راغله. د دې ټولنې وړومبي عهدیداران دا دي: سر پرست فضل رحمان فیضان، صدر فضل محمود روښان، کشر صدر بخت محمد بخت، مشر سیکتر محمد امین امین، پریس سیکتر برهان الدّین حسرت.[۹۰] د سوات پښتو ادبي ټولنې اغراض و مقاصد دا دي: په سوات کې پښتو ادب

ته وده ورکول او له پښتو ادب سره د عام ولس مينه پيدا کول چې پښتو په خپل ليک لوست کې راولي.[۹۱] په ۱۹۸۴کال کې يوه بله ټولنه د "مرکزي اسلامي ادبي ټولنه سوات" په نوم د طالعمند تنها په کوښښونو جوړه شوه. په وړومبي ځل د دې ټولنې لپاره دا لاندينې عهدېداران منتخب شوي وو: سرپرست حاجي طالعمند تنها، صدر شېر محمد شېر، مشر سيکتر جهانگير خان، پريس سيکتر احمد حسېن نديم.[۹۲] د عجب دين ختک په کوښښونو د ۱۹۸۵ د اگست پر ۹ مه د "پښتو ادبي کاروان سوات" په نوم يوه ټولنه په وجود کې راغله، په وړومي انتخاباتو کې دا لانديني عهديداران منتخب شو: سرپرست اعلیٰ او باني عجب دين ختک، سر پرست سيف الملوک صديقي، صدر محمد شېر علي خان کپتان، نائب صدر فضل يزدان افتاب، مشر سيکتر عبدالاحد شاه درويش، پريس سيکتر ميا سېد عمر ناصح، خزانچي امير عالم امير.[۹۳] د محمد پرويش شاهين او د حبيب الرّحمان افگار په کوښښونو د ۱۹۸٦ په نومبر کې "نوی تېغ پښتو ادبي ټولنه سوات" په وجود کې راغله. وړومبي انتخابات يې هم په دغه کال وشول او دا لانديني عهديداران يې منتخب کړل: سر پرست محمد پرويش شاهين، صدر حبيب الرّحمان افگار، کشر صدر احمد زېب زېب، مشر سيکتر ظفر علي ناز، کشر سيکتر ميا خورشېد خورشېد، پريس سيکتر گل رحمان ساغر.[۹٤] د غلام محمد اکاونټ افسر په کوښښ او زيار سره په ۱۹۸۸کال کې"ايلم پښتو ادبي ټولنه" جوړه شوه. د ايلم پښتو ادبي ټولنې وړومبي عهدېداران دا دي: سر پرست فضل ودود تحصيلدار، صدر غلام محمد، مشر سيکتر رضا خان ابوها، پريس سيکتر غلام محمد.[۹۵]

په ۱۹۸۸کې د محمد اصف خان په سرپرستۍ کې "د ساهو ليکونکو مرکه سوات" په نوم يوه ټولنه جوړه شوه. د دې ټولنې نوم خادم حسېن کېښود. فضل ربي راهي او عثمان ولس يار هم د دې ټولنې غړي وو.[۹٦] عبداللّطيف شاهين په ۱۹۹۰کال کې په کبل سوات کې د " پښتو ادبي ترون" بنياد کېښود.[۹۷] د ۱۹۹۱ د جون پر ۲۸ مه د سوات په کوزه باندۍ کلي کې طوطي جان باچا او بخت محمد بخت د "سحر پښتو ادبي ټولنه سوات" په نوم يوه ټولنه جوړه کړه. د ټولنې مشران او عهديداران دا دي: سرپرست طوطي جان باچا جي، صدر بخت محمد بخت، نائب صدر يحيٰی خان يحيٰی، مشر سيکتر عبدالواحد جلبلي، رابطه سيکتر محمد خان، پريس سيکتر امير عالم امير، خزانچي محمد رسول خان خانی.[۹۸] په ۱۹۹ کال کې په جهانزېب کالج سوات کې عثمان ولس يار او محمد اقبال عيسیٰ خېل له نورو ملگرو سره په شريکه د "پښتو ادبي ځانگه" بنياد کېښود.

دې ټولنې هم ډېر ادبي محفلونه جوړکړي وو.[۹۹] په ۱۹۹۷کال کې په سوات کې "ننګیال پښتو ادبي ټولنه سوات" جوړه شوه. حبیب الرّحمان افګار د "پښتو ادبي لښکر" په نوم هم یوه ټولنه جوړه کړه.[۱۰۰] په ۱۹۹۷کال کې په سېر سینې سوات کې د "نوی کول پښتو ادبي ادبي سنګر" په نوم یوه ټولنه جوړه شوه. په دې ټولنه کې حیدر شاه حېدر، ناصر نسیم یوسفزی، معظم شاه، امان الله امان، سید قیوم او محمد شیر علي خان ثالث وغېره شامل وو.[۱۰۱] په مینګوره کې د "سوچه لیکوال" په نوم یو تنظیم عطاءالله جان، افتاب سپرلی، حنیف قېس، ضیاءالدّین یوسفزی، او عثمان ولس یار جوړ کړی و.[۱۰۲]

## صحافت په سوات کې

په څلورم باب کې په سوات کې د صحافت پر شروع بحث شوی دی. په پینځم باب کې د ریاستي دور پر صحافت بحث شوی دی. دلته به مونږ په دې دور کې د صحافت پر ترقۍ خبرې کوو، په دې دور کې وړومبی اخبار فلک سېر دی.

## فلک سېر

په پاکستان کې د سوات د ریاست له ضم کېدلو نه بعد سید میاګل فروش د "فلک سېر" په نوم یو اخبار په کال ۱۹۷۲کې شروع کړ. دا اخبار به په اردو او پښتو دواړو ژبو کې چاپ کېدلو.[۱۰۳] د پریس اینډ پبلیکیشن ارډیننس ۱۹۶۳ لاندې د هفته وار فلک سېر اخبار لپاره په شلمه فرورۍ کال ۱۹۷۲کې ډیکلیرېشن ورکړی شه. د ۱۹۷۲ په اپرېل کې د دې اخبار وړومبۍ پرچه چاپ شوه. د دې اخبار څلور مخونه به په اردو کې وو او دوه به په پښتو کې وو. پینځویشت پېسې د یوې پرچې قیمت وه او اته سوه پرچې سرکولېشن به کېدلو. د دې اخبار ټول اخراجات به میاګل فروش چیف ایډیټر پخپله برداشت کول.[۱۰۴] رفیع الله لیکي چې د سوات افضل خان لالا او د والي سوات د رقابت په وجه به دا اخبار د افضل خان لالا په سترګو ځکه ښه نه لګېدلو چې میاګل فروش به په دې اخبار کې د والي سوات کارنامې ستایلې او کله چې افضل خان لالا د اطلاعاتو او ذراعت وزیر شه نو هغه په دې وجه دا اخبار بند کړه خو بیا وروستو دا اخبار ازاد شه.[۱۰۵] د فلک سېر وړومبی ایډیټر سید احمد حسین بخاري و، چې هغه به له پېښور نه خپل اخبار نوائی سرحد هم چلولو.[۱۰۶] د ۱۹۷۸ تر دسمبر پورې د دې اخبار چیف ایډیټر میاګل فروش و او بیا هغه د خپلې بیمارۍ له وجې دا اخبار د خپل یو نزدې ملګري احقر سرحدي زوی جاوید اختر ته حواله کړو.[۱۰۷]

## سراج کوهستانی

دا رساله په ۱۹۷۴کال کې د مضروف سلام په ادارت کې له مینګورې نه په دوه ژبو اردو او پښتو کې چاپ کېدله.[۱۰۸]

## پهول

دا میاشتینۍ رساله په ۱۹۷۵کال کې له مینګورې نه شروع شوه، شمس فخري د دې ایډیټر و.[۱۰۹]

## بلدیه

میونسپل کمیټۍ مینګورې په ۱۹۷۸کال کې د بلدیه په نوم یوه رساله چاپ کړه. دا رساله په اردو ژبه کې چاپ کېدله او په دې کې به د بلدیې د ترقۍ په حواله خبرې اترې چاپ کېدلې.[۱۱۰]

## مرغزار

له ګورنمنټ ګرلز ډګري کالج مینګورې نه دا کلیزه علمي او ادبي رساله په ۱۹۷۸ کال کې شروع شوې وه. دا رساله په درېو ژبو اردو، پښتو او انګرېزۍ کې چاپ کېږي. په تعلیمي ادارو کې د سوات د جهانزېب کالج د ایلم رسالې نه ورستو مرغزار دویمه رساله ده.[۱۱۱]

## کوه سجن

په ۱۹۸٦کې فضل ربّي راهي او کریم جان مجاهد د "کوه سجن" په نوم یوه میاشتینۍ رساله شروع کړه. دا رساله به په درېو ژبو اردو، پښتو او کوهستانۍ کې چاپ کېدله. د دې پینځه روپۍ قیمت و. فضل ربي راهي به د دې کتابت پخپله کولو.[۱۱۲] د دې رسالې امتیازي خصوصیت دا دی چې په وړومبي ځل د سوات په ادبي صحافت کې کوهستاني ژبه په دې رساله کې په نظر راځي.

## سوات

فضل ربي راهي او فضل محمود روښان د "سوات" په نوم یوه رساله په ۱۹۸۷کال

کې شروع کړه. دا رساله په اردو ژبه کې چاپ کېدله. د دې پينځه ګڼې چاپ شوي دي او بيا دا رساله بنده شوه.

له دې وروسته په ۱۹۸۷کې د محکمه سماجي بهبود له خوا يوه رساله سماجي بهبود شروع شوه. دا به بغير د څه قيمت نه خلکو ته ورکولی شوه. هم په دې کال د پېراميډيکل انسټي ټيوټ سيدو شريف له خوا د "کونپل" په نوم يوه رساله شروع شوه. د سوات سکاوټس له خوا "سوات سکاوټس" په نوم رساله په ۱۹۸۸کې چاپ شوه. په ۱۹۸۸کال کې يو بل زلمي انورعلي د "ګليکسي" په نوم يوه رساله په انګرېزۍ ژبه کې ميدان ته راوويستله او د ۱۹۸۸ د ستمبر پر ۱۵ احسان الحق حقاني يو بل اخبار "صدائی دل" له سوات نه شروع کړ. دا اخبار به اول دوه هفتې پس او بيا مياشت پس چاپ کېدلو. د ۱۹۸۹ د ستمبر په ۲۵ ميا سيد عمر ناصح له سوات نه د صدای سوات په نوم هفته وار اخبار شروع کړ. ممتاز احمد بونيري په ۱۹۸۹کې له سوات نه هفته وار اخبار صدای مالاکنډ شروع کړ. د ۱۹۹۳ د اګست په وړومبۍ ميا سيد عمر ناصح له سوات نه وړومبی روزانه اخبار شروع کړ. په ۱۹۹۴کې سيد بدرزمان صبا د مالاکنډ ټائمز په نوم په اردو ژبه کې يو اخبار شروع کړ. دا د ټول مالاکنډ ډويژن نمائنده اخبار و، دا اخبار به هفته وار چاپ کېدلو، په ۱۹۹۳کې برهان الدين حسرت د "ترږون" په نوم يوه پښتو رساله شروع کړه. د سوات د پرائېوېټ سکولز مينيجمنټ ايسوسي اېشن له خوا د ستېرز انټرنيشنل په نوم يوه رساله به چاپ کېدله. د دې ايډيټر برهان الدين حسرت و.[۱۱۳] په وړومبي اګست کال ۱۹۹۳کې ميا سيد عمر ناصح له سوات نه روزنامه سلام شروع کړه او لږه موده وروستو دا بيا بند کړی شه. په ۱۴ اګست ۱۹۹۴ له سوات نه د روزنامه شمال په نوم يو اخبار شروع شو.[۱۱٤] په وړومبۍ جنورۍ ۱۹۹۵ له سوات نه روزنامه ازادي اخبار شروع شو. ممتاز احمد صادق د دې اخبار چيف ايډيټر و او صلاح الدين د دې ايډيټر و.[۱۱٥] په وړومبي نومبر ۲۰۰۰ کې له سوات نه د وادي سوات په نوم يو هفته وار اخبار شروع شو.[۱۱٦] په دې دور کې د صحافت سرسري جايزه وړاندې کړی شوه.

## اسلامي ادب

د سوات د پښتو ادب د وړومبي دور موضوعات تقريباً ټول اسلامي دي. بيا وروسته ورو ورو د ادب په موضوعاتو کې وسعت راغلی، خو بيا هم په اسلامي موضوعاتو کتابونه چاپ شوي دي. په دې دور کې چې کوم کتابونه په اسلامي موضوعاتو چاپ دي په هغو

کتابونو کې درې قسمه موضوع ګانې ډېرې زياتې دي. په دې کې د حج سفرنامې او د حج مناسک او د فضايلو متعلق کتابونه دي، لکه د تاج محمد خان زېب سر " زما د حج سفر او مناسک د حج"[١١٧]، او په پښتو رساله کې د فضل الرّحمٰن فيضان ليک "زما د حج سفر"[١١٨] او له دې نه علاوه پيغمبرپاک ته د عقيدت پېرزونې وړاندې شوي دي او په تصوّف هم بحثونه شوي دي. د پيغمبر پاک په سيرت او ژوند باندې يو منظوم کتاب "محسن انسانيت"[١١٩] ليکل شوی دی. د دې نه علاوه په دې دور کې چې کوم نعتيه کتابونه چاپ شوي دي هغو کې څه اهم کتابونه دا دي: صلّو عليه و اٰله[١٢٠]، روحاني غذا[١٢١]، ګلدسته حجاز نعتونه[١٢٢]، ګلشن هاشمي[١٢٣]، ګلستان مصطفیٰ[١٢٤]، د عقيدت ګلونه[١٢٥] وغيره. د اسلامي اعمالو په فضيلتونو باندې هم کتابونه چاپ شوي دي، لکه د الحاج عبدالغني منظوم کتاب چې نوم يې دی" ښکلی کتاب د بسم الله او الحمدلله فضيلتونه[١٢٦]، له دې نه علاوه د حديثونو منظومې ترجمې او د اسماالحسنیٰ منظوم فضيلتونه په "تازه ګلونه[١٢٧]" کې موندلی شي.

## پير مرشد

پير او مرشد د سوات د پښتو ادب په موضوعاتو کې يوه موضوع ده چې په څه نه څه حواله د هر دور په ادب کې په نظر راځي:

پـــــــيره بابـــــــا پــــــه ډاګ يـــــــې ولــــــه
پــــــه تــــــا تيريـــــــږي دېوانـــــه بابـــــا لـــــه ځينـــــه[١٢٨]

اګر که په دې دور کې کم دی خو بيا هم د پيرۍ مريدۍ ذکر په څه نه څه شکل کې موندلی شي، لکه د "پيرمرشد" تر عنوان لاندې دا نظم:

پيره زما درنه د خو طمع ده زما خو بيا ستا د ليدو طمع ده
زاړه يادونه راته بيا يادېږي ولې چې بيا مې د درتلو طمع ده
د رجب وومه نه ده ستا وومه ده په خوشحالۍ د تېرېدو طمع ده
د پيدائش تاريخ هم دغه لرم ځکه مې ستا د خوښېدو طمع ده
ستا فقيري خوښه وه بيا مې مونده تا ته د ښه نزدې کېدو طمع ده
زه شېر لرمه پير خواجه اجميري لا مې د نورو څه موندو طمع ده[١٢٩]

د دې دور په ادب کې مختلفو پيرانو ته د عقيدت پېرزونې هم وړاندې شوي دي،

لکه یو شاعر خواجه غریب نواز داسې یادوي:

زه خـــو غریـــب یمـــه خـــو تـــه غریـــب نـــواز یـــادېږي
د بـــــې اسرې غریبـــــانو چـــــې همـــــراز یـــــادېږي
زه دې پـــه غـــم د هـــر غریـــب کـــې غـــم شریـــک وینمـــه
د غریبـــــانو د محفـــــل شـــــمع گـــــداز یـــــادېږي[130]

او مست قلندر داسې یادوي:

مســـــت وي قلنـــــدر د قلنـــــدرو نـــــه قربـــــان شـــــم
ډېـــــــر وي زورور د زورورو نـــــــه قربـــــــان شـــــــم
نـــه تـــرې څـــوک پټیـــږي نـــه تـــرې څـــوک څـــه پټـــولی شي
تېـــز یـــې وي نظـــر دې تېـــز نظـــرو نـــه قربـــان شـــم[131]

خو داسې لیکوالان هم شته چې د دې پیرۍ مریدۍ نه خلاف دي او دا د ترقۍ په لار کې یو خنډ گڼي، لکه روغانی چې وایي:

زهـــر چـــې خـــواره شـــو د پـــیري پېشـــوائیت پکـــې
ډېـــر پـــه وړانـــدې تلـــی مســـلمان یـــې وروســـتو پـــاتی کـــړه[132]

پـــه یـــو بـــل ځـــای کـــې روغـــانی پـــه پـــیر مرشـــد داســـې تنقیـــد کوي:

د پـــیر مرشـــد پـــه رنـــگ کـــې خلـــق پـــه تیـــارو کـــې ســـاتي
د انگرېزانـــــو تـــــالي ســـــتې شـــــیطانان ښـــــه پېـــــژنم
ږیـــرې اوږدې کـــړي بیـــا پـــرې خلقـــو لـــه دوکـــې ورکـــوي
دا تـــــش د ږیـــــرې د تســـــپو مســـــلمان ښـــــه پېـــــژنم[133]

د وخـــت پـــه تېرېـــدو لـــه پیرانـــو مریـــدانو سره دا عقیـــدت ورو ورو پـــه کمېـــدو معلومېږي.

## تصوف

په دې دور کې تصوّف اگر چې نېغ په نېغه په ادب کې کم په نظر راځي خو بیا هم د صوفیانو او پیرانو په باره کې تذکرې لیکل شوي دي. په دې کې "تذکره علماء کبّار و مشائخ عظام صوبه سر حد پاکستان"ډېره اهمه تذکره ده.[134] لږه لږه صوفیانه شاعري په

دې دور کې د مختلفو شاعرانو په کلامونو کې موندلی شي، لکه شېر اکبر خان فکري په خپل کتاب "فکري خيالات" کې يوه برخه صوفيانه کلام ته مختص کړې ده.[١٣٥] په دې دور کې په صوفيانو تنقيد هم شوی دی، لکه روغانی چې وايي:

کلـــــه کلـــــه کـــــوم ســـــتا د زړه خــــــبرې صـــــوفي
پـــه نـــور څـــه نـــه خـــو فقـــط ســـتا د شر د يـــرې صـــوفي
ده مجبـــوري چـــې درتـــه وايـــم راشـــه راشـــه نـــژدې
نـــور خـــو پـــه زړه کـــې درتـــه وايـــم لـــرې لـــرې صـــوفي
ســـتا پـــه خلکـــه کـــې بادشـــائي د هلاکـــو پټـــه ده
ســـتا پـــه تســـپو کـــې د تيمـــور زغـــلي لښـــکرې صـــوفي
د شـــباهت نـــه خـــو دې څـــاڅي توقـــع د شـــفقت
تـــه پخـــوې د خپـــل غـــرض جـــادو منـــترې صـــوفي
دا تصـــوف چـــې پـــرې غابښـــونه د جـــابر ماتېـــدل
تـــا پـــرې تېـــره کړلـــې د داســـې خلقـــو ښـــکرې صـــوفي[١٣٦]

وخـت تېرېـدو سره د تصـوف پـه بـاره کـې د خلکـو سـوچ کـې بـدلون راغلـی دی، لکـه روغـانی د تصـوف پـه مقامـاتو کـې کامـل مقـام تـه رسـېدل هلـه ګڼـي چـې سـړی د خپـل درد په وجه د مخلوق دردونه ويني او له مخلوق سره مينه وکړي:

د حسرـــت پـــه مقامـــات کـــې د کامـــل پـــه مرتبـــه شـــو
لـــه خپـــل ځـــان يـــې مـــخ راســـتون شـــو پـــه طـــرف د مخلوقـــات
د خپـــل درد پـــه برکـــت چـــې د مخلـــوق دردونـــه وينـــي
روغـــانی د خـــدای ولي دی شـــاعري يـــې کرامـــات[١٣٧]

دوسـت محمـد خـان کامـل هـم پـه تصـوف کـې د مخلـوق مينـه يـو بنيـادي خـبره ګڼي. پـه دې اړه هغـه د رحـمان بابـا پـه تصـوف کـې لـه انسـانيت سره د مينـې پـه حوالـه داسې ليکي:

د رحـمان بابـا پـه حيثيـت د صـوفي د عظمـت راز پـه خـوږې او لـه خـوږه ډکـې شـاعرۍ کـې د خـدای او د هغـه د مخلـوق سره د بـې انتهـا مينـې او محبـت پـه اظهـار کـې دی ـ او دا (خـدای او د هغـه د مخلـوق سره محبـت) د تصـوف داسـې اصـول دي چـې مـذهب سره

> د مکمل مطابقت او د ډېرې پاکيزګۍ او عظمت له کبله يې په حقه عام قبوليت موندلی دی.[۱۳۸]

له دې ټولو خبرو مونږ دې نتيجې ته رسو چې د سوات د پښتو ادب په دې دور کې د تصوف په باره کې تنقيدي خيالات مخې ته راغلي وو او د تصوف په مهمو خبرو کې انسان دوستي شامله شوې وه.

## د خيال ازادي او مساوات

د رياست له ادغام نه وروسته ټول خلک د قانون په نظر کې برابر شول او خلکو ته د خيالاتو د اظهار ازادي مېلاو شوه کومه چې د رياست د حکمرانانو په وخت کې خلکو ته نه وه حاصله.[۱۳۹] د سوات د رياست له ادغام نه بعد هم په غير جمهوري حکومتونو کې خلکو ته د اظهار ازادي نه وه حاصله، لکه په "درانه بوټان" نومې نظم کې يو شاعر داسې ليکي:

بيا د توپو خلې د کور په لور شوې
هره کوڅه کې ساډوبي خوره شوه
ټوله فضا سهم نيولې ښکاري
درانه درانه بوټان منډاو کې ګرځي
اوس به خبرې کنايو کې کوو
اوس به سندرې اشارو کې وايو
د غلامۍ په "نظم و ضبط" به ګرځو
په هتکړو به خپل لفظونه تړو
بې واکه خلې به مو په واک کې ساتو
مورچې مو جوړې شوې د غولي مينځ کې
بيا سنګينونه نغري له راغله
د سرحدونو دې الله مالک شي[۱۴۰]

خو بيا هم لکه څنګه چې په دې شعرونو کې بيان شوي دي، ليکوالانو په اشارو او کنايو کې خبرې کړي دي.

## لوښي او کالي پټري

په سوات کې استعمالېدونکي مختلف قسمه لوښي او کالي پټري هم د دې دور په ادب کې په نظر راځي. په هغې کې څه لوښي او کالي پټري دا ذکر شوي دي. کټوی، څمڅی، کونډی، کاسه، خانک، تونبی، خمبه، خمبگی، اټ، گړونج، مشوگی، نغری، کڼاوې، کټ، کټکی، پالنگ، ورونه، دروازې، تمبگی، بنی، توره، غشی، شل، سول، ډال، ټوپک، مچوغڼه، پېکړې، اوگی، چارگل، ډیډه، پېزوان، باهو، نتکی، بائې، سبری، مندری، پوړ، گوتی، وخی، موټکي، تعویذونه، ډیوټ، ډیوه، پڼې، کوپی، څپلی، جغاول، وغیره.[141]

د کالو ذکر په ټپو کې ډېر شوی دی، لکه دا ټپه:

د کـــــــــالو ډکـــــــــه پـــــــــــرې راپریوځـــــــــــه

کــــه پــــه شـــــېبره تبـــه پـــروت وي جـــوړ بـــه شــــینه

ښځه خپل کالي ډېر په احتیاط ساتي او خپل گور کفن یې گڼي، خو چې کله پښتون له دښمن سره لاس په لاس شي، نو پښتنه ښځه داسې چغه وکړي:

دښـــــــمن پـــــــه سرو گولـــــــو کـــــــې پـــــــټ کـــــــړه

کـــه کـــالتوس خـــلاص شـــو لـــونگین بـــه گاڼـــه کړمـــه[142]

نته یا نتکی د پوزې یو کالی دی، یو شاعر یې داسې ذکر کوي:

چـــــې پـــــه تـــــوره پـــــه خنجـــــر پرېـــــوتي نـــــه وو

پـــــــــه وړه نازکـــــــــه نتـــــــــه پرېوتـــــــــل[143]

کالي زیاتره د سرو زرو او د سپینو زرو استعمال شوي دي، لکه په دې ټپه کې د سرو زرو د گوتو ذکر شوی دی:

مالــــــــــه پینځـــــــــه گـــــــــوتې د سرو کـــــــــړه

پــــه دواړه لاســــه بــــه دې کــــور جــــارو کومــــه

د ثقافت او تمدن له ارتقاء سره په کالو کې هم د خپل ذوق او شوق مطابق ترقي شوې ده، کله چې د سرو زرو رواج عام نه و، نو زیات کالي به د سپینو زرو استعمالېدل او چې کله د سرو زرو کالي عام شو نو اوگی، پېکړې، پانزېب، دواگی، جغاول او د مورانونو رواج ختم شو. اوس دغه کالي ډېر کم مېلاویږي، د دې پر ځای د سرو زرو کالي کانپور، جومر، ټیک، دړی، امېل او نیمکی راووتې دي. د سپینو زرو له کالو نه علاوه به زنانو په کمیسونو د سپینو زرو پټري او مری په داسې انداز لگولې لکه چا چې په کمیس د سپینو

زرو ګلکاري کړي وي، ان چې د کميس تنۍ او بټنې به هم د سپينو زرو وې. د سپينو زرو په کالو کې له ټولو نه مهم کالی اوګۍ وه، اوګۍ به د غاړې کالی و، چې په نيمه دايره کې به د پړي يا وندني په شان تاو راتاو وه،په دې ټپو کې د اوګۍ ذکر شوی دی:

اوګـــــــــــــــــی د غـــــــــــــــاړې بنـــــــــــــــديوان دی
زه بنديوانـــــــــــه د اشـــــــــــنا د غـــــــــــاړې يمـــــــــــه
اوګـــــــــــــــی پـــــــــــه غـــــــــــــاړه جينــــــــــــــی لاړه
پرېـــــــــړده چـــــــــې لاړه مېلمنــــــــه بـــــــه د چـــــــا وينـــــــه
شـــــــــال يـــــــــې پـــــــــه سر اوګـــــــــی پـــــــــه غـــــــــاړه
ګـــــــــودر تـــــــــه لاړه عاشـــــــــقان رنځوروينـــــــــه
ولـــــــــې بـــــــــه زه ورپســـــــــې نـــــــــه مـــــــــرم
اوګـــــــی پـــــــه غـــــــاړه مـــــــازيګر ګـــــــودر تـــــــه ځينـــــــه

يو قسم اوګۍ به د پړي په شان تاو راتاو وه او دننه به ډډه وه، لکه په دې ټپه کې ورته اشاره شوې:

ډډه اوګـــــــــــــی غنـــــــــــــدل يـــــــــــــې غـــــــــــــاړه
زه د دلال نـــــــــــه پـــــــــه نېســـــــــتی راغلـــــــــی يمـــــــــه

په ډډه اوګۍ کې به زر کم لګېده، نو دا به اکثر غريبانانو خلکو جوړولې او مالداره خلکو به کوټلې اوګۍ جوړولې.

اوګـــــــــــــی کـــــــــــوټلې کـــــــــــړه زرګـــــــــــره
زه د ځلـــــــــــورو ورونـــــــــو خـــــــــور يـــــــــم قدرمنـــــــــه

يو قسم اوګۍ به داسې وه چې هغه به تاو راتاو وه خو په مينځ کې به يې د چارګل په شان ګل لګېدلی و، هغې ته به يې چارګل اوګۍ ويله:

مـــــــــور يـــــــــې پـــــــــه چـــــــــم کـــــــــې شـــــــــوملې غـــــــــواړي
لـــــــــور يـــــــــې چارګـــــــــل اوګـــــــــی پـــــــــه غـــــــــاړه ګرځوينـــــــــه

يو بل قسم اوګۍ ته به يې شتۍ اوګۍ وې، دا به د سپوږمۍ په شان پلنه وه او ټوله سينه به يې نيولې وه او په سينه به د امېل يا د بل کالي ځای نه و، لکه په دې ټپو کې چې يې ذکر دی:

تور لونگین په ژړا راغی
سپینه اوگۍ په سینه ځای نه راکوینه
یار مې د غشو جنگ له لاړه
زه به شتې اوگۍ د ډال په ځای لېږمه

له اوگۍ نه علاوه د غاړې په کالو کې جغاول، دواگۍ، امېل او تعویذ راځي. جغاول د سپینو زرو کالی دی چې له اوسني امېل سره سمون خوري، خو په اوږدوالي کې له امېل نه لنډ وي، ځکه خو وایي:

د جغاول مزی دې لنډ کړه
لکه گواښ گرندی د سینې مینځ له راځینه
خدای دې وړه په مرگي مړه کړه
چې جغاول دې کشرې خور ته پاتې شینه

جغاول به عموماً د مالدارو ښځو په غاړو وه، ځکه خو وایي:

که دې جغاول په غاړه نه وی
د ملک لور به درته چا ویلي وونه

دواگۍ د سپینو زرو واړه واړه تصویرونه وي چې په دوه مزو کې غبرگ پیلي شوي وي او په مینځ کې یې پلنه غټه او ښکلې گل کړې نامه وي. د دواگو امېل ډېر اوږد وي، لکه چې وایي:

د پسرلي د سبله راغله
د دواگو امېل یې لگي په ورانونو
د سینې جړق مې ورله ورکړه
د دواگو مې ورله ویسته کوشېرونه

تعویذ له سرو سپینو او زیړو نه جوړ وي. دا یو پلن څلور گوټه ډبي شانې وي، په دې کې عموماً خلک د پیریانو یا د نظر وغیره تعویذ هم بندوي. دا هم ډېر خوند ناک کالی دی، ځکه خو وایي:

د تعویذگي مزی دې لنډ کړه
په عاشقانو دې زیړې اولگونه
ما به د غاړې تعویذگی کړې

عـــــالم بـــــه وايــــــي يــــــار پــــــه غــــــاړه گرځوينــــــه

امېل د غاړې يو عام کالی دی چې له سرو زرو نه جوړېږي، ځينې پېغلې يې له لونگو او رنگا رنگ مرو نه هم جوړوي:

امېـــــــل د هــــــــر چـــــــاسره خونــــــــد کــــــــړي

زمـــــــا د يــــــــار پــــــه ســـــــينه کــــــړي اشــــــارتونه

د پوزې په کالو کې پېزوان هم ډېر مشهور کالی دی، لکه په دې ټپو کې چې ياد شوی دی:

شـــــــوندې بـــــــه يـــــــې ولـــــــې پســـــــتې نـــــــه وي

چـــــې د پېـــــزوان ســـــيوری پـــــرې اوړی ژمـــــې وينـــــه

پـــــــه چـــــــيلم راغلـــــــه کـــــــش يـــــــې ورکـــــــړه

د لشـــــــه دار پېـــــــزوان يـــــــې شـــــــنه لـــــــوخړه ځينـــــــه

شـــــــوندې مـــــــې دې چـــــــيلم تـــــــه ورکـــــــړې

دننــــــــه زړه مــــــــې د پېـــــــزوان مېـــــــرمن ســـــــيزينه

نتکۍ هم د پوزې يو کالی دی چې د پېزوان په څېر وي، خو لږه وړه وي. دا د پوزې گسې سپېږمه کې اچول کېږي، دې ته د تار يا د زرو جلب وايي چې د اننگو د پاسه په غوږ پوری تړل شوی وي.

نـــــــــن مـــــــــې د يـــــــــار د راتلـــــــــو ورځ ده

ځکـــــــه نتکـــــــۍ پـــــــه پـــــــوزه لکـــــــه گرځومـــــــه

نتکـــــــۍ دې لنـــــــده جلبـــــــۍ کـــــــړه

مالـــــه پـــــه لاســـــو کـــــې راځـــــي کســـــکر بـــــه شـــــينه

نتکـــــــۍ دې سره بڅـــــــري نـــــــولي

د چـــــــا يـــــــې وســـــــوې بوســـــــاړې د چـــــــا ټوپونـــــــه

مـــــــا ورتـــــــه نـــــــه وې شرمېدمـــــــه

د سرې نتکـــــــۍ سره پېـــــــزوان مـــــــزه کوينـــــــه

چارگل هم د پوزې يو کالی دی چې عموماً د سپينو زرو وي. دا د مېخکي په شان وي خو په جسامت کې له مېخکي نه غټ وي. په دې کې ښکته څلور پرې وي او بره دنگ وي او غمی پکې لگېدلی وي، لکه په دې ټپو کې چې يې يادونه شوې ده:

ســــــــــتا د چارگـــــــــــل څلــــــــــور پـــــــــــرې دي
څلـــــور پــــــرې نـــــورې کـــــړه چــــــې زه دروخېژمـــــــه
ســـــــتا د چارگــــــــل پـــــــه پــــــرو غـــــــوخ شـــــــوم
وړوکـــــــی لــــــوی شــــــوم جـــــوړ مــــــې نــــــه شــــو پرهرونـــــه

مېخکی هم د پوزې یو کالی دی، چې په جسامت کې له چارگل نه وړوکی وي. دا اکثر د سرو زرو جوړ وي، دا د چارگل ترقي یافته صورت دی.

ســــــــــــــــــور مېخکيـــــــــــــــه بختـــــــــــــــــوره
د پـــــــــــوزې سر دې پـــــــــــه دفـــــــــــتر اورســـــــــــېدنه
سره مېخکـــــــــــــــي نـــــــــــــــرۍ دې پـــــــــــــــوزه
پــــــــه لارې رو ځــــــــه چــــــې دې اوکــــــــړم دیدنونـــــــــه

کله چې د سپینو زرو کالي عام وو، نو د سر په کالو کې موټکي او مورانونه به ښځو ډېر په شوق استعمالول.

پـــــــه مـــــــا دې وار د ځـــــــــوانۍ تېــــــــر کـــــــــړه
ســـــــتا دې را نـــــــه شي د دکـــــــن نــــــــه مورانونـــــــه[١٤٤]

دړۍ او ټیک د سر کالي دي، دړۍ د سر په وېښتو کې کلکه وي او ټیک په تندي ځانگي.

دا ټیـــــک دې پـــــاس پـــــه تنـــــدي خونـــــد کـــــړي
لکـــــه ســـــپوږمۍ چـــــې پـــــه اســـــمان پړقـــــا کوينـــــه
ټیــــک پــــه تنــــدي چارگــــل پــــه پــــوزه
پــــه لنــــډه زنــــه دې شــــين خــــال مــــزه کوينــــه
ټیـــــک پـــــه تنـــــدي پېـــــزوان پـــــه شـــــونډو
اوگـــــۍ پـــــه غـــــاړه د جينـــــۍ مـــــزه کوينـــــه
ټیــــــک رالـــــــه ښـــــــه جـــــــوړکړه زرگــــــره
نـــــاموس بـــــه ســـــتا وي خونـــــد بـــــه مـــــا سره کوينـــــه
ټیـــــک پـــــه تنـــــدي پېـــــزوان پـــــه پـــــوزه
ســــــيکهان دې بــــــوزه زه دې روغ لېــــــونی کړمــــــه[١٤٥]

د ټیک پر ځای اوس د جومر رواج زیاتیږي.

جـــــــومر يــــــــې پــــــــاس پـــــــه تنــــــــدي ځـــــــانگي
امېــــــل پـــــه غـــــاړه گرځـــــوي رنځـــــور يـــــې کړمـــــه

د غوړونو د کالو رواج په پښتنو کې ډېر زيات دی، لکه په تاريخ رحمت خاني کې يې ذکر شوی و، چې نارينه وو به هم د سرو يا سپينو والۍ په غوږ کولې. ماشومان او نارينه په غوړونو کې بادرۍ او د سرو زرو مزي استعمالوي. د غوړونو مشهور کالي دا دي: مندرۍ، بادرۍ، جونکۍ، لښتۍ، درونه، ډيډې ا و نور. په دې ټولو کې لښتۍ ډېر زوړ کالی دی، دا د چنار د گل په شان غونډ اوږد او لشې لشې وي.

لښــــــــــــــتۍ دې سره بڅــــــــــــــــري نـــــــــــــــولي
زرگـــــــره نــــــه يــــــم چـــــــې بڅـــــــري ټولومـــــــه
پـــــــــــه تعويــــــــــــذونو کـــــــــــــې دې اور دی
پـــــه سرو لښـــــتو کــــــې دې انگــــــار دی مــــا ســـــيزينه

د غوړونو بل کالی بادرۍ دي، لکه چې وايي:

پــــــــــــه بالښــــــــــــــت سر راسره مـــــــــــــــه ږده
زمــــــا پـــــــه غـــــــوږو دي بــــــادرۍ چيچـــــــل کوينـــــــه

موندرۍ هم د غوړونو يو کالی دی.

يـــــو مـــــــې پېـــــزوان بـــــــل مـــــــې چارگـــــــل دی
د لشـــــــه دارو منـــــــــدرو زه پـــــــه طمـــــــع يمـــــــه

د غوړونو بل کالی ډيډې دي.

ډيــــــــډو لـــــــــه غبرگـــــــــې ټـــــــالۍ ورکـــــــــړه
زمـــــا د ورور دنيــــــا بــــــه خـــــــدای پــــــوره کوينـــــــه

باهو هم يو زوړ کالی دی، دا د سپينو زرو يو پلن بنگړی وي او ښځې يې په لاس کوي.

بــــــاهو پـــــــه لاس گـــــــوتې پـــــــه گوتـــــــه
زرگـــــره ټولـــــه دې يــــــارۍ تـــــه جــــــوړه کړمـــــه
ميمـــــــــونې ورور تــــــــــه جـــــــــواب وکـــــــــړه
پـــه صــــندوقچي کـــې مـــې بـــاهو دی زنـــگ بـــه شـــينه
بــــــاهو مــــــې وه پــــــه لاس مــــــې نـــــه کـــــړه
اوس بـــــه د يـــــار کـــــلي تـــــه ځـــــم تـــــش مړوندونـــــه

د لاس بـــــــــــاهو مـــــــــــې ابـــــــــــو يـــــــــــوړو
پـــــــه غـــــــم شريکـــــــه يـــــــاره نيســـــــه گودرونـــــــه

د باهو د رواج له کمېدو سره بيا بنگړي عام شوي دي، لکه په دې لاندې ټپو کې چې راغلي دي:

لېچـــــــې يـــــــې ډکـــــــې لـــــــه بنگـــــــړو کـــــــړي
پـــــه ســـــيل روانـــــه شـــــوه د يـــــار ديـــــدن تـــــه ځينـــــه
بنگـــــړي مـــــې ســـــتا پـــــه کـــــټ کـــــې مـــــات شـــــول
اوس نارينـــــــه شـــــــه راتـــــــه ډک کـــــــړه مړوندونـــــــه
پـــــــه خـــــــوب اوده مـــــــې ځکـــــــه وېښ کـــــــړې
يـــــــاره زمـــــــا د لاس بنگـــــــړي راغـــــــلي دينـــــــه
خدايـــــه پـــــه پېغلـــــو کـــــې مـــــې پـــــټ کـــــړې
چـــــــې هـــــــر طـــــــرف تـــــــه د بنگـــــــړو شرنگـــــــا راځينـــــــه
بنگـــــــړي ځـــــــه ښـــــــکته کـــــــړه ځـــــــه پورتـــــــه
چـــــــې پـــــــه خـــــــالي مړونـــــــد دې سر ولگومـــــــه
دا نيمـــــــه شـــــــپه ده بنگـــــــړي شـــــــړنگ کـــــــړي
نـــــــامړدې وتـــــــړه بنگـــــــړي پـــــــه روميـــــــالونو
کـــــــور دې نـــــــزدې کوځـــــــه دې لـــــــرې
ســـــتا د بنگـــــړو شرنگـــــا مـــــې خـــــوب تـــــه نـــــه پرېږدينـــــه

لاس خوندی(لاس وندی) هم د بنگړو په شان د لاس يو کالی دی. دا له رنگا رنگ مرو نه سازيږي او جينکۍ يې ډېره په مينه په لاس کوي.

بنگـــــړي د کـــــټ پـــــه غـــــوټۍ مـــــات کـــــړه
زمـــــونږ چمگـــــې لـــــه لاس خونـــــدي راغـــــلي دينـــــه

د پښو کالو ته پېکړه يا پانزېب وايي. پېکړه د اوگۍ په شان تاو را تاو او په مينځ کې ډېره وي. د ډېرې اوگۍ مينځ خالي وي او د پېکړې په مينځ کې وړې وړې گيټۍ وي چې له قدم اخستو سره شړنگېږي، لکه په دې لاندې ټپو کې چې يې ذکر شوی دی:

پـــــــــه پېکـــــــــړه کـــــــــې اوبـــــــــه راوړه
کـــــه تـــــږی نـــــه يـــــم ســـــتا د مينـــــې بـــــه يـــــې څښـــــمه

پـــــــه بلـــــــــی رو ځــــــه پښــــــې دې پريوځـــــــه
د پېکــــــــــړو شـــــــــــڼا دې کلـــــــــــی خبروينـــــــــه
د پېکـــــــــــــــړو شـــــــــــــــــڼا راخيــــــــــــــژي
راتــــــــه ښـــــــکارېږي جينکـــــــی ابــــــو لـــــــه ځينـــــه

پانزېب هم د پېکړو په شان د پښو يو کالی دی، دا د سپينو زرو يوه جالداره پټه وي چې د پېکړو په شان په دواړو پښو کې استعمالېږي، لکه په دې ټپو کې چې وايي:

ســـــــور مېخکــــــی پـــــــه پـــــــوزه ســـــــور کــــــړه
پانزېـــــب پـــــه پښـــــو کـــــړه پـــــه نـــــاز کېـــــده قدمونــــه
مالـــــــــــــه پانزېـــــــــــــب پېکـــــــــــــړه راوړه
چـــــې پـــــه همزولـــــو کـــــې ملالـــــه ناســـــته يمــــه
پېکـــــــــړه راغلـــــــــه پـــــــــه ژړا شـــــــــوه
مالـــــه پانزېـــــب پـــــه پونـــــده ځـــــای نـــــه راکوينـــــه[١٤٦]

په دې لاندينو ټپو کې د ځينو لوښو او کالو پټرو نومونه راغلي دي:

رب دې زمـــــــــونږ د کـــــــــور کنـــــــــدو کـــــــــړه
چـــــې هـــــر ســـــاعت دې پـــــه مـــــوری کـــــې لاس منډمــــه
خلـــــــک پېـــــــزوان گړنـــــــدی بـــــــولي
مـــــا پـــــه نتکـــــی د قـــــلا بـــــرج و نړونـــــه
د پېشـــــــمني اورونـــــــه بـــــــل شـــــــول
ورتـــــــه راکـــــــوز شـــــــو زنگېـــــــدلي پېزوانونـــــه
چراغـــــــــــه بلـــــــــــې لمبـــــــــــې وکـــــــــــړه
ورســـــتی ديـــــدن دی بيـــــا بـــــه نـــــه وي ديدنونـــــه
يـــــار مـــــې پـــــه زېـــــن کـــــې راتـــــه کـــــوږ شـــــه
د پښـــــو څـــــوکې لگـــــوم خلـــــه ورکومـــــه[١٤٧]

د جامو وينځلو لپاره به يو لرگی استعمالېده، دغه لرگي ته به يې سوباړی ويلو. په دې ټپه کې د سوباړي ذکر راغلی دی:

تـــــه گړنـــــدی وې ځـــــان دې خـــــلاص کـــــړ
پـــــه مـــــا يـــــې وکـــــړل د ســـــوباړو گوزارونـــــه[١٤٨]

د سوباړي ذکر روغانی داسې کوي:

پـــه مـــونږ د چـــا څـــه کـــار دی کـــه پـــه وړانـــدې ځـــو کـــه وروســـتو
د غوښـــې پـــه ځـــای دال خـــورو کـــه پالـــک پـــه ځـــای ورخـــاړی
د بـــرش پـــه ځـــای مســـواک کـــه د قـــالین پـــه ځـــای بـــروزه
شـــیمپو پـــه ځـــای شـــوملی ، کـــه د مشـــین پـــه ځـــای ســـوباړی[149]

په سوات کې دا لوښي لرګي او کلتوري سامان په ورکېدو دی، ځکه چې د دې لپاره خلک د سوات په کليو او باندو ګرځي او دا نعرې وهي چې "زاړه راکړئ، نوي واخلئ". په دې طريقه دا زاړه څيزونه لکه د خرمنې زاړه کټکي او کټونه، ګلدارې الماری، ورونه، درشلې، تونۍ، خمبې، تخته پوشونه، د لرګو زاړه لوښي،کناوې، تورې، غشي، ليندې، پټاقدارې ټوپکې، تماچې او داسې نور ډېر قيمتي تهذيبي او کلتوري څيزونه د ملک نه بهر ويستلی کېږي.[150]

## لرغوني اثار

سوات د مختلفو تهذيبونو کور پاتې شوی دی. د دغو تهذيبونو اثار په سوات کې موجود وو، خو د وخت له تېرېدلو سره دغه اثار ورو ورو په ورکېدو دي. خوشحال خان چې کوم وخت سوات ته راغلی و، نو هغه هم د سوات د لرغونو اثارو ذکر کړی دی، لکه په دې شعرونو کې چې وايي:

پکـــــې لـــــويې منـــــارې شـــــته، بـــــت خـــــانې شـــــته
لـــــوی کوټونـــــه حـــــوېلۍ د زمـــــانې شـــــته[151]

د ســـــوات پـــــه ملـــــک کـــــې روغـــــې حـــــوېلۍ دي
پـــــه هـــــر کـــــور کـــــې ګلعـــــذارې ســـــهېلۍ دي[152]

لکه څنګه چې مخکې ويل شوي، سوات د بدهـ مت يو لوی مرکز پاتې شوی او د بدهـ مت دغه اثار اوس هم په سوات کې موندل کېږي. د دې لرغونو اثارو ذکر هم د سوات په ادب کې موندلی شي،لکه په دې نظم کې چې وايي:

دا نړېـــــــدلې ســـــــټوپا
او قـــــط پـــــه قـــــط تختونـــــه

د لـــــوی فنکـــــارو گوتــــو
د گټـــــو جــــوړ نقشــــونه
د بدهــــ مـــت هـــر پیغمــــبر
بـــــه د دې نـــــور د کـــــوره
د محبـــــت پـــــه ربـــــاب
د امـــن ســـاز پورتـــه کـــو[153]

او په سوات کې چې دا زاړه اثار په کومه طریقه برباد کړی شول د هغې په باره کې داسې لیکي:

خــــو د وختونـــــو اوگــــو
درانــــه رښــــتیا د بـــــدها
تـــر ډېـــرې لـــرې مـــودې
د اوړلـــو تـــوان نـــه لـــره
نـــو وخـــت پـــه ډډه واوښـــت
ډېـــرې ابـــادې ســـتوپې
ښـــکلې ښائســـته بـــت کـــړې
د کاغـــــذي گلونـــــو
پـــه "گـــل کـــدو" بـــدل شـــوې
د "ادهیـــانې" بـــت کـــړه
د بـــت کـــړې کنـــډرات
نـــن پـــه نـــزدې گاونـــډ کـــې
د شـــنو پټـــو پـــه پولـــه
بـــس د یـــو لارې پـــه حـــد
غونـــډی جومـــات لـــري اوس
او چـــې پیېنځـــه وختونـــه
د منـــــارو د څوکـــــو
د لـــــوی اللـــه د وحـــدت
د محمـــــد د عظمـــــت
د رښـــتیا غـــږ پورتـــه شي

نـــــو د بـــــدها روح تـــــه
د زړه ســـــکون مـــــېلاو شي
د تهـــذیب مـــات زنځـــیر تـــه
نـــوی تـــــړون مـــــېلاو شي
خـــو ســـنګ پـــارې د بـــدها
چـــا پـــه بـــازار خرڅـــې کـــړې
چـــا پـــه جنـــون د مـــذهب
تـــرې ســـترګې اوویســـتلې
چـــا د غـــزا پـــه نامـــه
تـــرې پـــوزه ماتـــه کړلـــه
چـــا د جنـــت پـــه طمـــع
ورلـــه غوږونـــه پرېکـــړل
ګنـــي بـــدها بـــه هـــم نـــن
دغـــه ربښـــتیا د کـــمال
دغـــه بازګشـــت د بـــلال
لکـــه د ســـاز اورېـــده
د کـــوم ربښـــتیا د پـــاره
چـــې هغـــه ځـــان ملنـــګ کـــړه[۱۵٤]

د سوات په لرغونو اثارو له ټولو نه زیات کار د اټلي د لرغونپوهنې مشن کړی دی.

## د پښتنو نفاق

د پښتنو د بې اتفاقۍ چغې نعرې د پښتو ستر شاعر خوشحال خان خټک هم ډېرې وهلي، خو هېڅ اثر یې نه و کړی. د پښتنو د نفاق په وجه چې پښتانه له کومو جنګونو او نورو ټولنیزو شخړو سره مخامخ دي د هغې په باره کې داسې ویل شوي دي:

چـــــې نــــا توانــــه د پښـــــتو د وحـــــدت جـــــړ وي
پښـــــتانه بـــــه تــــــل پـــــه سرو وینـــــو ککـــــړ وي
د پښـــــتو د ننـــــګ څـــــادر چـــــې پـــــه سر نـــــه کـــــړي
لکـــــه مـــــړی بـــــې کفنـــــه پـــــروت لغـــــړ وي[۱۵۵]

د پښتنو نفاق په عمومي توګه په پښتو ادب کې ډېر ژړلی شوی او دغه وجه ده چې د سوات په پښتو ادب کې هم دا مسئله په نظر راځي.

## دود دستور او توهّمات

سوات ځان ته خپل دود دستور لري، د دې ځای د خلکو له ځینو دودونو او وهمونو نه دلته د زړو تهذیبونو پته لګي. دا دودونه، دستورونه او وهمونه څه د مذهب په نوم او څه د رواج په نوم اهمیت لري، لکه د محرم میاشتې لسمه چې ورته په مقامي توګه اسان هم ویلی شي، په قبرونو اوبه اچول، قبرونه نوي کول، په دغه ورځ ژړا کول، د خندا خوشحالۍ نه ډډه کول، ګونګړي پخول او وېشل، خیرات کول، د باران د نه کېدلو په وخت تور مخی کول، په زنانه وو ملکوسکی غورزول، د غلا په وخت کې سندان زوړندول، د ماشوم د ناجوړتیا په وخت پۍ وېشل، د ماشوم د مرګ په وخت په ماشومانو پۍ وریژې خورول، د ناجوړتیا په حالت کې کونځلې وېشل، د تبو د علاج لپاره بوټي ویستل، د تور څادرختم کول، د خبرې یادولو لپاره ګوته تړل یا د رومال یا د څادر وغیره یوې څوکې ته غوټه ورکول، د غولونکي د علاج لپاره ستن په ټوپۍ کې ټکوهل، د هوړې پلي په غاړه کول، د پیریانو د علاج لپاره په ټوپۍاو غاړه تعویونه اچول، د وړوکي د سر لاندې چاړه چاقو اېښودل، د یارانې، محبت او کرکې لپاره کوډې او تعویذونه کول، د دردونو د علاج لپاره د ګډې ګوډۍ اغوستل، د مختلفو سخا دانو لپاره مختلف بوټي استعمالول، د نري رنځ لپاره د سرو اوبه څښل، یولسمې دولسمې کول، په شوقدر کې لیتکي لمبې لګول او پشومپړۍ ګوزارل، د اخترونو په ورځ او د هاړ په موسمونو د مرچوغړو جنګونه کول، د وړوکي په سنتو ښادي کول او پلو ته چای ډوډۍ ورکول، انډیوالې کېښنول او داسې ډېر ولسي او مذهبي دودونه وو چې څه ښه او څه ښه نه وو. د نظر په وخت کې د لارې خزلې راغونډول، د نظري سرې د ښپو چاپي په چاقو وهل، د چیلم اوبه په ګوټونو کې نوستل، باباګان جاروکول، قرانونه ډبول، په جماعت کې پېزار سمول، ایرې نوستل، تورې کټوۍ ورغړول وغیره.[156] د نظر لپاره نظر پاڼه هم لوګی کولی شي. د نظر پاڼې د لوګي کولو ذکر په دې شعرونو کې شوی دی:

داســــــې اوچ او ســــــتغ شـــــوې لکـــــه اوچـــــه بکیاڼـــــه
داســـــې دې پـــــاپۍ نـــــرۍ نـــــرۍ شـــــوې لکـــــه زاڼـــــه
رنـــــګ دې د مـــــخ زیـــــړ ویـــــنم بـــــې توانـــــه راتـــــه ښـــــکارې
راشـــــه چـــــې لـــــوګی کړمـــــه زه تـــــا تـــــه نظـــــر پاڼـــــه[157]

په سوات کې چې کوم نور توهمات یا ړندې عقیدې موندی شي په هغو کې څه دا دي : سترګه رپېدل، د پیشو مخ وینځل او نور او دا پکې هم ویلی شي چې نغری مه وهه مېلمانه به ډېر شي. غلبېل ته ترنګ مه ورکوه قرضې زیاتېږي. دلته د بلا ګانو او دیوانو ذکر هم موندلی شي، لکه وایي په شنه تره کې بلا ده سرې یې په ملا وواهه. د نازکی بابا او د بکرو ګټ په مینځ کې دیوان د خاپېرو سره جنګېدل او چې کله مچۍ د چا په سر وښېږي، نو وایي مچۍ راغله په سر مې وښېده چې دا نن بیا څوک راروان دي. د منګو ماتې غړۍ به د بابا په مزار د موګو پورې په دې غرض تړلې کېدې چې مېښې ورکړي. میا قاسم او پیر بابا ته به خلک تلل او هلته به یې ځانګوتۍ په دې غرض ځنګوله چې ځوی ورکړي، که ځوی به یې وشو خو صحیح وه خو که لور به یې وشوه نو بیا به یې ویل میا قاسم بابا زما په حق کې ویده دی. دا هم یوه عقیده وه چې ګونګی او بګوه چې د کور په خوا کې نعرې وهي نو د کور واله نه څوک مري. د کار د شروع کولو او د سفر باره کې به یې هم د ښو ورځو تعین کولو ځکه چې بعضې ورځې سپېرې وې او په خرابه یعنې سپېره ورځ به له کوره نه راوتل. د نوي کال په شپه به وریژې په دې خیال پخول کېدې چې بیا به ټول کال وریژې خوري. ورغوی خارښت کول، لاس ته د مال راتللو علامت ګڼل کېده. د شکوڼ وزرې کور ته ځکه نه راوړي چې د کور کلې جنګونه جوړېږي، چې څوک به په یو کار پسې روان و او تش منګی به یې مخې ته راغی نو دا به یې ویل چې تش منګی مې مخې ته راغی نو ځکه مې کار و نه شو. دا به هم ویلې شو چې په فلانۍ ډېرۍ کې خزانه ده خو اووه سرې مار پرې پروت دی، چې ماشوم خبرې نه کوي نو وایي میا باچا ورته راولئ چې په خوله کې ورته لاړې تو کړي. په ټک په ټک شهیدې باندې اوبه واړوئ چې باران وشي، چې هلک د چرګ سر وخوري نو د کور مشر مري.[158] دا توهمات د قدرتي منظرونو پورې هم تړل شوي، لکه د سوات کوهستان د یوې لویې ډنډې متعلق دا خبره هم مشهوره ده چې د څوارلسمې سپوږمۍ په شپه په دې کې د سرو زرو کنډولی راښکاره کېږي.[159]

د سوات یو شاعر فضل الرّحمٰن فیضان په خپل کتاب "ګلزار تعویذات" کې لیکي بانګي چې اول بانګ مات کړي یا چرګه بانګ ووایي نو دا خروسنامه دې ورپسې وګوري، که چرې د اتوار یا د چارشنبې په شپه یا ورځ یې ویلې وي نو هغه دې حلال کړي او خیرات دې کړي چې خیر شي ورته. خروسنامه دا ده:

کـــه پـــه شـــپه خـــاص د شـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
را بـــه شي پـــرې مېلمانـــه ځـــان دې تيـــار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه د يکشـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
نـــو خاونـــد بـــه د کـــور مـــړ شي کـــور بـــه خـــوار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه د دوشـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
نېـــک نـــامي بـــه يـــې پـــاک رب پـــه هـــر يـــو کـــار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه د ســـه شـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
رب بـــه دوی تـــه نېـــک صـــالح فرزنـــد اظهـــار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه دچـــار شـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
نـــو بېلتـــون بـــه کـــار پـــه هغـــه کـــور اختيـــار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه دپـــانج شـــنبې بـــانگي چغـــار کـــړي
رب بـــه دوی تـــه خزانـــې او مـــال بســـيار کـــړي
کـــه پـــه شـــپه دجمعـــې بـــانگي چغـــار کـــړي
بنـــد کارونـــه بـــه يـــې ازاد پروردگـــار کـــړي[١٦٠]

چې ځوک به کله رخصتېدل او د دغه کور والا به د هغه لپاره ښه فال نيولو، نو د رخصت په وخت کې به يې ورپسې اوبه گوزارلې او که د هغه نه به تنگ وو، نو ورپسې به يې ايرې گوزارلې[١٦١] او داسې نور هم گڼ توهمات دي چې د تحقيق وړ دي.

## نشه يي توکي (منشيات)

د سوات د دې دور په ادب کې په څه نه څه حواله د منشياتو ذکر هم راځي، لکه په دې قطعه کې د بعضو نشه يي توکو د نقصانونو ذکر شوی دی:

نســـوارو مـــو معـــدو لـــه اوبـــه کـــړی دی طاقـــت
غابښـــونو هـــم د دوي د وجـــې واخســـتو رخصـــت
ســـگرټ مـــو پړپوســـانو لـــه جـــوړ شـــوی دی افـــت
بنـــگ، چـــرس لکـــه بـــلا مـــو اختـــه شـــوې پـــه صـــحت[١٦٢]

د يو نظم په دې بند کې هم د نشې د بدو اثراتو ذکر شوی دی:

هغـــه نشـــه چـــې روغ حالـــت او روغ صـــحت خـــتم کـــړي

گويـــا پـــه بـــل شـــكل د كـــار صـــلاحيت خـــتم كـــړي
دا د پـــوډرو پـــه لوگـــو بانـــدې زيـــړ شـــوي ځوانـــان
نشـــه د دوی د وجـــود نـــه حـــرارت خـــتم كـــړي[١٦٣]

په دې شعر كې هم د نشه يي توكو نقصانونه په گوته شوي دي:

درې څيـــزه مـــو خـــوراک دي بنـــگ ،خشـــخاش او تمـــاكو
دنيـــا پـــه مخښـــې ځـــي مـــونږه پـــه وروســـتو وروســـتو ځـــو[١٦٤]

د نشو پر ضد يو ليكوال داسې پېغام وركوي:

ای د خـــدای ظالمـــه ولـــې زهـــر پـــه جهـــان كـــرې
ولـــې تمـــاكوان كـــرې ولـــې تمـــاكوان كـــرې
تـــا زمـــونږه شـــنې ســـبزيانې ټـــولې لتـــاړې كـــړې
تـــا زمـــونږه سرې خورمـــانی ټـــولې ويجـــاړې كـــړې
تـــا زمـــونږه نيـــازبينې مچـــی ټـــولې كټـــارې كـــړې
ای حـــرص راغســـتيه ولـــې دا فصـــل د زيـــان كـــرې
ولـــې تمـــاكوان كـــرې ولـــې تمـــاكوان كـــرې[١٦٥]

نسوار د نشې د يو عام توكي په توگه استعمالېږي، د دې ذكر هم د سوات په پښتو ادب كې موندل كېږي، لكه دا چې وايي:

پـــه كـــلاس كـــې ناســـت يمـــه وزگـــار لوكـــوټې
راوړه نســـــــــــــــــوار لوكـــــــــــــــــوټې[١٦٦]

د نسوارو په نقصاناتو او مضر اثراتو باندې هم ادبي ليكونه موندل كېږي.

## له حكومتي ادارو نه فرياد

په رياستي دور كې به حكومتي ادارو خپل كار په صحيح طريقه كولو او په مختلفو دفترونو كې به خلكو ته ډېر مشكلات نه پېښېدل، خو چې كله رياست په پاكستان كې ضم شو، نو خلكو د سركاري دفترونو له عملې نه هم سرونه ټكول شروع كړل، نو ځكه د ټولنې حساسې طبقې دا خبرې په ادب كې محفوظ كړې، لكه د روغاني د "بابو صيب" د سر خط لاندې دا نطم وگورئ:

څـــه بـــې رحمـــه شـــان بـــلا ده پـــه دفـــتر کـــې
پـــه ســـینه کـــې څـــه شـــین گـــټ دی د بـــابو صـــیب
منږکـــــانو غونـــــدې خلـــــق پکـــــې نخـــــلي
دفـــتر نـــه دی خـــو یـــو لـــټ دی د بـــابو صـــیب
د رشـــوت مـــال پـــرې وریـــږي حـــرام خـــور دی
د غـــټ پـــیش پـــه شـــانتې څـــټ دی د بـــابو صـــیب
د افسرـــــ او د بـــابو صـــیب شریـــک بېنـــک دی
دا چـــې غـــاږه کـــې واســـکټ دی د بـــابو صـــیب
پتنگـــان تـــرې د ښایســـت پـــه وجـــه تختـــي
ټـــول انـــداز چـــې د گونگـــټ دی د بـــابو صـــیب
پکـــې زړونـــه د عوامـــو پـــولۍ کېـــږي
لگیـــدلی داســـې بـــټ دی د بـــابو صـــیب[۱۶۷]

او دا شان نورې هم ډېرې نمونې په نظر راځي چې د مختلفو محکمو له واکدارانو نه پکې گیلې موندل کېږي.

## صحت او روغتونونه

د ریاست په وخت کې روغتونونه (اسپتالونه) ښه برابر وو او د علاج معالجې سهولتونه په سرکاري توگه عوامو ته موجود وو، خو د ریاست له ادغام وروسته سرکاري ادارې گډې وډې شوې او کارکردگي یې ډېره متاثره شوه، لکه د اسپتال په باره کې د رحیم شاه رحیم دا یو څو شعرونه وړاندې کولی شي:

دا چې لوی یې عمارت دی — دا چـــې صـــفر یـــې حالـــت دی
دا چې ورک پکې راحت دی — دا چـــې ټـــول پکـــې زحمـــت دی
دا چې ژوند پکې افت دی — پکـــې هـــر چاتـــه منـــت دی
چې بیخي پکې غفلت دی — نـــا ممکـــن پکـــې صـــحت دی
د ابو پکې حاجت دی — د هـــر څیـــز پکـــې قلّـــت دی
په خندا پکې دولت دی — پـــه ژړا پکـــې غربـــت دی
هم چالو پکې رشوت دی — مصـــیبت دی مصـــیبت دی
داروگان پکې خرڅیږي — بابوگـــان پکـــې څربیـــږي[۱۶۸]

یو بل شاعر "د مریض فریاد" تر سر خط لاندې لیکي چې ډاکټر په سرکاري روغتون (هسپتال) کې مریضان نه ګوري، خو خپل شخصي کلینیک ته راتلو ته یې اماده کوي:

مـــا بانـــدې اټیـــک خـــو یـــو مـــرض ښـــه زورور اوکـــه
لاړم هســـپتال تـــه نـــو تپـــوس مـــې د ډاکټـــر اوکـــه
هلتـــه یـــو ســـاعت پـــس یـــو ډاکټـــر مـــې پـــه نظـــر شـــولو
اوشـــوه تســـلي پـــه د ګـــمان مـــې د دلـــبر اوکـــه
بیـــا د چپـــړاسي نـــه مـــې تپـــوس د مـــلا قـــات اوکـــه
صـــیب نـــه دی وزګـــار دغـــه اواز یـــې دې نـــوکر اوکـــه
راشـــه مـــازیګر صـــاحب بـــه تـــا هلتـــه کـــې اوګـــوري
ځـــه بـــه درلـــه اوشي کـــه تـــا درې ګهېنټـــې ســـفر اوکـــه[۱۶۹]

د ســوات د پښــتو د دې دور ادب کــې د سرکــاري محکمــو پــه کــارکردګۍ هــم دغــه شــان تنقیدونــه شــوي دي. وجــه یــې دا وه چــې پــه ریاســتي دور کــې بــه محکمــو خپــل کــار پــه تېــزۍ سره کولــو او والي هــر وخــت پــه هــره محکمــه نظــر ســاتلو او لــه دغــه تېــز نظــام سره عــادت شــوي خلــک ناڅــاپي د رشــوتونو او سفارشــونو پــه دام کــې راګېــر شول، نو دغه وخت کې خلک مایوسه شول.

## ځېلې بوټي

د سوات په غر او سمه کې را ټوکېدلي ژوند بخښونکي ځېلې بوټي په ټول ملک کې دومره مشهور وو چې له لرې لرې نه به پسې سنیا سیان او حکیمان راتلل او دا به یې وړل. ځېلې بوټي راویستل او خرڅول هم د سوات د خلکو یو اهم تجارت و، د دې ځای ساګونه او مشروم لکه ګوجۍ، خرېړي، پمنکۍ، کونجۍ، لاډوره، شلا، سمچل او مکهڼ پت اهم ځیزونه دي.[۱۷۰]

## مذهب او عقیده

د سوات خلک سني مسلمانان دي او له حنفي مذهب سره تعلق لري. له څلورو خلیفه ګانو سره یو شان عقیدت لري، لکه د سوات د ادب د تېرو دورونو په شان په دې دور کې هم څلور خلیفه ګان په څلورو یارانو یاد شوي او په ادب کې یې ځای پرځای حوالې

موندلی شي، لکه دا لاندیني شعرونه وګورئ:

خوند سعادت په دنيا کړي له انسانه — ايـزده کـړه خـوي د صـديق عمـر عثمانـه
خوي د صديق، مثل حضرت دی — هــر يــو عمــل د ده لــوی عبــادت دی
مئېن په دين د حبيب وه ډېر بې شانه — ايـزده کـړه خـوي د صـديق عمـر عثمانـه
مئېن په دين دی، د رب وهاب دی — دويــم عــادل عمــر ابــن الخطــاب دی
په شجاعت کې عمر جوړ کړه له ځانه — ايـزده کـړه خـوی د صـديق عمـر عثمانـه
په شجاعت کې حضرت عمر شه — مــرد مېــدان و اســد، لکــه حيــدر شــه
شکر ګذار اوسه تل د رب منانه — ايزده کړه خوی د صديق عمر عثمانه[۱۷۱]

په سوات کې مذهبي اختلافات ډېر کم دي خو بيا هم په رياستي دور کې د مذهبي او سياسي اختلافاتو له وجې دلته د جماعت اسلامي د مشر مودودي خلاف به ډېرې پروپېګنډې کېدلې، ځکه چې د دغې ډلې خلک د رياست د ځينو پاليسيانو خلاف وو، خو کله چې رياست په پاکستان کې ضم شو نو د مودودي په باره کې هم دغه خبرې ورو ورو په کمېدو شوې او هغه په ښه نوم ياد کړی شو، لکه " د سيد مودودي په ياد کې" د ليکل شوي نظم دا يو څو کرښې د کتلو وړ دي:

د ګـــــل پـــــه شـــــونډو پـــــروت يـــــې بلـــــبلان دې يـــــادوي
ســـــــيده محترمـــــــــه ګلســـــــــتان دې يـــــــــادوي
بـــــې شـــــکه چـــــې تـــــه لاړې خـــــو فکرونـــــه دې حيـــــات دي
ژونـــــدي ســـــتا د ځوانـــــانو پـــــه ســـــينو کـــــې تعلـــــيمات دي
نـــــن خـــــوار او شکســـــته پرســـــتاران د ســـــومنات دي
ســـــتا هغـــــه بـــــت شـــــکنه کـــــاروان دې يـــــادوي
ســـــــيده محترمـــــــــه ګلســـــــــتان دې يـــــــــادوي[۱۷۲]

په مجموعي توګه په سوات کې سني مسلمانان دي، البته دلته د رياست له ادغام نه بعد شيعه ګان هم راغلي دي.

## زيارتونه

په دې دور کې به هم خلک باباګانو او زيارتونو ته تلل، خو په ادب کې يې ذکر کم مېلاوېږي. په ولسي ادب کې داسې حوالې په لاس راځي، لکه دا ټپه:

د لېـــــــــونی حاجـــــــــت پـــــــــوره شـــــــو
پــــــه لاره ځـــــــي پــــــه کـــــــاڼو ولي زيارتونـــــــه[۱۷۳]

د زيارتونو او باباګانو متعلق خبرې د سوات د نورو دورونو په ادب کې هم موندل کېږي او هم په دغه متعلقه بابونو کې پرې په تفصيل بحث شوی دی.

## مذهبي تعليم

مذهبي تعليم به په جماعت او مدرسه کې ورکولی شو. عام طور به د کليو ماشومان د مذهبي ايزدکړو لپاره سحر جماعتونو ته لېږل، که يو طرف ته د جماعتونو نه به سحر کې د قران خوانی خواږه اوازونه راتلل نو بل پلو ته به سحر باندې د هر کور نه د قران د تلاوت اوازونه راتلل. زنانو به قران خامخا ايزده کولو او ورسره به يې نورنامه، جنګ نامه او کيمياى سعادت لوستلو او دغه شان به يې د دې له برکته پښتو ژبه په ډېره اسانه سره لوستلې شوه.[۱۷٤] د مذهبي زدکړو لپاره چې کوم طالبان په جماعتونو يا مدرسو کې پاتې کېدل د هغوی د خوراک په باره کې يو شاعر داسې ليکي:

نــــــــــن صـــــــــبا ډوډی غــــــــــواړي طالبـــــــــان
دا د ســــــــــوات بــــــــــونېر رواج دی شـــــــــم قربــــــــان
د اخــــــــــون نــــــــــه شروع شــــــــــوی دا دســــــــــتور دی
هــــــر طالـــــب پــــــه دغـــــه چــــــړ بانـــــدې مـــــامور دی
د غټــــــــانو بچــــــــــی اوکـــــــــړي ډېــــــــر تعلـــــــيم
د غريــــــــب بچــــــــی هيلــــــه جـــــــوړ شي علــــــيم[۱۷۵]

کوم ماشومان چې په ديني مدرسو کې سبق وايي، نو هغوی د روټی په وخت په کلي او چم پره شي او ځان ته ډوډی راجمع کړي، دې ته وظيفې يا چړ ويلی شي.

## انګرېزي ژبه او جديد تعليم او سائنس

د دې دور د تعليمي نظام او د انګرېزی ژبې په باره کې لږ ډېر ذکر په ادب کې موندل کېږي، لکه دا لاندينی شعرونه:

انګريـــــــــزي نـــــــــه ده اوس مضـــــــــمون لازمـــــــــي
ژبــــــــــه د درس شــــــــــوله اردو د اســـــــــــکول
بــــــــې انګرېــــــزی شي پـــــــاس کــــــولې ميټـــــرک

ثـــــومره اســـــان ښـــــه د تعلــــيم شــــه حصـــــول
ژبـــــه د درس يـــــې انګرېــــزي پـــــاتې شـــــوه
پبلــــــک ســــــکولونه اردو ګڼــــــي فضـــــول
غلـــط چــــې نـــه شــــې پـــه نامـــه د پبلــــک
نـــــه شي پبلـــــک کــــې د غريبــــو شــــمول
ســــکول سرکـــــاري شــــه د غريبــــو حصـــــه
مـــــنم ډېـــــر ښـــــه د حکومـــــت دي اصـــــول
خـــو چـــې پــــاس کـــړې انګرېـــزي يـــې نـــه وي
منعـــــه کـــــالج کـــــې د هغـــــوی وي دخـــــول[۱۷۶]

د جديد تعليم د ودې لپاره په سوات کې تعليمي اداري جوړې شوې او د دې تعليم چې په خلکو کوم اثرات مرتب شوي، هغه هم د دې دور په ادب کې ښکارېږي، لکه دا شعرونه:

د انګريـــــزي علـــــم شـــــوخي اوګـــــوره
ژبـــــه تېـــــره يـــــې د الماســـــه ويـــــنم
مېـــــږه بـــــه حکـــــم اوس د ښـــــځې منـــــي
ســـــتړې يـــــې ښـــــه د سسرـــــه ساســـــه ويـــــنم
تعلـــــيم يافتـــــه ده بنګلـــــه بيلـــــه غـــــواړي
زړه يـــــې خـــــالي د هـــــر هراســـــه ويـــــنم
د خوابـــــې ســـــخر سره نـــــه جـــــوړېږي
زړګـــــی د شـــــېر خـــــالي د آســـــه ويـــــنم
صـــــدی شـــــلمې څـــــه دنيـــــا ګرمـــــه کـــــړه
لـــــوغړن خلـــــق يـــــې د براســـــه ويـــــنم[۱۷۷]

په دې دور کې چونکې مغربي دنيا د سائنس په وجه ډېره وړاندې تلې وه، نو دغه حالات زمونږ په ادب کې هم په نظر راځي، لکه دا شعرونه:

انګرېـــز د قـــوم دوســـتی پـــه برکـــت بانـــدې بـــالا شـــو
ايـــتم نـــه چـــې اوزګـــار شـــو اوس مهـــم يـــې خلايـــي دی
د ســـائنس پـــه چـــاره يـــې رالـــه ســـترګې دي ويســـتلې
خوشـــحاله ورتـــه ناســـت وو مـــونږه وې کـــه ســـلايي دی[۱۷۸]

يعنې دلته شاعر دا پيغام ورکول غواړي چې مونږ ته له يو بل سره دوستانه تعلقات جوړول پکار دي او له يو بل سره بغض او حسد پرېښودل پکار دي او دغه رنګ په اتفاق او اتحاد به مونږ په سائنس او ټيکنالوجۍ کې هم ترقي وکړو.

## د مغربي تهذيب اثرات

د دې دور شاعرانو د مشرق او د مغرب د ځينو خبرو موازنه هم کړې ده، لکه د شېر علي خان يو نظم چې "مشرق او مغرب" تر سر خط لاندې ليکل شوی دی، يو څو شعرونه يې دا دي:

قــــابض ولـــــې يهوديـــــان پـــــه فلســـــطين دي
د دنيــــا مســــلمانان چـــــې پـــــرې غمګــــين دي
پــــه کشــــمير ولــــې قابضــــه هنوديــــان دي
مالکـــــان ولـــــې د دغـــــې سرزمــــين دي
اســـلام نشـــته تـــش پـــه خولـــه مســـلماني ده
د اغيــــارو ځکـــــه نـــــن زېـــــر نګـــــين دي
ښــه تعلــيم او ښــه عــلاج لــه ځــي مغــرب تــه
پــه هــر کــار کــې يــې ډېــر ښــه مقلّــدين دي
خــو غريــب پــه خېټــه مــوړ دی پــه مغــرب کــې
اوړي ګرځـــې غريبـــان چـــې مشرـــقين دي
تقليـــد ولـــې د مغـــرب نـــه کـــوي دلتـــه
غړېـــدونکې يـــې دوه ســـترګې پـــه جبـــين دي[۱۷۹]

روغانی داسې ليکي:

انګرېـــز چـــې وېښ شـــه د ذلّـــت د انتهـــا نـــه ووت
شـــولو ژونـــدی چـــې کلـــه ســـاه د کليســـا نـــه ووت
مســـلم بـــه هـــم پـــه ســـجده خـــدای تـــه پـــه مـــريخ پريـــوځي
کـــه دا د ضـــد تنـــګ نظـــرۍ خـــوی د مـــلا نـــه ووت[۱۸۰]

او بل ځای کې د فيرنګي او د مسلمان په موازنه داسې طنز کوي:

ګـــوره فيرنګـــي تـــه چـــې جهـــان يـــې وروســـتو پـــاتی کـــړه
وابـــه ورې يـــو ځـــل چـــې کهکشـــان يـــې وروســـتو پـــاتې کـــړه

بـــل خـــوا مســـلمان هـــم ترقـــۍ کـــې چـــا نـــه کـــم نـــه دی
دومـــره نافرمـــان شـــه چـــې شـــيطان يـــې وروســـتو پـــاتې کـــره[۱۸۱]

دغه رنګ د نورو ډېرو حوالو نه پته لګي چې د سوات په پښتو ادب دا اثرات ښکاره دي.

## سياست

د رياست سوات په دور کې دلته بادشاهي نظام و او چې کله د سوات رياست په پاکستان کې ضم کړی شو، نو دلته خلکو ته سياسي ازادي هم مېلاو شوه. خلکو په سياست کې برخه واخسته خو د وخت تېرېدو سره سره د دې سياسي ليډرانو نه هم د خلکو زړه سترې شو او اعتماد يې پرې ختم شو او د خلکو دا ردعمل د سوات په پښتو ادب کې ښکاره دی، لکه د عبدالرحيم روغاني دا نظم "سياسي تاجران " وګورئ:

پـــه خلـــه د مينـــې محبـــت او وروروليـــۍ خـــبرې
زړه کـــې د کرکـــې د نفـــرت دلـــۍ دلـــۍ خـــبرې
پـــه خولـــه نعـــرې د تحفـــظ، امـــن و امـــان، قـــراري
زړه کـــې د تـــوپ او مشـــين ګـــن او د ګـــولۍ خـــبرې
پـــټ پـــه يـــورپ کـــې فيرنګـــۍ لـــه ځنـــه ســـترګه کـــوي
ښـــکاره د خـــوارې سر بـــبرې کـــابلۍ خـــبرې
پـــه زړه کـــې غـــواړي فحـــاشي، بـــې حيـــايي د يـــورپ
پـــه خولـــه د ننـــګ او د پښـــتو پښـــتونولۍ خـــبرې
کـــلي پـــه کـــلي دشـــمنو کـــې مـــو خپـــل يېـــر لټـــوي
زده کـــوي مـــونږ تـــه د جنګونـــو د ســـيالۍ خـــبرې
د سياســـت پـــه مېلـــه ګـــاه کـــې ســـياسي تـــاجران
کـــوي د قـــوم د خرڅولـــو د بـــولۍ خـــبرې
يـــو خـــوا د لـــوږې بـــيمارۍ نـــه دا مرګـــو د بچـــو
بـــل خـــوا د مېـــو د مينـــا او د پيـــالۍ خـــبرې
ای روغانيـــه شـــاعري کـــه پســـې وقـــف کړمـــه
پـــوره بـــه نـــه شي د درغـــل د درغلـــۍ خـــبرې[۱۸۲]

او په يو بل ځای کې داسې وايي:

چــــې پـــه يـــو كـــال كـــې د كروړونـــو بنگلـــه جـــوړه نـــه كـــړم
د دې وطـــــن د عمـــــر خـــــوار سياســــتدان بـــه نـــه يـــم
پـــه ســـتېج بـــه غـــټ غـــټ تقريرونـــه د ښـــېگړې كـــووم
كـــه ښـــاده ورځ رانـــه چـــا اوليـــده نـــو ځـــوان بـــه نـــه يـــم
چـــــې د اولـــــس پـــــه سر ړلـــــى غونـــــدې او نـــــه وربـــــړم
د خلقـــو خيـــال كـــې د رحمـــت هغـــه بـــاران بـــه نـــه يـــم[۱۸۳]

سالار يوسفزى د "ليډران" په نامه په يو نظم كې داسې ليكي:

دا د قـــــام وطـــــن وفـــــاداران پـــــه مـــــونږه څـــــه كـــــوي
اوگـــــوره دنيـــــا كـــــې ليـــــډران پـــــه مـــــونږه څـــــه كـــــوي
پېســـــو بانـــــدې يـــــې ښـــــه ډنـــــډه مـــــاران وي پيـــــدا كـــــړي
جلســـــو تـــــه يـــــې هـــــم ښـــــه مقـــــرران وي پيـــــدا كـــــړي
ســـــندرو لـــــه يـــــې ډېـــــر موســـــيقاران وي پيـــــدا كـــــړي
شـــــعرونو لـــــه يـــــې هـــــم څـــــو شـــــاعران وي پيـــــدا كـــــړي
ټگـــــى لـــــه پـــــه پيســـــو يـــــې څـــــو حاجيـــــان وي پيـــــدا كـــــړي
اعتبـــــار لـــــره يـــــې غـــــټ غـــــټ مـــــلا يـــــان وي پيـــــدا كـــــړي
چغـــــو او نعـــــرو لـــــه يـــــې جـــــاهلان وي پيـــــدا كـــــړي
دعـــــا د پـــــاره دوى لـــــوى لـــــوى پـــــيران وي پيـــــدا كـــــړي
دا د دولـــــت وږي چلبـــــازان پـــــه مـــــونږه څـــــه كـــــوي
زمـــــونږ د وينـــــو تـــــږي ښـــــاماران پـــــه مـــــونږه څـــــه كـــــوي[۱۸٤]

رحيم شاه رحيم په "سياسي ليډر" نومې يو نظم كې څه داسې وايي:

نـــه قـــول يـــې پـــه ځـــاى وي نـــه پـــه ژبـــه يـــې بـــاور وي
چـــې څـــومره دروغـــژن وي لـــوى زمـــونږ هغـــه ليـــډر وي
د تـــول اصـــول يـــې نـــه وي خپلـــه ببعـــه چـــې كـــره كـــړي
بيـــا نـــه گـــوري پـــه بيرتـــه پـــه مثـــال د ســـوداگر وي
نائبـــك وي هـــم ملـــك وي خـــو چـــې جـــوړ انتخابـــات شي
بيـــا ســـتا پـــه رضـــا درومـــي تـــه ملـــك يـــې دى نـــوكر وي
غـــوړي، ســـيمنټ، چينـــي كـــه پـــه كنټـــرول بانـــدې مونـــدى شي

کوټــــــــه د ده د پـــــــــاره لويــــــــه خپلــــــــه مقـــــــرر وي[185]

ديدار يوسفزی د "ليډر" تر سر خط لاندې د ليډر استحصالي سوچ داسې بيانوي:

د دې سره مــــې کـــار نشـــته کـــه نـــه خـــورئ او کـــه خـــورئ
خــو مالــه بــه يــې گــورئ کــه ځــوک مــرئ او کــه ځــوک چــوئ
د ژونــد پــه فلســفه کــې مـــې حـــرام شـــته نـــه حـــلال
"اخــون لــه خــو چــې پــی وي کــه د خــرې وي کــه د ســپی"[186]

چونکې په دې دور کې رياست په پاکستان کې مدغم شوی و او دلته سياسي پارټيانې راغلې وې او خلک د دغو سياسي جماعتونو له ليډرانو نه مطمئن نه وو، نو ځکه د دې دور په ادب کې پر هغوی تنقيد په نظر راځي.

## ډلې او سياسي پارټيانې

د سوات د رياست له ضم کېدلو وروسته دلته د ډلو پرو روايتي نظام بدل شو او د روايتي ډلو پرو پر ځای سياسي پارټيانې شروع شوې. د سياسي پارټو د راتگ په باره کې زېب سر ليکي چې په سوات کې د ډلو پرو د زور رواج پر ځای اوس د پارټۍ سسټم رائج دی او بمونو دهماکو دلته هم خپله خرابه څهره ښکاره کړې ده او د خانانو د "زلمي پښتون" تنظيم د دې جرائمو د حکومت په نظر کې ذمه وار دی.[187]

## خانان ملکان

سوات د رياست له جوړېدو نه مخکې يوه قبايلي علاقه وه او دلته په ټولنه کې د خانانو ملکانو ډېر کردار و. د رياست له جوړېدو سره په خانۍ ملکۍ کې لږه ډېره بدلي خو راغله خو دا څيز مکمل ختم نه شو او دغه رنگ د خانانو ملکانو اختيارات د رياست له انضمام نه وروسته ډېر کم شول. په سوات کې د خانانو ماجب هم ختم کړی شو. په دې باره کې محمد افضل خان په خپل کتاب " پښتون قامي وحدت" کې داسې ليکي:

ضلع سوات کې د خانانو ملکانو چې زما د کورنۍ افراد هم پکې شامل وو څه د پاسه پينځه لکه روپۍ د کال ماجب وه. مونږ دا فيصله وکړه چې دغه رقم به طالب علمانو ته د وظائفو په توگه ورکړی شي، دا به د هغه تعليمي وظائفو نه علاوه وي کوم چې د دې ضلعې د سکولونو او کالجونو طالب علمانو ته محکمه تعليم د وظائفو په توگه ورکوي. د ضلعې خانانو او ملکانو يو غوبل

جوړ کړ خو چونکې فېصله صحيح وه ځکه نو زمونږ نه وروستو هم چا دغه ماجبونه بحال نه کړل.[188]

سالار يوسفزی "د خان دنيا" نومې نظم کې د خان د ژوند يوه نقشه راښکلې او ورسره يې د خان د کنډريانو او د نوکرانو ذکر هم په دې ډول کړی دی:

کــه دنيــا ده خــو د خــان ده هــر غريــب لــه د ارمــان ده
شي نقصان د خان په ګټه د هــــر خـــوار ګټــــه تــــاوان ده
خان بې غمه په صوفه کې د عوامـــــو پـــــه جوفـــــه کــــې
يــو مغــرور اواز بــه اوکــړي سر کــړي پورتــه پــه چرچــه کــې
ګلاليه دلته راشه د هــــــر غــــــم دارو زمـــــا شــــــه
يره ډېر شريف انسان دی بــس هــم دې کــار کــې لګيــا شــه
خوره او ځښه دلته بې غمه پـــــوره ســـــپوره او کـــــه ســـــمه
دی بــه خولــه کــړي ورتــه چينګــه يــره خــان! خــو ســتا منمــه
نــــوکران وي ډېـــــري وينځـــــې د خانـــــانو محـــــل وينځـــــي
چې د خان مخې ته راشي وائي لــــر شــــه درنــــه بــــين ځــــي
څــه لګيــا وي پــه پټــو کــې څــه يــې ناســت وي پــه اټــو کــې
خــوار ګټــي پــه خپلــو وينــو بنــدوي يــې خــان پټــو کــې
خپلـــې پيغلـــې نـــاز پـــروري لکـــه ســـتوري ځلقـــوري
خــوړل ځښــل ارام يــې کــار وي ســېل تــه ځــي لکــه کــونترې
دا دنيــا، جنــت د خــان دي کــۀ دي حــورې کــۀ غلــمان دي
د غريـــب دلتـــه دوزخ دی هـــم يـــې هلتـــه لړمـــان دي[189]

د خانانو ملکانو په اختياراتو کې په هر وخت کې بدلون راغلی او دغه بدلون په ادب کې منعکس شوی دی.

## مليان

ملا د ټولنې يو اهم کردار دی، ځکه يې د هر دور په ادب کې څه نه څه ذکر موندلی شي. د مليانو په باره کې يو شاعر د "بې علمه ملا" تر سرخط لاندې داسې ليکي:

پـــه ملايـــانو کـــې هـــر قســـمه صـــاحبان شـــته
څـــوک پـــه پـــګ بانـــدې مـــلا څـــوک فاضـــلان شـــته

پـــه نـــرۍ خـــبره ديـــن نـــه څـــوک ايســـتل کـــړي
د بـــې علمـــه مـــلا تـــل دغـــه پهچـــان شـــته
د علـــيم پـــه نـــوم بـــس يـــو اللـــه مـــنم زه
چـــې يـــې علـــم بـــې محـــيط او بـــې پايـــان شـــته
انســـاني علـــم بـــه خـــود بخـــود محـــدود وي
خـــو بيـــا هـــم د عـــالم ځـــان ځانلـــه ميـــزان شـــته
څـــوک پـــه پـــګ بانـــدې مـــلا څـــوک پـــه شـــمله وي
نـــه يـــې فکـــر د ســـند يـــا امتحـــان شـــته
چـــې څـــوک مـــړ شي دی شـــکرونه پـــرې اوبـــاسي
هـــر اول کـــې جنـــازې تـــه دی روان شي
جنـــازه کـــې پـــوره فنـــد د پيســـو غـــواړي
چـــې وي کمـــې نـــو بيـــا تـــل د ده خفګـــان شـــته
درې ماښـــامه هـــم دی دطـــګ د حلـــوا غـــواړي
پـــه اردل کـــې يـــې ټـــولی د صـــابياقان شـــته
څلوېښـــتمه جمعـــې هـــم يـــې خوشـــحالي وي
د بـــې علمـــه مـــلا دغـــه رنـــګ ګـــذران شـــته[190]

يو شاعر د مليانو او پيرانو قسمونه بيانوي او پر ناكاره مليانو او پيرانو داسې تنقيد كوي:

د اللـــه مليـــان جـــدا دي د حلـــوا مليـــان جـــدا دي
قـــدوسي پـــيران جـــدا دي مجـــوسي پـــيران جـــدا دي[191]

د ملا د ژوند ټول دارومدار به هم د غم ښادۍ په دغو پژسو او خوراكونو كې و. د غم په موقعه به ملا له هر چا نه زيات خپل ځان د اسقاط حقدار ګڼلو، دا رنګې په خيراتونو كې به هم د ملا حصه له هر چا نه ښه كېدله.

روغانی د ترقي پسندۍ په لار كې درې قسمه خلك روكاوټ ګڼي، هغه وايي:

خـــان دی كـــه مـــلا دی كـــه پـــيران دي پورتـــه ښـــكته
ســـتا نـــه مـــرور دي دغـــه درې ســـپر طاقتـــه[192]

او په بل يو ځای كې دا خبره داسې كوي:

خــــــان پــــــه یــــــوه مــــــلا پــــــه بلــــــه اوړه
پــــیر مــــــې پــــه مــــــلا بانــــــدې پرلـــــت وهلــــــی
زه لـــــــــړه ځانلـــــــه ډېـــــــــره دوی لـــــــــه گـــــــتم
کلـــــــه ســـــــتار کلـــــــه ډانـــــــډت وهلـــــــی[193]

د خـان، مـلا او پـیر مرید پـه بـاره کـې اول خلکـو ډېـر عقیـدت لـره، خـو د وخـت له تېرېدو سره دا رویه بدله شوه.

## هنر مندان او کسبگر

د سوات په خلکو کې د تاریخ په هر دور کې لوی لوی فنکاران او هنرمندان تېر شوي، محمد پروېش شاهین لیکي چې دغو خلکو په مذهبي جوش خروش سره گټې ته، لرگي ته، وړۍ ته، ټوکي ته، څرمن ته، پیتل ته او د ونې پټ ته یوه فصیحه ژبه ورکړې وه چې هر لیدونکي ته به یې خپل تاریخ او خپله قیصه په ډېر روان مټ اوروله. یواځې دا نه چې دغه خلک دومره لوی فنکاران وو او خلک به دلته راتلل او په دوی به یې دغه کنده کاري، گلکاري او فنکاري کوله او له ځان سره به یې دغه فن پارې خپلو لرې لرې هېوادونو ته وړلې، بلکې یو وخت داسې راغی چې نه یواځې له دې ځایه مذهبي کتابونه او مذهبي تبرکات به وړی شول، بلکې ورسره یې له دې ځایه عالمان، پوهان، مستریان، انجینیران، گیلکاران ان مزدوران یې بوتلل چې هلته ورته مذهبي عبادت خانې او خانقاگانې جوړې کړي او د دهرم چل ورته وښایي، دغه وجه ده چې د سوات د فن ښکلا او عکس نن هم د تبت، لداخ، چین او جاپان په فنونو کې له ورایه په نظر راځي. پروېش شاهین بیا وړاندې لیکي چې دغه ارټ چې په لرگي، گټه، ټوکي او وړۍ کې دی دومره ژور او غوره فنکاري ده چې نن د یورپ خلک په دغه باندې تحقیق ته ناست دي. د سوات د سلامپور شړۍ او کمبلې ډېرې مشهورې دي.[194] د سوات فن او فنکاري په زوال ده ځکه چې ولسي بې غورۍ دغه شتمني اوچته کړه نو شاته هغه فنکاران او هنرمندان چې له لرگي، څرمنې، ټوکي، وړۍ، کاغذ او سرو سپینو به یې دغه ثقافتي څیزونه جوړول، نو هغه هم بې کاره او بې روزگاره شول، ځکه چې بې قدري زور شوه او هر وطني او ولسي څیز سپک او بې قدره شه او دغه فنکاران د دغې نادرې فنکارۍ نه لاس په سر شول.[195]

یو وخت و چې د سوات په سماجي ژوند کې د ذات پات او کسبونو نفرت ډېر په شدّت سره موجود و، اگر چې له بدلیدونکو حالاتو سره دغه تمیز ورو ورو ختمېږي،[196] لکه

يو شاعر چې د کار کسب عظمت بيانوي، نو داسې وايي:

د انســـان مقـــام کـــه غـــواړې امتـــي د هغـــه ځـــوان شـــه
چـــې مـــوچي دی هـــم درزي دی هـــم مـــزدور دی هـــم ســـلطان[197]

زمکه او جايداد د سوات په ټولنه کې د عزت لپاره يو بنيادي څيز و او چا چې به زمکه نه لرله، نو که هغه به پښتون هم و، خو چا به پښتون نه حسابوه، خو د وخت په تېرېدلو سره په دې سوچ کې هم بدلون راغی، لکه يو شاعر چې وايي:

بنيـــــــادم دې روښـــــــه خويانـــــــدې دي جنابـــــــه
کـــــه پـــــه برخـــــه يـــــې کـــــوټې او پټـــــي نشـــــته
ځـــان تـــه مـــه وايـــه اصـــيل بـــل تـــه کـــم اصـــل
پـــــه قصـــــه کـــــې د ادم پرکټـــــي نشـــــته[198]

پخپله به هم پېشه ورو له يو بل سره تعصب ساتلو، لکه دا شعرونه چې يې ظاهروي:

وايـــي ترکـــاڼ شـــکر دی ربـــه چـــې اينگـــر نـــه يمـــه
اينگـــر وئ ښـــه ده چـــې اينگـــر يمـــه مـــلا نـــه يمـــه
مـــلا وئ نـــه يـــم زه نـــايي ، نـــايي وئ ډم نـــه يمـــه
ډم زر خولـــه ورانـــه کـــړي او وايـــي چـــې جـــولا نـــه يمـــه[199]

د دې دور په ادب کې هم په ټولنه کې د مختلفو کسبگرو، پېشه ورو او هنرمندانو ذکر مېلاوېږي، چې په هغې کې څه دا لاندې ورکولی شي:

**مزدور**

ازل کـــې پيـــدا شـــوی کـــم نصـــيبه چـــې مـــزدور يمـــه
ځکـــه خـــو خولـــو کـــې تـــر بـــتر يـــم پـــه ضرور يمـــه
نـــه لـــرم څـــه حـــق پـــه ملـــک کـــې نـــه مـــې وي اختيـــار
زه محرومـــــه شـــــوی د دنيـــــا د عـــــېش سرور يمـــــه
ځکـــــــه چـــــــې مـــــــزدور يمـــــــه[200]

د مزدور په باره کې په يو نظم "مزدور" کې يو شاعر داسې وايي:

لويـــــه ســـــخته دې ابخلـــــې پـــــه خپـــــل ځـــــان ده
ســـــتا دا ســـــتړې رســـــېدلې پـــــه جهـــــان ده

بــــــې ارزی کــــــې دې د ژونــــــد ورځـــــې تېريـــــــږي
روزي ګرانـــــــه مقـــــــرر ســـــــتا پـــــه اســـــمان ده[۲۰۱]

## دهقان

په دې شعرونو کې د دهقان د ژوند نقشه راښکلې شوې ده:

زه يـــم در پـــه در خـــاورې پـــه سر خـــو زه دهقـــان يمـــه
زه غريـــب تـــل ســـتړی کـــم نصـــيبه چـــې پـــه ځـــان يمـــه
کـــــړي کنځـــــل نائـــــک راتـــــه زه چينګـــــه خلـــــه ولاړ يمـــــه
کـــاش نـــه وی پيـــدا پـــه خپـــل ژونـــدون بانـــدې ســـتومان يمـــه
ځکـــــــــه چـــــــــې دهقـــــــــان يمـــــــــه[۲۰۲]

## اهنګر درزګر

لـه اوسـپنې نـه د کرکيلـې او نـور اوزار جـوړونکي تـه اهنګـر (اينګـر) يـا درزګـر وايـي. اينګـر تـه پـه عمـومي توګـه نقـدې پيسـې نـه ورکـول کېږي، خـو پـه کـال کـې دوه ځله له فصل نـه ورتـه پـه يـو خـاص مقـدار کـې غلـه ورکـول کېږي. اينګـر درزګـر د خپـل ځان په باره کې داسې وايي:

زه مـــــزدور د هـــــر چـــا يـــم هنګـــــر کـــه درزګـــــر يمـــــه
د کـــــلي د هـــــر يـــــو ســـــړي هـــــم يـــــو شـــــانله نـــــوکر يمـــــه
څـــه چـــې راتـــه وايـــي نـــو انکـــار کـــولی نـــه شـــمه
کســـــب نـــــه ســـــېوا هـــــم کتـــــه کـــــړی لکـــــه خـــــر يمـــــه
ځکـــــــــه چـــــــــې هنګـــــــــر يمـــــــــه[۲۰۳]

## زميدار

حـــال تـــه زمـــا ګـــوره چـــې شـــپه ورځ زه نـــاقرار يمـــه
زه يمـــه غوايـــه د زمکـــې دې کـــار لـــه تيـــار يمـــه
خلقـــــو سره فکـــــر دی د خپـــــل اســـــباب د ډول
زه د کـــــر للـــــون او د نهـــــل کلـــــه وزګـــــار يمـــــه
ځکـــــــــه زميـــــــــدار يمـــــــــه[۲۰۴]

## جولا

له وړی نه شړی ، څادرې او ساده قسم کپړې جوړونکي کاريگر ته جولا وايي. د جولا په باره کې شاعر داسې وايي:

کـــار مـــې نشـــته چـــا کـــې زه خپـــل کـــار کړمـــه جـــولا يمـــه
لاس ســــــنګ فـــــارس لـــــــرم پخپلــــــه زه کيميـــــا يمـــــه
خپـــــل کســــــب کومــــــه مــــــزدوري ګـــــتم حلالـــــه زه
بـــل څـــه کـــار مـــې نشـــته پـــه دې خپـــل هـــنر لګيـــا يمـــه
ځکـــــــــــه چـــــــــــې جـــــــــــولا يمـــــــــــه[۲۰۵]

## چميار

عـام طـور لـه څرمنـې نـه پيـزار جـوړوونکي او پيـزار مرمـت کـوونکي تـه چميـار وايـي. د دې پېشـې خلکـو هـم د يـو باقاعـده نسـل شـکل اختيـار کـړی او اوس خلـک د دې پېشې خلک د نسب په حواله هم چمياران ګڼي.

کـــړې کـــه تـــه تپـــوس چـــې تـــه يـــې څـــوک نـــو زه چميـــار يمـــه
کـــــړې کـــــه رانـــــه طمـــــع شـــــنډه ونـــــه د ســـــپېدار يمـــــه
تـــــا سره چـــــــې لـــــــوظ اوکـــــــړم صرف رخصـــــــتوم دې زه
کـــار راتـــه ډېـــر زيـــات دی خفـــه کېـــږه مـــه ناچـــار يمـــه
ځکـــــــــــه چـــــــــــې چميـــــــــــار يمـــــــــــه[۲۰۶]

## پراچه

پـر خـرو، قچـرو او اسـونو بانـدې د خـوراک سـامان او نـور پېټـي لـه يـو ځـای نـه بـل ځـای تـه وړونکـي تـه پراچـه وايـي. دوی عمومـاً بـارګير ځنـاور سـاتي او لـه زمکـو نـه غلـې دانې کورونو ته خلکو ته په کرايه باندې وړي، د پراچه په باره کې شاعر داسې وايي:

نـــه پېژنـــې مـــا کـــه تـــه پـــه ذات نـــو پراچـــه يمـــه
خپـــــل او د پـــــردي د پـــــاره يـــــو شـــــانله ســـــوانچه يمـــــه
ســـود چـــې پکـــې نـــه وي هرګـــز زه هغـــه کـــار نـــه کـــوم
مـــال مـــې ديـــن ايمـــان دی زه پـــرې ځکـــه پـــه چرچـــه يمـــه
ځکـــــــــــه پراچـــــــــــه يمـــــــــــه[۲۰۷]

دلته هم دا واضح شوه چې دا پېشې خلکو د دې پېشه ور خلکو نسب هم گرځولی وه.

## کلال

له خاورو نه لوښي جوړوونکي کاريگر ته کلال وايي:

فکـــــر راتـــــه اوکــــړه زه خاونــــد د لــــوی کـــــمال يمـــــه
خــــاورې زر کومـــــه وجــــه دا ده چـــــې کــــولال يمــــه
سر مـــې ښـــکته کـــړی وي هـــم کـــار کـــوم هـــم فکـــر
نــور مــې خپــل قســمت دی کــه نېــک يــم کــه بــد حــال يمــه
ځکـــــــه چـــــــــې کــــــــولال يمــــــــــه[۲۰۸]

## څرخه مار

د کپـړو يـا جـامو گنـډلو والا تـه هـم څرخـي مـار وايـي او درزي هـم ورتـه ويلـی شي. پـه عـام طـور څرخـي مـاران لـه وړی نـه تارونـه جـوړوي او بيـا تـرې شـړۍ، کوټونـه او نور شيان جوړوي:

خپــــل کــــوم زه کســــب هـــم خــــبرې څرخــــه مـــار يمــــه
کـــوټ واســـکټ قمـــيص پرتـــوگ جوړومـــه ښـــه هوښـــيار يمـــه
کســـب پـــه روپـــو کـــوم دانـــې نـــه اخلمـــه پـــس لـــه دې
تـــا تـــه کـــه زوړ خـــوار ښـــکارم مگـــر زه اوس مالـــدار يمـــه
ځکـــــــه څرخـــــــــه مــــــــــــار يمـــــــــــه[۲۰۹]

## شاخېل

شاخېل د ټولنې اهم کسبگر وي، خو په ټولنه کې دوی ته همېشه په سپک نظر کتلی شي، د دوی هېڅ قدر نه کېږي او يو سړي ته شاخېل ويل د کنځلو برابر دي.[۲۱۰]

کســـب مـــې د پـــلار نيکـــه دی زه پـــه ذات شـــاخېل يمـــه
کـــار کـــه زمـــا ســـخا دی مـــا تـــه ښـــه ښـــکاري پـــرې ښـــکېل يمـــه
څـــه اوکړمـــه زه چـــې پيـــدا شـــوی زه غريـــب يمـــه
نـــه کـــوم کـــه دا نـــو بـــې روزگـــاره او ذليـــل يمـــه
ځکـــــــه چـــــــــې شــــــــــاخېل يمـــــــــه[۲۱۱]

## دکاندار

د مختلفـو څیزونـو خرڅـوونکي تـه دکانـدار وایـي. دی یـواځې مختلـف خـوراکي او د روزمـره ژونـد څیزونـه نـه خرڅـوي، بلکـې ځینـې څیزونـه لکـه لرگـي او غلـه اخـلي هم او د هغې په بدل کې یا نقدې پیسې ورکوي او یو پرې بیا نور څیزونه.

کـــــار د تجـــــارت کومـــــه خلقـــــه دکانـــــدار یمـــــه
مـــا تـــه پـــه پښـــتو کـــې بـــازاري وایـــي هوښـــیار یمـــه
کـــار مـــې پـــه چـــا نشـــته زه مـــدام پـــه خپـــل ســـود خـــوښ یمـــه
ناســـت لکـــه پیشـــو منـــږک نیـــوو تـــه زه پـــه ځـــار یمـــه
ځکـــــــــــــه دکانـــــــــــــدار یمـــــــــــــه[۲۱۲]

## زرگر

لـه سرو زرو یـا سـپینو زرو نـه مختلـف قسـمه کـالي جـوړوونکي کـاریگر تـه زرگـر وایـي. ښـکاره خـبره ده چـې د زرگـر کـار لـه زرو سره دی کـوم چـې پـه قیمـت گـران وي، نو دا خلک اکثر مالداران وي او همېشه په خپله گټه نظر ساتي.

هـــــر قســـــم کـــــالي جوړومـــــه زه صراف زرگـــــر یمـــــه
بـــل نـــه چـــې زر اخلـــم کـــم یـــې اخلـــم داســـې نـــر یمـــه
خپـــل زر چـــې ورکومـــه پـــه پـــوره ورتـــه حســـاب کړمـــه
هـــم پـــرې رغاونـــه لپاســـه داســـې کیمیـــاگر یمـــه
ځکـــــــــه چـــــــــې زرگـــــــــر یمـــــــــه[۲۱۳]

## شپونکی

کوم خلک چې گډې بیزې ساتي هغوی ته شپونکي وایي. د دوی لوی واړه د گډو بیزو په ساتنه کې مصروف وي. له دوی سره د گډو بیزو په کنډک کې سپي هم وي او د سفر په دوران کې دوی د خپل ضرورت سامان په ملا پورې تړلي وي او روان وي او نور د ضرورت سامان له ځان سره په خرو یا ټټوانو هم وړي، پخوا به ټټوان وو او اوس خره، د دوی د ځملاستو لپاره چې کومه تولایي وي هغې ته لیمڅی وایي چې د گډو له وړیو نه جوړ وي.[۲۱٤] شپونکي په اوړي کې خپل مالونه د سوات یخو علاقو ته راولي او په ژمي کې د سمې گرمو علاقو ته ځي.[۲۱٥] شپونکي ډېر سخت ژوند تېروي خو د دې باوجود دوی کې

ډېر زيات سخاوت او مېلمه دوستي وي. يو ليکوال وايي چې کله د سوات په غرونو کې که د دوی مېلمستيا وکتلی شي نو ډېر لوی لوی پښتانه د سرړي نه هېر شي.[216]

## نايي

د نايي مختلف کارونه وي چې په هغو کې سر سنت هم شامل دي. ده ته ډم هم ويلی شي. په وړومبي دور کې به نايي د خانانو په دېرو کې د کټ بسترې وغيره خدمتونه هم کول.[217]

## ډم

په پښتني ټولنه کې د ډم ډېر اهميت دی، د ډم په باره کې يو شاعر داسې وايي:

يـــار مـــې نـــه دی يـــو، نـــه د چـــا يـــار يمـــه زه ډم يمـــه
څـــوک کـــه راتـــه ســـپک گـــوري پـــه څـــه لـــه چـــا نـــه کـــم يمـــه
اووايـــــه زمـــــا غونـــــدې فېشـــــن بـــــه لا د چـــــا وي بـــــل
وايمـــه رښـــتيا چـــې زه ښـــادمن پـــه ښـــادئ غـــم يمـــه
ځکـــــــــــــه چـــــــــــــې زه ډم يمـــــــــــــه[218]

## ډمه

د نورو خلکو خوشحالولو او خندولو لپاره خپل ژوند وقف کوونکې ډمې ته په پښتنه ټولنه کې د عزت په نظر نه شي کتلی، خو د ټولنې حساسه طبقه شاعران د ډمې د ژوند هر اړخ ته گوري او په هر حالت کې د دې مجبوريانې تر نظر لاندې ساتي. د ډمې په باره کې د مختلفو شاعرانو عکس العمل دلته بيانولی شي:

روح الامين ناياب په يو نظم "ډمه" کې داسې ليکي:

دا چـــې هـــره شـــپه گـــډيږي دا چـــې هـــره شـــپه خرڅيـــږي
دا پـــــه خپلـــــه ارتـــــاويږي خـــــو د نـــــورو دمـــــه کيـــــږي
کـــه مـــونږ ټـــول يـــو رونـــه خوينـــدې يـــا پـــلاران يـــو يـــا يـــو مينـــدې
دا پـــــه ډمـــــه چـــــې يـــــاديږي زمـــــا فکـــــر نـــــه رســـــيږي
کـــه يـــې ورور دی باجـــه مـــار دی کـــه شـــمبو دی د دې پـــلار دی
کـــه د ديـــن ورور دی نـــو يـــار دی مرمـــه دا لا څنگـــه کـــار دی

يا د دې هم څوک پيدا که   يــــا خالقـــــه! دا پنـــــاه کـــــه[219]

عبدالجميل يوسفزی د ډمې په باره کې د "رنډۍ" تر سرخط لاندې داسې ليکي:

دا هغـــــه بلبلــــې دي چــــې هــــر چاتـــه خنـــدا کـــړي
هيڅـــوک تـــرې خفـــه نــــه شـــو د هـــر ســـړي رضــا کـــړي
څــــه ښــــکلې يــــې لاره ده او څــــه ښــــکلی خــــدمت دی
نــــه چرتــــه کــــې زور غـــواړي او نــــه چرتــــه منـــت دی
بــــس خــــو د دولـــت پـــه مخکـــې حـــورې بـــې حســـابه
ډېـــــرې رحمـــــــدلې زړه ســــــبزونکې بـــــې حجابــــــه
دا د لــــوی ادم نمســــــی بــــــس دې لــــــره پيــــدا ده؟
دې دنيـــا خوشـــحاله کـــړه خوشـــحاله پـــرې دنيـــا ده
وي د هـــر چـــا غبـــړه کـــې د هـــر چـــا دلـــر بـــا ده

خو:

ای ښـــــکلې نيــــازبينې د دې ټـــــول جهانــــــه ښــــکلې
تــــا ولــــې دا پــــاک پــــاک اندامونــــه کــــړه ښــــځلې
تــــا ولــــې د خــــدای هغــــه ســــازونه او ســــوزونه
څنګــــه بيعــــه کـــړي دي او اخلــــې پـــرې نوټونــــه
نــــه دي دغــــه شـــــونډې اننګــــي د خرڅولــــــو
نــــه دي پــــه بــــازار د ګرځولـــــو او وېشــــــلو[220]

سالار يوسفزی د ډمې ذکر په يوه قطعه کې داسې کوي:

لکــــه د ډمـــــې پــــه ميــــدان کــــې چورلکونــــه وهـــم
د غــــم نوټونــــه راوريـــږي د هــــر خــــوا نــــه پــــه مــــا
نــــوې ځــــواني ســــاقي جانــــان د شـــين ســــپرلي دنيــــاګۍ
مــــا خپلولــــه خــــو غربتــــه! تــــا کـــړه ورانــــه پـــه مــــا[221]

رحيم شاه رحيم په "ډمه" نظم کې داسې ليکي:

د ډمــــې ژونــــد دی يــــو ازغــــی د نــــورو لاس غوڅــــوي
د ګېــــډې اور ورتــــه اســــتوګنه پــــه نېــــران جــــوړه کــــړه
دا هــــم يــــو خــــور ده يــــوه لــــور ده يــــوه نــــږور ده د چــــا

معـــــاشرې د دې نـــــه ډمـــــه د ميـــــدان جـــــوړه كـــــړه
څـــــومره عظيمـــــه مجبـــــوري ده څـــــومره لويـــــه خـــــواري
پـــــه خپلـــــو ښـــــپو بانـــــدې چـــــې كلـــــه ګنګروګـــــان تـــــړي دا
دغـــــــــه همـــــــــه واړه د دې د ناچـــــــــارۍ چـــــــــارې دي
چـــــې د پـــــردو خلقـــــو پـــــه مـــــخ كـــــې خپـــــل زلفـــــان ســـــپړي دا
كـــــه د ډوډۍ او د ژونـــــدون ســـــوال يـــــې پـــــه مينـــــځ كـــــې نـــــه وې
پـــــه ځـــــان يـــــې ټيټـــــې ســـــورې نـــــه وې د جهـــــان پېـــــرزو
دلتـــــه بنـــــديانو تـــــه رســـــوا هلتـــــه د خـــــدای مجرمـــــه
دا بـــــده ورځ د ســـــړي كلـــــه وي پـــــه ځـــــان پېـــــر زو[۲۲۲]

تر دې ځايه پورې چې د كومو كسبګرو او پېشه ورو په باره كې منظوم خيالات وړاندې شول له دې نه د دې ټولو كسبګرو د كار كسب، معيشت، سوچ، نفسياتو او په ټولنه كې د دوی د مقام او حيثيت اندازه په اسانه لګېدلی شي.

## لوبې

په سوات كې د ماشومانو مختلف قسمه لوبې موجود دي. په دې كې د هلكانو لوبې جدا وي او د جينكو لوبې جدا وي او بعضې لوبې داسې وي چې د هلكانو او د جينكو شريكې وي. د جينكو په لوبو كې ميرګاټ، ټكو، چيندخ او غوچسكی وغيره مشهورې لوبې دي.[۲۲۳] د هلكانو په لوبو كې پټ پټونی، انګۍ، خوټه بكرۍ، رګی، كسی، ببرې، قوړنګان، ټوپۍ، شاجولۍ، علي خن خانی، توتي غوبا ډبلۍ، كرښۍ، غوزان، موسۍ، قوتی، باګه، اډی، لاچه، امپړا ككی، شا پيين پينكی او ګوتۍ وغېره شاملې دي ـ[۲۲٤] ډاكټر ديدار يوسفزی "زما لوبې" تر سر خط لاندې د ماشومانو د لوبو په باره كې داسې ليكي:

مـــــا تـــــه دي يـــــادې نـــــن هـــــم خپلـــــې لـــــوبې
د ماشـــــــــوم والي ښـــــــــكلې لـــــــــوبې
چـــــــې بـــــــه د خـــــــاورو كـــــــوټې وځځبـــــــدې
مـــــــونږ بـــــــه پـــــــه جمـــــــع صـــــــخا ګـــــــوډۍ كـــــــولې
چـــــــې اوچـــــــه زمكـــــــه شـــــــين اســـــــمان بـــــــه شـــــــولو

ځای په ځای مونږ به کرښینې کولې
ما ته دې یادې نن هم خپلې لوبې
د ماشوم والي ښکلې لوبې
د کلي غټ ډاگ ته به راغلو کله
یو تن راوړی به امپړا ککی وه
وېش به مو اوکړه د ملانو پوره
د وېشه پاتې به زمونږ څکی وه
ما ته دې یادې نن هم خپلې لوبې
د ماشوم والي ښکلې لوبې
څپلي مار هم پکې یوه لوبه وه
څپلۍ به مونږ موگې ته غونډې کړلې
یو به وه پړی د موگې نیولی
بل به ویشتې او بیا به یې منډې کړلې
ما ته دې یادې نن هم خپلې لوبې
د ماشوم والي ښکلې لوبې
اړنگ دوړنگ پکې بلا لوبه وه
بربه چابک وو او د ښپو گړندی
د کرښې برید به یې تر مینځه وه تل
د لاس په لمس به شولو مړ را ژوندی
ما ته دې یادې نن هم خپلې لوبې
د ماشوم والي ښکلې لوبې
کودري مات به مو راغونډ کړل ځانله
کور به مو بیا د دې څوکۍ کولې
شنډک به نال کړه مونږ یو ځای په زمکه
د دې په سر به مو موسی کولې
ما ته دې یادې نن هم خپلې لوبې
د ماشوم والي ښکلې لوبې

پـــــــه پټېـــــــــده پکـــــــــې د پـــــــــه پټــــــــوني
پـــــــه پـــــــه تـــــــازه ښـــــــکاري کـــــــه زوړ شـــــــولو دی
پـــــــه بـــــــه یـــــــو راغـــــــی د ســـــــوڼې غـــــــاړې لـــــــه
پـــــــه بـــــــه ناڅاپـــــــه پکـــــــې ســـــــوڼ شـــــــولو دی
مـــــــا تـــــــه دي یـــــــادې نـــــــن هـــــــم خپلـــــــې لـــــــوبې
د ماشـــــــــوم والي ښـــــــــکلې ښـــــــــکلې لـــــــــوبې
گـــــــوره نـــــــن دلتـــــــه هغـــــــه لـــــــوبې نشـــــــته
تـــــــل چـــــــې زمـــــــا او ســـــــتا پـــــــه زړه ښـــــــخې وې
زمـــــــونږ دا لـــــــوبې کـــــــه هـــــــر څنگـــــــه چـــــــې وې
اخـــــــــر زمـــــــــونږ د ثقافـــــــــت نخښـــــــــې وې
مـــــــا تـــــــه دي یـــــــادې نـــــــن هـــــــم خپلـــــــې لـــــــوبې
د ماشـــــــــوم والي ښـــــــــکلې ښـــــــــکلې لـــــــــوبې[۲۲۵]

په دې نظم کې نه یوازې د ماشومانو د ځینو لوبو نومونه ذکر شوي، بلکې د دغو لوبو طریقه کار هم پکې بیان شوی دی. په سوات کې د ماشومانو په لوبو کې علاقایي تنوع په نظر راځي، کله کله په یوه علاقه کې د یوې لوبې یو نوم وي، خو بیا دغه لوبه په بله علاقه کې په بل نوم یادیږي. کله کله پکې د کردارونو نومونه لږ له یو بل نه بدل وي.

## د طالبانو اتڼ

د طالبانو د اتڼ په باره کې فضل محمود روښان لیکلي، چې په سوات، دیر او باجوړ کې به  طالبانو لکه د ملایانو سپینې جامې اغوستلې. دوی دیني تعلیم حاصلوي ځکه ورته طالبان وایي، یعنې د تعلیم او علم طلب کوونکي. پخوا به دوی کله کله په ترنگ کې راغلل او په جماعتونو کې به یې اتڼ واچوه، د جماعت بروزې به پاس په برگو کې بانده شوې. د طالبانو په دې اتڼ کې به ډول سرنا نه وه، خو البته تبرگۍ به وې او د هغې نه به یې ساز ویسته اول به پکې دوه څلور کسانو د اتڼ مخصوص شعرونه په خواږه اواز وویل، ځینو به پکې لاسونه پړقول او په خوله باندې به یې باقاعده ډولکی وهلو. د رباب اوازونه به یې د خولې نه ویستل او پاتې طالبان به د دایرې په شکل کې گډېدل. د چټې طالبانو اتڼ د پښتونخوا د سوات دیر باجوړ د قدیم تاریخ سره ژور تعلق لري.[۲۲۶] د طالبونو د اتڼ متعلق دا متل مشهور دی چې "د طالبانو اتڼ دی گډیږي شا په شا او پړق له مینځ له راځي"[۲۲۷]

## ټوقماران

په سوات کې دوه ټوقماران(خندوونکي) ډېر مشهور وو. د يو نوم شرپ گل او د بل نوم لطيف ټوقمار و.

## لطيف ټوقمار

د لطيف ټوقمار پ اړه وکيل حکيمزی ليکي چې لطيف د سيبوجني د جورې کلي اوسېدونکی و. د هغه په حقله مشهوره ده چې ډېر ډاگيز او ټوقي سړی وه، هغه به چې کله نائکانو د چا کره په سوال جواب اولېگلو او يا به هسې د چا مېلمه شه نو ډوډۍ ته به يې فکر کولو. که چا به ورله ښه ډوډۍ ورکړه نو ده به ويل لطيفه! ته هېڅ سړی نه يې خو دا کوربه ډېر ښه سړی دی او که چا به يې ښه دارو مدار اونه کړه نو بيا به يې ځان ته ويل لطيفه! مه خفه کېږه ته ډېر دروند او ښه سړی يې خو دا کوربه ډېر بې خونده سپک او بې غېرته دی، ځکه يې ستا قدر او نه کړه[٢٢٨]

## شرب گل ټوقمار

شرب گل د سوات ډېر مشهور ټوقمار تېر شوی دی. اول په کالاکوټ کې اوسېده او بيا وروستو دکالاکوټ نه لاړ. د ده په باره کې دا هم وايي چې دی د فتح پور وه. دی د سوات د باچا صيب تنخواه خور ټوقمار وه، نو ځکه ورته باچائي ټوقمار يا شاهي ټوقمار هم وايي. د شرب گل ډېرې ټوقې او قيصې مشهورې دي.[٢٢٩]اگر چې حقيقت نه لري خو بعضې خلکو ليکلي دي چې د سوات د اباسين کوهستان په قبضه کولو کې هم د شرب گل ډېر لوی لاس وه، وايي چې د کوهستانو په يوه جرگه کې دی کوهستانو ته د هغوی په شکل کې مخاطب شه چې دا جنگ مونږ نه شو گټلی نو مونږ له د سوات د باچا صيب سره روغه پکار ده او بيا هغه کوهستاني د ده په قيادت کې د وزير صيب او باچا صيب سره مېلاو شول او اخر کې پته اولگېده چې دا کوهستانی ملک نه وه بلکې شرب گل وه.[٢٣٠]

## پښتو ژبه

لکه څنگه چې مخکې ذکر شو چې د دې دور په ادب کې د پښتنې خاورې ذکر شوی دی، همدغه رنگ د دې دور په ادب کې د پښتو ژبې ذکر هم شوی دی، "د پښتو په نوم" نومې يو نظم يو څو کرښې دا دي:

ای زمـــــا ژبـــــې ای زمـــــا د خانـــــدان ژبـــــې
تـــــا لیـــــدل غـــــواړم پـــــه اســـــمان ژبـــــې
ســـتا پـــه لمـــن کـــې پـــه کـــثرت سره هـــيرې وينمـــه
در و گـــــوهر دې د رحـــــمان بابـــــا مصرـــــعې وينمـــــه
د خوشـــحال خـــان خـــواږه شـــعرونه بـــې نـــاغې وينمـــه
تـــل ځلنـــده بـــه دې ســـاتي تـــا ســـتا شـــاعران ژبـــې
تـــــا لیـــــدل غـــــواړم پـــــه اســـــمان ژبـــــې[۲۳۱]

په دې دور کې د پښتو ژبې د سرکاري حيثيت په ختمېدو باندې خلکو په پښتو کې خپل درخواستونه او نور ليکل هم پرېښودل او دغه وجه ده چې پښتو ژبه رو رو سپکېدو طرف ته روانه وه ، لکه يو شاعر چې وايي:

درنـــه پښـــتو پښـــتنو داســـې حـــد لـــه ســـپکه کړلـــه
چـــې پـــه پښـــتو ژبـــه عـــرضي د چـــا قبولـــه نـــه ده
مـــور پـــه پښـــتو ژبـــه بچـــو تـــه دعاگـــانې کـــوي
شـــايد پـــه دې وجـــه د مـــور دعـــا قبولـــه نـــه ده[۲۳۲]

له پښتو سره مينه لرونکي ليکوالان دا هم وايي چې که مونږه د پښتو په روح ځان پوهه کړو نو ترقي او کامراني به بيا زمونږ په پښو کې پرته وي. د اغيارو ژبې ايزده کول ښه کار دی او د علم سره تعلق لري او علم حاصلول په هر مسلمان فرض دي، ليکن خپله مورنۍ ژبه شاته غورځول او پردۍ ژبې په خپل ځان او ذهن حاوي کول د غلامۍ سبب جوړيږي،[۲۳۳] خو دا خبره هم د يادونې وړ ده " چې څوک پښتو اوخوړل او چا پښتو اوخوړه"[۲۳۴]

يو بل شاعر د پښتو ژبې په باره کې داسې وايي:

دا کـــــه ماتـــــه ده خـــــوږه نـــــو هســـــې نـــــه ده
بـــې لـــه دې نـــه مـــې نـــور څـــه دي پـــه هســـتۍ کې
پـــه ځـــانگو کـــې زه پـــه دې يـــم للـــو شـــوی
لکـــه مـــور مـــې اشـــنا شـــوې پـــه ســـبزنۍ کـــې[۲۳۵]

ډاکټر ديدار په يو بل ځای کې پښتو ژبې ته د عقيدت پېرزوينې داسې وړاندې کوي:

تــــــــه د گلرنگــــــــــه پسرــــــــــلو ژبــــــــــه یــــــــــې
تــــــــه د خائســـــــــت او د جرگـــــــــو ژبـــــــــه یــــــــې
تــــــا ورلــــــــه مینــــــــه د خپــــــــل ځانـــــــه ورکــــــــړه
تــــــــــه د ادم او د درخــــــــــــو ژبـــــــــــه یــــــــــــې
ســــــتا پــــــه یــــــــو ټکـــــــي د حیـــــــا نــــــــه سره شي
تــــــــه د لـــــــــیلٰی د اننگــــــــــو ژبـــــــــه یــــــــې[۲۳۶]

حبیب الرحمٰن حبیب د ژبې اهمیت داسې بیانوي:

چـــې ژونـــدې وي د چـــا ژبـــه هغـــه قـــام ژونـــدی او لـــوړ دی
چـــې شي مـــړه د کـــوم قـــام ژبـــه، کـــه ژونـــدی وي هغـــه مـــړ دی
ترقـــــي کـــــه تنــــزل دی دي پــــه ژبـــــه کــــې دا دواړه
خپلـــه ژبـــه چـــې پـــرې نـــه بِږدې، خپلـــه ژبـــه تېـــغ لـــوړ دی[۲۳۷]

رحیم شاه رحیم پښتو ته د عقیدت پېرزونې داسې وړاندې کوي:

ای د پـــــامیر پـــــه لـــــوړو زمکـــــو زېږېـــــدلې پښـــــتو
د نومـــــــــوړو ننگیـــــــــالو د سربـــــــــازانو ژبـــــــــې
اوســـــتا خـــــور د اریـــــا لـــــور د درونـــــد پـــــړوني مېـــــرمن
د غیـــــــرتي پښـــــــتون شـــــــملې د سربـــــــازانو ژبـــــــې[۲۳۸]

له پښتو ژبې سره د سوات د پښتنو د دې مینې په وجه پښتو ادب په سوات کې ډېره ترقي کړې ده او په نظم او نثر کې ډېر تخلیقات نن زمونږ مخې ته پراته دي، خو بیا هم پښتو ته چې څومره توجه ورکول پکار وو هغه و نه شوه او ډېر خلک داسې هم شته چې پښتو ژبه نه شي لوستی. دا احساس د یو شاعر په ژبه طنزیه انداز کې داسې بیان شوی دی:

څـــه فضـــول کـــار دی چـــې خـــبرې پـــه پښـــتو کـــې لـــیکم
مـــا تـــه لا چـــا وې چـــې شـــعرونه پـــه پښـــتو کـــې لیکـــه
پښـــــتانه نـــــن هـــــم د پښـــــتو ژبـــــه لوســـــتلی نـــــه شي
مشـــوره دا شـــوه چـــې لیکـــې نـــو پـــه اردو کـــې لیکـــه[۲۳۹]

د پښتو ژبې د زوال ډېر اسباب دي چې شاعرانو په دې خبرو ویر وینا کړې ده، دلته یوه خبره د قدر وړ ده چې که په سوات کې د پښتو سرکاري سرپرستي ختمه هم شوه، خو

د سوات د ليکوالانو او شاعرانو جذبه دومره ده چې په پښتو کې ادبي تخليقات ښه په تېزۍ سره روان دي، چې د پښتو ژبې او ادب جولۍ ډکوي.

## پښتونولي

پښتو چې له ژبې سره سره د يو ضابطه حيات نوم هم دی، د پښتو يا پښتونولۍ خپل خصوصيات دي چې پکې مېلمستيا، غيرت، بدل، پنا، ننواتې، جرگه او نور شامل دي. ننواتې يا منت ته خلک لمن غوړول يا جولۍ غوړول هم وايي، لکه په دې شعرونو کې د لمن ذکر داسې شوی دی:

تـــه چـــې د منـــت زارۍ هـــر چـــا تـــه غـــوړوې لمـــن
دا دې د کروړونـــــو لمـــــن کړلـــــه د پيســـــې لمـــــن
دې د قـــدر وړ لمـــن تـــه ســـپک نظـــر پکـــار نـــه دی
هـــر چـــا خپلـــې ســـترگې وچـــې کـــړې دي پـــه دې لمـــن[240]

ځينې خلک په ناحقه ټينگ ودرېدل او ضد کولو ته پښتو وايي،لکه د "فلانی خان" نومې نظم دا دوه شعرونه وگورئ:

کـــه مـــې خپـــل ورور تـــه جـــواب پرېښـــوده افغـــان بـــه نـــه يـــم
ورور کـــه مـــې ورور کـــړه دا مـــې واوره مســـلمان بـــه نـــه يـــم
پـــه خلـــه بـــه چغـــې د پښـــتو پښـــتونولۍ وهمـــه
کـــه د پښـــتو خـــدمت مـــې اوکـــړه فلانـــې خـــان بـــه نـــه يـــم[241]

د پښتو او پښتونولۍ چې کوم سپېڅلي صفات دي هغه ورو ورو ختمېږي، لکه يو شاعر وايي:

دينـــــداري دوســـــتي پښـــــتو غېـــــرت لوظونـــــه
پښـــــتنو پرېښـــــودل خويونـــــه د اســـــلاف
د خلـــــوص مينـــــې وفـــــا وختونـــــه لاړل
د چـــا نشـــته دې يـــو بـــل تـــه تنـــدی صـــاف[242]

د پښتنو يو بل صفت بدل دی، که څوک ورسره زور ظلم وکړي نو د هغې بدل هم نه هېروي او که څوک ورسره ښه وکړي، نو د هغې بدل هم گرځوي، لکه د "بدل" تر سر خط لاندې دا شعرونه هم دغه مفهوم په گوته کوي:

تـــا کـــه اظهـــار پـــه مـــا د مينـــې هـــر ســـاعت کـــړی دی
مـــا هـــم عمـــل د پښـــتنو پـــه روايـــت کـــړی دی
ماتـــه مېـــرې دې هـــم خـــوږې د گلـــدرو پـــه شـــان دي
مـــا د ازغـــو دې هـــم د گـــل غونـــدې صـــفت کـــړی دی[٢٤٣]

په پښتنه ټولنه کې د مينې محبت اظهار هم په ډاگه نه شي کولی؛ په زړه چې هر څه تېرېږي خو په خوله غږ نه شي کولی. دا قسمه احساسات په دې نظم "پښتو" کې بيان شوي دي:

تـــه د همزولـــو سره ناســـته د خنـــدا نـــه شـــنه يـــې
څـــوک دې پـــه زلفـــو بـــې اختيـــاره اوشـــيندي گلونـــه
تـــه د حيـــا نـــه تکـــه سره شـــې خـــو څـــه غـــږ نـــه کـــوې
پـــه ســـپين رخســـار دې الـــول شي الـــواني رنگونـــه
زمـــا نامـــه دې خلـــې تـــه راشي اخســـتل يـــې غـــواړې
ولـــې "پښـــتو" دې پـــه احســـاس اولگـــوي چکونـــه[٢٤٤]

په پښتنه ټولنه کې يوه پښتنه پېغله په پرده کې برکتي، ښايسته او حياداره ښکارېږي، دا حيا او ښکلا د رحيم شاه رحيم د يو نظم "پښتو" په دې بندونو کې ښکارېږي:

هاغـــه درنـــه پښـــتنه پېغلـــه مـــې پـــه څنـــگ تېرېـــده
چـــا چـــې د ژونـــد د فلســـفې نـــه خـــبردار کړمـــه زه
سر نـــه تـــر پښـــو پـــورې وه پټـــه پـــه يـــو نـــوي شـــان کـــې
هغـــه پـــړدې هغـــه حيـــا يـــې نـــا قـــرار کړمـــه زه
تـــا بـــه ويـــل چـــې دا پړونـــی چـــا گنـــډلی پـــورې
پکـــې دوه ســـترگې ښـــکارېدې نظـــر يـــې ښـــخ پـــه زمکـــه
د نـــازو قيـــنج او خرامـــان د قيـــد و بنـــد نـــه خلاصـــه
د چـــا پېـــر چـــل نـــه بـــې پـــرواه وه پـــه خپـــل ځـــان کـــې ورکـــه
درنـــــه درنـــــه برکتـــــې ټولـــــه حيـــــا حيـــــا وه
ثقـــــافتونو يـــــې عظمـــــت تـــــه ســـــلامونه کـــــول
دا د فطـــــرت د تقاضـــــو يـــــوه ســـــاتونکې جينـــــۍ
او فرشـــــتو د دې عصـــــمت تـــــه ســـــلامونه کـــــول[٢٤٥]

يـواځې دا خـبره کـافي نـه ده چې څـوک پښـتو ژبـه وايـي، نـو هغـه بـه د پښـتو پـه معيـار پـوره وي. پښـتو ژبـه ويـل ځانلـه څيـز دى او پښـتو کـول او پـه پښـتو پوهېـدل ځانله خبره ده، لکه شاعر چې وايي:

پـــــــه لحـــــــــاظ د وزن ټـــــــــول خلـــــــــق درانـــــــــه دي
د احســـــــــاس غېـــــــــرت او پـــــــــوهې درانـــــــــه گـــــــــورم
پښـــــــــتو ژبي پښـــــــــتانه خـــــــــو پـــــــــه دلـــــــــو دي
انقـــــــــلاب لـــــــــه د پښـــــــــتو پښـــــــــتانه گـــــــــورم[٢٤٦]

د پښتونولۍ مختلف عناصر د دې دور په ادب کې موندلی شي، يوه خبره د يادونې وړ ده چې د پښتونولۍ پر ځای په ادب کې او د عامو خلکو په خبرو کې د پښتو لفظ کارولی شي، لکه خلک وايي فلانی په پښتو نه پوهېږي يا داسې وايي چې پښتو يې سرته ورسوله، پښتو يې وکړه او داسې نور.

## پېغور

پېغور هم د پښتنو او پښتونولۍ يو توکی دی، اگر چې له پېغوره ډېرې مسئلې پيداکېږي، خو خلک بيا هم يو بل ته پېغورونه ورکوي.د دې دور په ادب کې يې ذکر په دې شعرونو کې راغلی دی:

هـــــم پـــــه چـــــم گاونـــــډ کـــــې راتـــــه شـــــور جـــــوړ شـــــه
بـــــل ســـــتا انتظـــــار راتـــــه پېغـــــور جـــــوړ شـــــه[٢٤٧]

او بل ځای داسې وايي:

نـــــه يـــــار مـــــې لېـــــونی وه او نـــــه زه هـــــوس پرســـــت ووم
خـــــو ليـــــک وه د تقـــــدير دا د پېغـــــور خـــــبره نـــــه ده[٢٤٨]

پېغور د ډېـرو خـبرو لپـاره يـو لـوی محـرک وي، کلـه کلـه بـه د پېغـور لـه وجـې ډېـر ظلمونـه هـم کېـدل خـو د پېغـور فايـده دا وه چـې لـه دې سره بـه خلـک يـو کـار تـه هڅېدل هم. د وخت په تېرېدو سره د پېغور اثر هم ختمېږي، لکه شاعر چې وايي:

پـــــه شرم اوشرمېـــــږه هغـــــه څـــــوک چـــــې پـــــرې پـــــوهېږي
بـــــې شرمـــــو تـــــه څـــــه شرم څـــــه پېغـــــور چـــــې رښـــــتيا وائـــــم[٢٤٩]

پـه مجمـوعي توگـه کـه وکتـل شي نـو پېغـور ورکـول پـه پښـتنو کـې ښـه نـه شي

ګڼلی اګر چې پښتانه يې کوي خو له دې عمل نه په ټولنه کې دښمنۍ او مسئلې پيدا کېږي، نو ځکه له دې نه خلک د بچ کېدلو کوښښ کوي.

## ټولنيز ژوند ژواک

ځينې خبرې چې په ټولنه کې ورو ورو کمېږي، ليکوالانو ته د هغوی د کمي احساس هم شوی دی، لکه دا شعرونه د ټولنيز ژوند ژواک ځينې داسې مهمې خبرې په ګوته کوي، چې يا ختمې شوي او يا ختمېدو طرف ته روانې دي:

نـــه بـــه بيـــا پېغلـــې ټـــولګي اوځـــي پټـــو تـــه
نـــه بـــه بيـــا پـــه مېـــرو جـــوړ شي پرســـتان
نـــــه بـــــه بيـــــا د لوپټـــــو دور دوره شي
نـــه بـــه پېغلـــې شي درخـــو او ګـــل خوبـــان
نـــه بـــه بيـــا پـــه حيـــا مـــړه مـــامونۍ راشي
نـــه بـــه بيـــا د شـــېر عالمـــه شي قربـــان[٢٥٠]

د وخت په تېرېدو سره په ټولنيز ژوند کې چې کوم بدلون راغلی د هغې زيات اثرات د ښځو پر ژوند پرېوتي دي، ځکه چې ګودرونه ختم شول، د ښځو د سېل سپاټې مېلې او زيارتونو ته تلل هم ختم شول، البته بازارونو ته تلل زيات شول.

## جرګه او حجره

جرګه او حجره د پښتنو مهم خصوصيات دي، د مسئلو او شخړو حل کولو لپاره د پښتنو د رواج مطابق د مشرانو راجمع کېدل او پر يوه مسئله باندې بحث کول او هغه په پر امن طريقې سره حل کولو ته جرګه وايي. حجره د کلي د شريکې مېلمه خانې ته وايي، اګر چې کله کله دا د کلي د خان ملک ذاتي جاګير وي خو فايده ترې ټول اخلي. په حجره کې له جرګو نه علاوه هم مشران ناست وي او د کلي او قبيلې پر مسئلو بحثونه کوي، کشران هم د مشرانو ترڅنګ په حجره کې کېني چې له مشرانو نه د هوښيارتيا خبرې زده کړي او د هغوی له تجربو نه استفاده وکړي. خوشحال خان خټک وايي:

بـــې جرګـــې نـــه بـــه هـــېڅ کـــار پـــه لاس وانخـــلي
چـــــې خـــــبر وي د جرګـــــې پـــــه برکـــــت

جرګه او حجره د پښتنو امتيازي خصوصيات دي. د دې دور په ادب کې د دې ذکر

په مختلفو ډولونو موندلی شي، لکه دا قطعه:

هســــکه پــــه هــــر ځـــــای ســـــاتي شــــمله د پښــــتنو
ښنگـــــه بـــــه زه نـــــه ســـــاتم شــــمله د پښــــتنو
تـــــړي د سرو وینـــــو کـــــړي قائـــــل پـــــه وررلـــــی
ځـــــومره لـــــوړ مقـــــام لـــــري جرګـــــه د پښــــتنو[251]

د حجرې د اهمیت او بیا د حجرې له زوال سره چې په اجتماعیت کې کوم زوال پیدا شو د هغې په باره کې محمد افضل خان لالا داسې لیکي:

د پښتنو اکثرې ادارې په اجتماعیت ولاړې وې او فیصلې یې د جرګې له لارې کېدې، د قام قبیلې مشر خان او ملک به د جرګې له لوري په قامي اتفاق سره ټاکلی کېده، د مشر مهمان خانه او د فیصلو ځای چې په حجره یادېږي به د ټول کلي یا کم از کم د ټولې محلې شریکه حجره وه، د دې حجرې خرڅ اخراجات او د خانۍ ملکۍ د تحفظ د پاره به ټول قام شریک جائداد مختص کولو.[252]

یو بل ځای کې افضل خان لالا د جر ګې د اهمیت په باره کې وایي چې زمونږ د ټولو خپلمنځي اختلافاتو ختمولو لار جرګه ده. پښتون قام د خپلې هرې مسئلې حل د جرګې د لارې لټولی دی ان تر دې چې خپل بادشاهان یې هم په جرګه منتخب کړي دي.[253] د جرګې فیصله به چرته هم نه شوه ماتېدلې، خو د وخت په تېرېدو سره د پښتون لوظ او جرګه هم ورو ورو کمزوري کېدل، لکه شاعر چې وایي:

نـــــه اتیـــــا دســــتخطه نـــــه یـــــو لـــــوظ د پښــــتون زلمـــــي
نــــــن هغـــــه چرچـــــه یـــــې د وعـــــدو تلـــــې راغلـــــې ده
ډېـــــر کـــــوه احتیـــــاط حســـــن پرســــته روغانیـــــه نــــــن
ځکـــــه زمانـــــه خـــــو د جرګـــــو تلـــــې راغلـــــې ده[254]

د جرګې خپل اصول او طریقه کار په پښتونولۍ کې هر چا ته معلوم دی، چې کله د دوو فریقو تر مینځ څه مسئله را پیدا شي نو دواړه فریقه د دغې ستونزې د حل کولو لپاره جرګې ته مکمل اختیار ورکوي او بیا دواړه فریقه د دې پابند وي چې د جرګې فیصله به مني.

## د خېر ښېګړې کلیوال تنظیمونه

په پښتنو کې د غم ښادۍ او کلي کلوبغۍ اصطلاحات د دوی د ټولنیزې مرستې

غمازي کوي. د غم ښادۍ په موقعه له يو بل سره مرسته کول خو د پښتونولۍ په بنيادي اوصافو کې راځي خو په دې سلسله کې منظّم تنظيمونه په سوات کې د رياست له ادغام نه وروسته په وجود کې راغلي دي. په دې باره کې "ادهيانه ټوډي"رساله په خپله اداريه کې داسې ليکي:" د کليوالو تنظيمونو تاريخ په سوات او ګېرچاپېر کې ډېر لنډ دی، د دې وجه يواځې د والي سوات نه وه خو د سيمې خپل سماجي جوړخت هم وه، د سوات نه سوشل ويلفېر محکمې سره وړومبی کليوال تنظيم (CBO) په ۱۹۷۷ کې رجسټر شه.[۲۵۵]

## ګودر

ګودر د کليوال ژوند يو مهم جز دی، دلته د کلي پېغلې د اوبو وړلو لپاره راځي او دا ځای د جينکو د سېل او تفريح يو مقام وي. په پښتو ټپه کې ګودر ډېر ذکر شوی او په تحريري ادب کې هم د ګودر ډېرې حوالې مونډلی شي، د نمونې په توګه دا يو شعر:

تـــــــا تـــــــه د ګـــــــودر لارې څارمـــــــه زه
راشـــــــه مـــــــازيګر دی ای شـــــــيرين اشـــــــنا[۲۵٦]

خو لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول د وخت په تېرېدو سره ګودرونه په کمېدو دي او له دې سره ډېر بدلون راغی.

## په ټولنه کې د ښځو مقام

پښتانه د هلک په پيدايش ډېر خوشحاله وي او د جينۍ په پيدا کېدلو خفه کېږي.[۲۵۷] په دې باره کې محمد اصف خان ليکي چې د پښتنو وطن کې هم بعضې علاقو کې د لوڼو پيدائش د خلقو د پاره د خفګان باعث وه. د چا کره چې به لور پيدا شوه نو خلق به پرې خوشحاله نه وو، خو اوس د خلقو فطرت بدليږي اوس خو لوڼو ته هم خلق اولاد وايي او تعليم ورله ورکوي او ښه تربيت او پالنه يې کوي.[۲۵۸] د ماشوم د پيدا کېدو نه څلوېښت ورځې بعد د ماشوم مور د څلوېښتۍ غسل کوي چې ورته د څلوېښتۍ اودس هم وايي.[۲۵۹] په ټولنه کې چې له ښځو سره کوم زياتی کېږي او هغوی ته د هغوی برابر حقونه نه ورکول کېږي د هغې په باره کې هم د دې دور په ادب کې څه نه څه اواز پورته شوی دی، لکه دا نظم " ای زما د وطن پېغلې" د دې نظم يو څو شعرونه دا دي:

ستا په سر جهان جنت دی — پـــه ژونـــدون کـــې دا زينـــت دی
ستا د لاسه هر راحت دی — ســـــتا خمـــــير د محبـــــت دی

خو ستا عمر مصیبت دی ستا په غاړه هر ذلّت دی
ستا دردونه چې رایاد کړم نو غوټو ته کتی نه شم
ای زما د وطن پېغلې ستا سلگو ته کتی نه شم
د رسمونو په تنور کې د صدو راسي سوزېږي
نذرانې د روایاتو د ډنگرو شان خر ځېږي
په چړو د رواجونو څه بې دریغه حلالېږي
ستا فریاد بې وفایي ده بې حیا یې که ژړېږي
د حیا او د وفا دې فلسفو ته کتی نه شم
ای زما د وطن پېغلې ستا سلگو ته کتی نه شم
نه دې زړه نه دې ضمیر شته نه دې حق څه د اظهار شته
ابتدا نه انتها ستا نه سفر او نه دې لار شته
یوه وینځه یې نور څه یې نه دې واک نه دې اختیار شته
په هر ځایی ته قربانېږی څه خو حد د دې ایثار شته
په لمدو سترگو کې پټو دې گیلو ته کتی نه شم
ای زما د وطن پېغلې ستا سلگو ته کتی نه شم[260]

دا شعري بیان دی نو ارو مرو به مبالغې هم وي پکې خو بیا هم په ټولنه کې له ښځو سره د امتیازي سلوک اندازه ترې کېدلی شي. د غیرت په نوم د ښځو د قتل خلاف هم په دې دور کې اواز پورته شوی دی. په دې اړه یو شاعر د Honour Killing تر سر خط لاندې په یو نظم کې داسې لیکي:

نن بیا نفرت خور شه
مئېنان اوبوگنېدل
ماشومان او یرېدل
نن بیا دهشت خور شه
کائنات اولړزېدل
فضا شوه وینې وینې
مرغان گونگي گونگي شو
وروڼه اوس خوینددې خپلې

رخصـــــــتوي څـــــه پـــــه "شـــــان"
دي پـــــه جهيـــــز کـــــې روان
د پـــــالنگونو پـــــه ځـــــای
د جنـــــــازې کټونـــــــه
د مـــــــاتمونو جـــــــنج دی
ســــــامان د وينـــــو اوشـــــه
نـــــن بيـــــا زمـــــونږ پـــــه ښـــــار کـــــې
بـــــاران د وينـــــو اوشـــــه
د يـــــو قابيـــــل لاســـــونه
د يـــــو قاتـــــل لاســـــونه
د ورور پـــــه وينـــــو سره شـــــو
د خـــــور پـــــه وينـــــو سره شـــــو[٢٦١]

د عصري تعليم يا د نوي دور د فېشن له وجې چې د ښځو په ژوند کوم اثرات پرېوتي، د هغې تصوير کشي په دې نظم کې شوې ده:

ښځه نن ښه تنگ لباسه وينم سرخـي پـوډر پـرې لا د پاسـه ويـنم
پاتې پرده د جهالت نخښه شوه تلونکې يـې ښـار کـې بـې وسواسـه ويـنم
ادم لغــړ کــړه پــه جنــت کــې شــيطان بــې پردگــي د ده د لاســه ويــنم
عرياني ښه ده شوه حصه د فېشن څومره ابليس موقعـه شناسـه ويـنم[٢٦٢]

يو هلک د خپلې مور يا پلار په مخکې د خپلې چنغلې نوم نه شي اخستې او دا نوم اخستل يو شرم گڼلی شي. دغه رنگ په اول وخت کې خپل ماشومان هم په غېږ کې نه شي اخستی،کومه جينۍ چې کوم هلک له وغوښتلې شي نو د واده نه مخکې هغه د هغه هلک نه پټېږي او هغه ته مخامخ نه شي راتلی.[٢٦٣]

## د واده رسمونه

د پښتنو ځينې رسمونه ډېر ناکاره دي چې پخپله ترې هم ډېر خلک تنگ دي خو د خلاصېدو چل ورله نه ورځي. په دې رسمونو کې د واده بعضې رسمونه هم شامل دي لکه د هلک او جينۍ د رشتې په موقعه د دواړو د رضامندۍ تپوس نه کوي خو مشران پخپله

مرضۍ دا رشته جوړوي.[٢٦٤] هلک او جینۍ که په خپله مرضۍ واده وکړه نو دا جرم دی.[٢٦٥] د واده ځینې رسمونه دا دي: د جیني د واده په وخت کې د هلک له پلار نه د کلي او د پلو د خلکو د ډوډۍ لپاره پیسې اخستل، د نکاح په وخت کې له جینۍ نه اختیار اخستل، دغه اختیار او واک په وس سره نه ورکول او تر نیمې شپې پورې دغه واک ته کېناستل، په جینۍ پسې په اوومه ورځ اوومه وړل، جنجیان په ګټو او غوشانو ویشتل او په هغوی پسې چغې وهل، هغوی ته شرط ایښودل او تر څو چې به دغه شرط پوره شوی نه و ډولۍ نه ورکول، د کوژدنې له ډوډۍ نه وروسته لاسونه نه وینځل، بلکې په ټوکي پاکول، واده شوې جینۍ په اختر شوقدر کور ته راوستل او میاشت نیمه بیرته نه لېږل، وړوکې جینۍ د اینګور په ځای د نیولو لپاره د هغې لمن څیرول وغیره وغیره داسې رسمونه وو چې څه ورو ورو کمېږي او څه لا اوس هم موجود دي.[٢٦٦] په پښتنو کې دا یو رسم هم موجود دی چې د لور له واده سره پلار د لور کور ته نه ځي.[٢٦٧] له دې نه علاوه د واده نور رسمونه او رواجونه هم په پښتو ادب کې مونډلی شي. د واده د څه نورو رسمونو رواجونو په باره کې یو شاعر داسې وایي:

خلقـــــو لېـــــونی کړمـــــه ځـــــامنو لـــــه واده کـــــوم
دا مــــې اراده ده چــــې بــــې شــــانه یــــې ســــاده کــــوم
ورځــــې څــــو چــــې تېــــرې شــــوې د خلقــــو وېــــرې واخســــتم
داســــې د خــــیرات پکــــې اوس ځکــــه اراده کــــوم
ورځــــې څــــو چــــې تېــــرې شــــوې نــــو بیــــا فکرونــــو واخســــتم
خــــوري بــــه هــــر ســــړی بیــــا د خــــبرې اعــــاده کــــوم
غوښــــې لــــه څــــاروي بــــه اخلــــم لــــږې وریــــژې څــــو بــــورۍ
خپــــل بــــه مــــې مېلمــــه وي ټــــول د قرضــــه افــــاده کــــوم
شــــکر دی مــــاړه شــــو ټــــول اللــــه بــــچ د خفګانــــه کــــړم
اوس بــــه د دنیــــا روزګــــار د پــــور پــــه لبــــاده کــــوم
قــــرض قــــرض خواهــــه غــــواړي شــــېره چرتــــه وتښــــتم
ســــود د خفــــه زړه بــــه پــــه ســــاقي جــــام و بــــاده کــــوم[٢٦٨]

## سهرې

شاعران د خپلو خپلوانو یا د یارانو دوستانو د واده په موقعه خاص نظمونه هم لیکي چې په ادبي اصطلاح کې ورته سهرې وایي. له دې نظمونو نه هم د واده د ځینو رسمونو او

رواجونو پته لګي. د واده په موقعه دا قسمه نظمونه په انګرېزۍ کې هم ليکل شوي دي. په انګرېزۍ کې ورته Prothalamion وايي. د مثال په توګه د روح الامين ناياب يو نظم " د ناصر په واده" وړاندې کولی شي:

ګلونـــــــه د ډولـــــــــۍ دې پـــــــه سرو شـــــــونډو ښـــــــکلومه
زه لارې د ډولـــــــــۍ دې پـــــــه ښـــــو جـــــــارو کومـــــــه
نـــــــن هغـــــــه شـــــــو تـــــــرسره د مـــــــودو وو ارمانونـــــــه
چـــــــې لـــــــرې د وطنـــــــه زړګـــــــۍ ورو ورو خندومـــــــه
زه هغـــــــه د جهلـــــــم او د کوهـــــــاټ واړه يادونـــــــه
ربـــــــاب د تصـــــــور کـــــــې ښـــــــه بـــــــې واره غږومـــــــه
پـــــــه زړه مـــــــې راوريـــــــږي د يـــــــارانو محفلونـــــــه
لا نـــــور بـــــې صـــــبره کيـــــږي چـــــې زړه څـــــومره صـــــبرومه
ډيـــــــوې پـــــــه تنهـــــــائۍ کـــــــې د يـــــــادونو بلومـــــــه
ناياب ــــــه! کـــــــه د ســـــــترګو نـــــــه د اوښـــــــکو څڅومـــــــه[٢٦٩]

محمد جان لوهار د ډاکټر احمد هلال د واده په موقعه چې کومه څهره [سهره] ليکلې ده، د هغې يو څو شعرونه دا دي:

مبـــــــارک تاتـــــــه دې واده احمـــــــد هلالـــــــه! کـــــــړي رب
تاســـــو دې دواړه پـــــه يـــــو بـــــل بانـــــدې خوشـــــحاله کـــــړي رب
ســـــــتا والـــــــدينو تـــــــه زه هـــــــم مبارکبـــــــاد ورکـــــــوم
هغـــــوی دې هـــــر وخـــــت پـــــه امـــــان د هـــــر زوالـــــه کـــــړي رب[٢٧٠]

د واده سـهرې يـو باقاعـده ادبي صـنف ګرځېـدلی او بيـا چـې کـومې سـهرې د واده په موقعه راجمع شي، نو د کتاب په صورت کې بيا چاپ کېږي.

### د غم رسمونه

د مړي د غم په وخت کې به په بعضې علاقو کې بعضې خلقو دا قسمه رسمونه کول. په مړي پسې ډېر اسقاطونه کول، ګوړه صابن او پيسې وېشل، ماښامونه، جمعې، څلوېښتمې او تلينونه کول،د مړو اخترونه کول، د مړي د لمبولو په ځای درې ورځې ډيوه يا رڼا بلول.[٢٧١] خلک دا کوښښ کوي چې د خپل خاندان مړي ټول په يوه مقبره کې دفن کړي.[٢٧٢]

## خراب رسمونه رواجونه

ځينې رسمونه او رواجونه داسې وي چې د ټولو خلکو په پښو کې لکه د بېړۍ لګېدلي وي. له داسې قسمه رسمونو رواجونو نه خلاصېدل ډېر وخت او کړاو غواړي ځکه دا له پېړو راهيسي په ټولنه کې مضبوطې ځېلې لري. په دې شعرونو کې د دا قسمه "سخا" رسمونو ذکر شوی دی:

ســــــــتا يادونــــــــــه رانــــــــه تــــــــاو دي ای صـــــــــنمه
سره اورونــــــــــــه رانــــــــــه تـــــــــــاو دي ای صـــــــــــنمه
د پښـــــــتون زړګـــــــي نــــــه ګــــــف ويســـــتلی نـــــه شـــــم
ســــــــخا رســــــــمونه رانــــــــه تـــــــاو دي ای صـــــــنمه[۲۷۳]

ځينې ټولنيز رسمونه داسې دي چې هغوی په انسان د اظهار پابندي هم لګولې ده او د کومو خبرو اظهار چې په رواج کې منع وي نو د هغې اظهار بيا څوک نه شي کولی.

## اختر

لکه څنګه چې مخکې په تفصيل سره ذکر شوي، چې د پښتو په زمانه کې به د اخترونو په موقعه جنګونه او د جهل مظاهرې کېدلې، اوس دې دور کې خلق د اختر په ورځ لوی واړه نوې جامې اغوندي او د اختر مونځ له تيارياني کوي[۲۷٤] او دا رنګه اوس اخترونه د جنګونو پر ځای د خوشحالو ورځې وي.

## خوراک

د سوات په اهمو خوراکونو کې وريژې ډېر اهميت لري. بيا په سبو (ساګو) کې ګډې وريژې هم پخوي چې په سوات کې ورته چوکاڼ او ورژلې وايي.[۲۷۵] چوکاڼ ورته د سوات د سين د ښي طرف خلک وايي او ورژلې ورته د سوات د سين د ګس طرف خلک وايي. له دې نه علاوه د سوات د عام ولس اهم خوراکونه دا دي: وچه حلوا، لمده حلوا، ګاډېره ډوډۍ، پراټه، د وريژو پراټه، لنګري، بټې، شموخې، ماتې وريژې، کمودې، شنې وريژې، کوپرې وريژې، مۍ وريژې، ورتې وريژې، دل، غونداخي، ککوړي، تېل پخي، دروېش، مېچې، لېټۍ، د شوملو کړي، پيتي، لاوڼ، جګې، بګوړه، مټر، خرېړی، شلوم، خوږ کدو، ګونګړي، پې، غوړي، ماسته، شوملې او ساګ وغيره.[۲۷٦] په دې کې دا ځينې څيزونه لکه شموخې وغيره د هغه وخت خوراک و کله چې غله کمه وه او دا زيات څيزونه خو نن سبا هم خوړل کېږي.

**لباس**

د سوات په روايتي لباس، يعنې جامه کې چې کوم بدلون ليدل شوی، نو هغه په ادب کې هم ښکاره دی:

خوار پښتون ترقي اوکړه
نوی کوټ پتلون يې واغوست
خپل تهذيب ژبه يې هېر کړه
ځه د خرو جنون يې واغوست[۲۷۷]

گگرې د لباس يو قسم دی چې په دې قطعه کې يې ذکر شوی دی.

په دين او په پښتو په روايتو کوي ويار
حالات ته چې يې گورې کوټ بوټان يې د کبار
چې دا اورمه خدايه زړه مې رو رو ويلي کيږي
گگرې[۲] به راله راوړي نن داجي مېلې ته لاړ

کوټ پتلون د سوات د خلکو عام لباس نه دی، په پبلک سکولونو کې کوټ پتلون د يونيفارم په حيث طالب علمان اغوندي، عام لباس کميس پرتوگ دی، خو په کومو خلکو چې بهرني اثرات وي نو هغوی بيا کوټ پتلون اغوندي.

گور لباس دلته د نېکانو او ښو خلکو يو علامت گڼل کېږي، خو د وخت په تېرېدو سره دغه لباس هم بدنام کړی شو او بيا هغه خلک کوم چې به په ظاهري لباس نېکان ښکارېدل هغوی به د خلکو د دوکه کولو تدبيرونه جوړول، نو ځکه بيا په دغه گور لباس هم تنقيد شوی دی، لکه دا شعرونه:

په گور لباس دانه دانه رېرو يې تېر نه ووځې
په دوی کې داسې بزرگان دي چې پودړ خرڅوي[۲۷۸]

خلکه هم د گور لباس يو قسم دی چې د بزرگۍ علامت دی. په اړه داسې تنقيد شوی دی:

ستا په خلکه کې بادشائي د هلاکو پټه ده
ستا په تسپو کې د تيمور زغلي لښکرې صوفي[۲۷۹]

[۲] په کتاب کې يې د گگرې معني " د فيرنگيانو زړې جامې" ليکلې ده. گگرې يو قسم له گور لباس دی او زنانه يې اغوندي.

لـه دې شـعري نمونـو نـه انـدازه لګـي چـې دلتـه کـوم قسـمه لبـاس مـروج و، کـوم قسمه بـدلون پـه لبـاس کـې راغلـی او دغـه بـدلون ولـې راغلـی دی. بلـه دا هـم پتـه لګـي چې په ټولنه کې کوم قسمه لباس ته په ښه نظر کتل کېږي.

## مزدور کسان تحریک

په سوات کې د کار بیګار سلسله ډېر له پخوا نه راروانه وه. له ګوجرو نه علاوه د کلي په پښتنو او نورو خلکو به هم بیګار کېده. د کلي خلک به زیاتره یوسفزي او میاګان وو خو سره د دې د بل یوسفزي بادار بیګار به یې کاوه. په میاګانو د ریاست سرکاري بیګار وه، خو د خانانو ملکانو بیګار پرې یاد نه وه. د کلي والو بیګار بیا والي صیب په ۱۹٦۵ کې منع کړه.[۲۸۰] له دې بیګار نه ګوجر ډېر تنګ شوي وو او کله چې ذوالفقار علي بهټو دا بیګار غیر قانوني وګرځوه او د بیګار له ختمولو سره یې د زمیدارو او کنډریانو بې دخلي هم منعه کړه او دې خبرې ته یو پوکې د افضل بنګښ کسان پارټۍ هم ورکړه او د مودو راسي دې مظلومانو د ظالم او د غیر ظالم فرق و نه کړ، خو د چا په ولقه کې چې څه وو په هغه یې مالکانه قبضه وکړه او له دې نه د کسان تحریک بنیاد ونښته. په بعضې ځایونو کې ګوجرو ګټه او په بعضې ځایونو کې یې تاوان وکړ او د دې تحریک په وجه تقریباً اتیا في صده خلق د کار بیګار نه خلاص شو.[۲۸۱] د کسان تحریک په باره کې زېب سر داسې لیکي:

> د ذوالفقار علي حکومت یو قانون جوړ کړی دی چې د چازرعي جائداد زیات وي نو بې پېسو به ترې ضبط کیږي او دا قانون د اسلام نه خلاف دی، خو مصیبت یو بل غېر شرعي حکم دی چې بې دخلي به نه کیږي که د چا سره په اجاره د چا مزکه، دکان یا مکان وي نو د هغوی د بې دخلۍ وېره ورکه شوه، نو هغوی اوس مالکانو له خپل حق هم نه ورکوي. د جائداد خاوندان خواران شول او بې جائداده یو دم امیران مالداران شول، د وارداتو زور شور قتلونه کیږي اورونه لګي، یوه عامه حېراني او اله ګوله پیدا شوې ده.[۲۸۲]

د مزدور کسان تحریک په باره کې عبدالخالق خلیق داسې لیکي:

د مـــــــــزدور کســـــــــان تحریـــــــــک اونیـــــــــوو زور
فایـــــــده نـــــــه کـــــــړه د خانـــــــانو د خـــــــولې شـــــــور
ډېـــــــرې زمکـــــــې یـــــــې قبضـــــــه کـــــــړې د خانـــــــانو

دور تېـــــر شـــــو د بـــــې رحمـــــه جـــــابرانو
افضـــــل خـــــان بـــــنگش وکيـــــل د دوی ليـــــډر دی
پـــــه خپـــــل کـــــار کـــــې ډېـــــر مـــــاهر او ښـــــه زړه ور دی
کـــــه خانـــــانو وعـــــده اوکـــــړه د انصـــــاف
چـــــې نـــــادار بـــــه هـــــم گڼـــــي د ملـــــک اشراف
د محنـــــت حـــــق اومنـــــئ د محنـــــت کـــــارو
بيـــــا زيـــــاتی او ظلـــــم نـــــه کـــــوي پـــــه خـــــوارو
نـــــو بايـــــد چـــــې محنـــــت کـــــار شي پـــــه قـــــلار
مالکـــــانو تـــــه نـــــور نـــــه ورکـــــئ ازار
او جـــــايز حـــــق اومنـــــي د مالکـــــانو
لمســـــه نـــــه اوري د ورانکـــــارو شـــــيطانانو[۲۸۳]

دا تحريک له اپرېل ۱۹۶۸ نه شروع شوی وه. د افضل بنگش نه علاوه د دې تحريک دوه نور کارکنان هم د ذکر قابل دي، د يو نوم زيارت گل او د بل نوم کامرېډ عباد خان وه، کامرېډ عباد خان د پيرپايي اوسېدونکی وه او ډېر پخوا د کرتي کسان کارکن وه[۲۸٤] په سوات کې مزدور کسان تحريک هغه وخت شورع شو کله چې پاکستاني حکومت د سوات رياست په پاکستان کې ضم کړ، نو يو طرف ته هغه خلک چې د رياستي جبر او بيگار ښکار وو هغوی داسې قسمه تحريکونو ته ډېر خوشحاله وو، خو بل طرف ته کوم جاگيردار خلک چې له داسې قسمه تحريکونو نه په څه نه څه طريقه متاثره کېدل نو هغوی د داسې تحريکونو مخالفت وکړ، نو د سوات په ادب کې هم دا دواړه قسمه اثرات په نظر راځي او د دې دواړه قسمه ليکوالانو د ليک حوالې بره ورکړل شوې دي.

## د سوات پر ادب د افغان جنگ اثرات

د سوات په پښتو ادب کې د مختلفو جنگونو اثار په نظر راځي، لکه دا نظم د افغان جنگ ذکر داسې کوي:

تـــــو پونـــــه راکېونـــــه سرې گـــــولۍ او سره بمـــــان
وريـــــږي پـــــه جـــــونگړو لـــــه افغانـــــه پـــــه افغـــــان
کـــــه ســـــيل کـــــوې نـــــو ورشـــــه تماشـــــه د قيامـــــت اوکـــــړه
چـــــې اووينـــــې کـــــانې پـــــه انســـــانانو د انســـــان

قـــدم پـــه قـــدم شـــته قصـــاب خـــانې د بنيـــادمو
نـــه خـــتم بنيـــادم شـــو نـــه شـــو ســـترې قصـــابان
کـــه يـــو خـــوا يـــې پـــه کـــور د اور لـــوگي لمبـــې خـــورې دي
نـــو بـــل خـــوا يـــې باغونـــه ځنگلونـــه شـــو طوفـــان
کـــه يـــو خـــوا يـــې د علـــم ذخـــيرې پـــه اور ســـتي شـــوې
نـــو بـــل خـــوا يـــې پـــه مـــال او پـــه زر گـــډ شـــولو تـــالان
کـــه يـــو خـــوا د ســـپين گـــيرو د زلمـــو وينـــې پرتـــې دي
نـــو بـــل خـــوا تـــه پراتـــه دي ټکـــړې شـــوي معصـــومان
د داســـې مظلومـــانو حـــال پـــه څـــه ټکـــو بيـــان کـــړم
د چـــا پـــه حـــال چـــې اوښـــکې تويـــوي نـــن دښـــمنان[285]

په جنگ کې د افغانستان د تباهۍ يو منظر د سوات يو شاعر داسې بيانوي:

د هـــــرات د معرفـــــت ډيـــــوې نـــــن مـــــړې دي
د لـــــوگر د بـــــاغيچو اوچـــــې مڼـــــې دي
کـــــوه دامـــــن کـــــې تـــــالا شـــــوي انگـــــوران دي
کيلـــــه گـــــۍ کـــــې خربـــــوزې پـــــه وينـــــو سرې دي

د خنجـــــان مېلـــــه ميراتـــــه نـــــن پرتـــــه ده
د بـــــارودو پـــــه لوگـــــو کـــــې ابتـــــه ده
تاشـــــقرغان کـــــې اينځـــــران پـــــه لمبـــــو ســـــوي
د پنجشـــــېر چمـــــن کـــــې جـــــوړه اديـــــره ده

د پښـــــتون د نـــــاموس کـــــور دې ټـــــول تـــــالا کـــــړه
چـــــې پـــــه جنـــــگ کـــــې اموختـــــه دې لـــــوی واړه کـــــړه
د هلمنـــــد پېغلـــــې سرتـــــورې دي نـــــن ناســـــتې
پـــــه پـــــردو خـــــاورو خېمـــــو کـــــې دې وراتـــــه کـــــړه

چـــــې د پـــــت او د پښـــــتو شـــــملې يـــــې وې دنگـــــې
چـــــې ســـــاتلې مېلمنـــــو لـــــه گـــــډې لنگـــــې

د غیرت په کارنامو یې عالم خبر وه
بل هېواد کې پرې تیرېږي ورځې تنگې

د کابل ښار دې کندړ کړه په هوس د اقتدار کې
په کونتون کې شولې سترې چنغلې په انتظار کې
اوچې شوندې زیږ مخونه پښې ابله پښې دي
د خیرات نوړۍ ته ناستې پښتنې دي په قطار کې

د زرغونې په چاچو کې ازغي ښخ دي
ظالمان یې په کړاو تر اوسه خوښ دي
په نیازبینو گوتو پانې کړي راغونډې
د خشاک په غم کې گرځي ژمي یخ دي
د زپلي قام به څوک د زړه ملهم شي
چې د صلحې په خبرو کې یې په غم شي
څومره لویه خوشحالي به وي عمرانه
که افغان د کړې لارې نه په سم شي[۲۸۶]

عبدالجمیل یوسفزی د "غازي" تر سر خط لاندې داسې لیکي:

تا د بل په سر باندې غویمې دي جوړې کړي
تا مدام قومونه دي یو بل کې جنگولي
ستا د جهاد یاره څه عجیبه طریقه ده
نه پوهېږم ستا سره شیطان که امریکه ده
ته لکه د شین زمري یو وخت کې وغرېږې
بیا د پیري څوی شې په دوربین کې نه ښکارېږې
بل چې چرته گرم کړې پخپله غلی کېښنې
نر یې خو هله چې ته کمزوري چرته وینې
خو یاره دا زما یوه خبره لږه واوره
ستا نه ډالر هېر کړلو اسلام او خپله خاوره
دا جهاد دی یاره چې اول یې کړې په ځان

بیـــا پـــه کـــور او بیـــا پـــه کـــلي او بیـــا پـــه پاکســـتان
دا چـــې تـــه د خپـــل طرفـــه هـــر څـــه برابـــر کـــړې
هلـــه بـــه قیصـــې بیـــا د غیـــرت د لروبـــر کـــړې[287]

د افغان وطن د سوکالۍ او د ازادۍ ذکر هم د دې دور په ادب کې مونډلی شي. په دې دور کې افغانستان په جنګي شخړو کې بوخت و، نو ځکه د دې دور په پښتو ادب کې د افغانستان د جنګ او د ازادۍ ذکر په نظر راځي. د "مجاهد دعا" تر سرخط لاندې د لیکل شوي یو نظم دا څو کرښې وګورئ:

زر زمـــونږ د ننـــګ او د وفـــا وطـــن اذاد کـــړې ای ربـــه زمـــا
بیـــا بـــې کـــوره شـــوي افغانـــان دلتـــه ابـــاد کـــړې ای ربـــه زمـــا
دا د ننګیـــــــالو مســـــــلمانانو پښـــــــتنو زمکـــــــه
دا د ابـــــــدالي او بـــــــت شـــــــکنه غزنـــــــوي وطـــــــن
لاړه نخښـــــــانه د نـــــــوي دور د بتـــــــانو شـــــــوه
دا د غیرتونـــــــو وفاګـــــــانو او حیـــــــا زمکـــــــه
پـــــــاتې اثاثـــــــه د بـــــــې غیرتـــــــو ملحـــــــدانو شـــــــوه
تـــه بـــې خـــواروزار کـــړې پـــه نصـــیب کـــې بـــېلاد کـــړې ای ربـــه زمـــا
بیـــا بـــې کـــوره شـــوي افغانـــان دلتـــه ابـــاد کـــړې ای ربـــه زمـــا[288]

جوان بخت اسیر په خپل یو نظم "افغان مجاهد ته" کې داسې لیکي:

زولنـــــې د غلامـــــۍ دې د پښـــــو پـــــرې کـــــړه
د پتنـــګ غونـــدې پـــه شـــمع ځـــان ایـــرې کـــړه
یـــا ټیپـــوس شـــه پـــه مـــرداره بانـــدې کېښـــنه
یـــا شـــاهین شـــه خپـــل وزر ارې ارې کـــړه
یـــا غـــانټول شـــه چـــې د پښـــو لانـــدې میـــده شـــې
یـــا لالا شـــه سرې مېـــرې پـــه وینـــو سرې کـــړه
یـــا غـــازي شـــه پـــه جهـــان کـــې سرخـــرو اوســـه
یـــا شـــهید شـــه خپلـــې ډکـــې ادیـــرې کـــړه
یـــا عـــلي شـــه فـــولادي تـــوره تـــر مـــلا کـــړه
یـــا زنـــان شـــه د تنبـــې شـــا تـــه خبـــرې کـــړه[289]

د سوات پر پښتو ادب د افغانستان د جنګ ډېر اثرات په نظر راځي.

## د دې باب خلاصه

د سوات د رياست په پاکستان کې د ضم کېدلو اعلان د ۱۹۶۹م کال د جولايي پر ۲۸ مه نېټه وشو او باقاعده اعلاميه يې د ۱۹۶۹م کال د اگست پر پينځلسمه باندې جاري شوه. د رياست له انضمام سره د سوات په ټولنه کې ډېر بدلون راغی. د رياست سوات په دور کې د هېڅ قسمه ادبي ټولنو جوړولو اجازت نه و. د رياست له انضمام نه وروسته دا پابندي ختمه شوه او مختلفې ادبي ټولنې په وجود کې راغلې، چې د هغې په وجه په ادبي موضوعاتو کې پراختيا او وسعت پيدا شو او خلکو ته په ازادۍ د سوچ کولو موقعه په لاس ورغله، لکه څنگه چې مخکې ويل شوي وو چې عامو خلکو ته په اخبار يا رساله کې په ليک پابندي وه، اوس دغه پابندي هم ختمه شوه. ډلې پرې ختمې شوې او د هغې پر ځای سياسي پارټيانې راغلې. سياستدانان د خلکو په خدمت کې ناکام شول او عام ولس له سياسي ليډرانو نه سر ټکولو. په دې دور کې په ادبي تحقيق کې هم کار شوی دی، ادبي تذکرې ليکل شوي دي، د پښتو ادب ډېرو نثري اصنافو په دې دور کې په سوات کې ترقي کړې ده، لکه ناول، ډرامه، سفرنامه او نور. په ازاده توگه ادبي صحافت هم په دې دور کې شروع شوی دی، په دې دور کې د خيال د اظهار ازادي خلکو ته مېلاو شوه، نو له حکومتي ادارو نه فرياد او گيلې هم په ادب کې په نظر راځي. د جديد تعليم په وجه په خيال او سوچ کې پراختيا پيدا شوه او په ادبي موضوعاتو کې هم ډېر تنوع ليدی شي. د خانانو ملکانو اثر اگر چې ډېر کم شوی خو بيا هم لږ لږ په ادب کې د دې عکاسي شوې ده. د ماشومانو د لوبو ذکر هم په ادب کې موندلی شي. د دې دور په ادب کې د سوات د خلکو له سوات سره د مينې سره سره د پښتو ژبې او پښتونخوا سره مينه هم ښکارېږي. د سوات د دې دور پر ادب د افغان جنگ اثرات هم جوت دي. په مذهبي شخصياتو او صوفيانو وليانو ليکونه هم شوي دي، د صوفيانو او پيرانو تذکرې هم ليکل شوي دي. په دې دور کې په ادب کې د غم ښادۍ رسمونه، دودونه دستورونه، توهمات او جرگه حجره هم ذکر شوي دي، په دې دور کې چې کوم مذهبي، سياسي او ولسي تحريکونه راپورته شوي وو د هغوی اثرات هم په ادب ښکارېږي.

## حوالې

[1]Extraordinary issue Registered No. L۷۳۳۲, The Gazette of West Pakistan, Lahore, Friday, August ۱۵, ۱۹٦۹. No. ۱۷ (٤) ٦۹. ( *The Dir, Chitral and Swat (Administration) Regulation*, ۱۹٦۹) West Pakistan Regulation No. ۱ ۰f ۱۹٦۹.

[2] Sultan-i-Rome, *Swat A Critical Analysis*, New Delhi, Institute of Peace and Conflict Studies New Delhi India, IPCS Research Papers ۱۸, January ۲۰۰۹, p.۱.

[3] Sultan-i-Rome, '*The Class War' Dimension of the Swat Crisis*, Historicus, Karachi, Pakistan Historical Society, Vol. LXIII, No. ۱ (January-March ۲۰۱۵), p.٦۷.

[4] Sultan-i-Rome, *Swat A Critical Analysis*, New Delhi, Institute of Peace and Conflict Studies New Delhi India, IPCS Research Papers ۱۸, January ۲۰۰۹, p.۹.

[5] Ibid., p. ۸.

[6]*The Constitution of the Islamic Republic of Pakistan (as modified upto the* ۲۸*th* *February* ۱۹٦۵*)*, Govt: of Pakistan, Ministry of Law & Parliamentary Affairs (Law Division), p.۱۱۱.

[7] حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷م، ۲۳۷مخ.

[8]مخلص، عبدالقهار. عبرت نامه، پېښور، اکادمي افکار، ۱۹۹۵ ، ۱۷۰ مخ.

[9] حکیمزے، وکیل د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷م، ۲۳۷مخ.

[10] بریکوټی، شبیر افضل خان. دبدبه خوشحال د خوشحال خان خټک پۀ کلام یو نظر، کراچی، آفرین خان آف ابوها، ۱۹۹۵.

[11] بریکوټی. سخن طراز عبدالحمید مومندر، کراچی، آفرین خان آف ابوها، ۱۹۹۵.

[12] رحیم، رحیم شاه. واورینې خوکې، ۱۹۸٦.

[13] صدیقي، مهرونېش خان. د صحرا کاروان، ۱۹۹۰.

[14] ملک، اختر ملک او رحیم سید خان. لعلونه، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۱۹۹۹.

[15]لېونے، روزي خان. اوښکې، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۱۹۹٦، ۱۸۰ مخ.

[16]خان، شبیر علي. د قافلې جرس، ۳۱٦ مخ.

[17]خټک، محمد نواز. سوات کښې، مشموله میاشتینی پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي، جلد: ۱۳، شماره: ۲، (مارچ ۱۹۸۱)، ۲۵مخ.

[18] رحیم، رحیم شاه. راجګېه (ناول)، مینګوره، اداره سواتیالوجي، ۱۹۸۹، ۱۹ مخ.

[19] لائق، لاءق زاده. (مترجم)، اوښکې او لمبې، اسلام اباد، د اذاد جمو او کشمیر کونسل، ۱

[20]رحیم، رحیم شاه. غرځنی، ۱۹۹۰، ۷۰مخ.

[21]انقلابي، قیمت ګل. ځلنده ستوري (دسوات د ماما خېلو خانانو منظوم تاریخ)،درشخېله سوات، ۱۹۹۸.

[22]شاه، مولوي نور محمد عرف غوبه جان. منظوم تاریخ سوات، [۱۹۹۴]ځ

[23] کشره بېګم. نیمګړے ژوند، سېدو شریف، رائل کېمپس، ۲۰۰۰م.

[24]کشره بېگم. بي زېړ، يادونه، ۲۰۰۸م.

[25]لېونے، روزي خان. اوښکې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹٦م، ۱۸۱مخ.

[26]ناصح، ميا سيد عمر. سوے زړۀ، س ن

[27] صديقي، سيف الملوک. زۀ انتظار کومه ستا د سترگو، کبل سوات، جان کتاب کور، ۲۰۱۱م،۴۹، مخ.

[28]فيضان، فضل الرحمان. د رحامن بابا د کليزې مشاعرې پۀ موقعه، (تضمين)، مشموله مياشتينۍ پښتو، پېښور، پښتو اکيډمي، جلد: ۱۰، شمار: ۷ (اگست ۱۹۷۷)، ۲۳مخ.

[29]فکري، شېر اکبر خان. فکري خيالات اوله حصه، ۱۹۸۲، ۱۵۰مخ.

[30] لائق، لائق زاده. گيلې، ۲۰۱۳/۱۹۷۹، ۷۹مخ.

[31]ناياب، روح الامين. شبې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۲، ۸۸ مخ.

[32] خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۵۸ مخ.

[33] روښان، فضل محمود. لټون د پوهې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۵.

[34] لوهار، محمد جان. ديوان محمد جان لوهار، ۱۹۷۱، ۲۹مخ.

[35] کشره بېگم. نيمگړے ژوند، سوات، رائل کېمپس سيدو شريف، ۲۰۰۰، ۱مخ.

[36]فيضان، فضل الرحمان. دوست محمد خان کامل (نظم)، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۱۳،شماره: ۴،۵(مي جون۱۹۸۱)، ۴۱مخ.

[37]صديقي، سيف الملوک. زۀ انتظار کومه ستا د سترگو، کبل سوات، جان کتاب کور، ۲۰۱۱، ۹۴مخ.

[38]همدغه اثر،۱۰۴ مخ.

[39] افتاب، ف ـ ی، د احساس پۀ لمبو، ۲۰۰۰، ۱۲۸مخ.

[40] ناياب، روح الامين. شبې، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۲، ۷۸مخ.

[41] حبيب، حبيب الرحمٰن. د حبيب مينه، ۱۹۷۰، ۱۲مخ.

[42] خان، محمدآصف. سر گذشت فردوسي سوات تاج محمد خان زېب سر، ۱۹۷۲، ۲۱۸مخ.

[43] بشر، گل بشر. د حقيقت گلونه، ۳مخ.

[44] لېونے، روزي خان. اوښکې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹٦، ۱۷۳مخ.

[45]لوهار، محمد جان. ديوان محمد جان لوهار، ۱۹۷۱، ۱۱-۴۴مخ.

[46] ظاهر، شهر يار. سترې قافلې، متھ، لالا اينډ حبيب ملنگ بکسيلرز، [۱۹۹۰]، ۱۱۷،۱۲۰،۱۲۵،۱۲٦ مخونه.

[47]بشر، گل بشر. د حقيقت گلونه، ۵٦ مخ.

[48]درياب، بخت زر. د احساس لمن، ۱۹۹۱، ۳۳ مخ.

[49]لوهار، محمد جان. ديوان محمد جان لوهار، ۱۹۷۱.

[50]فضل، فضل خالق. احساسونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۷، ۵۰ مخ.

[51] لائق، لائق زاده. وېښ خوبونه، ۲۰۱۳/۱۹۸۲، ۷۷مخ.

[52]افتاب، ف ـ ي، گلستان مصطفیٰ، ۲۰۰۰، ۱۱،۱۸۵،۱۹۸ مخونه.

[٥٣] صديقي، سيف الملوک. زۀ انتظار کومه ستا د سترګو، ۳۸ مخ.
نوټ: سيف الملوک صديقي د ۱۹۱۸م کال د فرورۍ پر ۹ مه پيدا شوی و او د ۱۹۹۵م کال د فرورۍ پر ۹مه وفات شوی دي. د هغه دا کتاب د هغه له مرګ وروسته چاپ شوی، يعنې په ۲۰۱۱ کې چاپ شوی، خو شاعري پکې د هغه دور ده، نو ځکه دا کتاب له ۲۰۰۰ نه په مخکيني دور کې ابښودی شوی دی.
[٥٤] صديقي، سيف الملوک. زۀ انتظار کومه ستا د سترګو، ۴٦ مخ.
[٥٥] خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۵۳ مخ.
[٥٦] لېونے، روزي خان. اوښکې، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹٦، ١٦٥مخ.
[٥٧] مخلص، عبدالقهار. عبرت نامه، پېښور، اکادمي افکار، ۱۹۹۵، ۴٦مخ.
[٥٨] همدغه اثر، ٦٠مخ.
[٥٩] عنايت الرحمٰن. د سوات پخوانی قيصې، دويمه برخه، پېښور، ۱۹۸۴.
[٦٠] همدغه اثر، ۱ مخ.
[٦١] شاهـين، محمد پروېش. ټپه، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۹،شماره:۳(اپرېل: ۱۹۷۷)، ۳۲مخ.
[٦٢] عزيز سهېل. کالي پترې او پښتو ادب (ټپه)، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۹، شماره : ۱۱(دسمبر: ۱۹۷۷)، ۳۲ مخ.
[٦٣] عزيز سهېل. نيمبولا ديمبولا، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۱۰ ،شماره:۸(ستمبر: ۱۹۷۸)، ۴۵مخ.
[٦٤] رحيم، رحيم شاه. شفاهـي قيصې، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۱۰ ،شماره:۴(مۍء: ۱۹۷۸)، ۵۳ مخ.
[٦٥] شاهـين، محمد پروېش. شفاهـي قيصې،(مشموله)مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۹، شماره :٦( جولايی: ۱۹۷۷)، ۳۳ مخ.
[٦٦] اختر، اختر ملک. متلونه پۀ سوات کښې، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹۵.
[٦٧] اختر، اخترملك، د پښتومتلونه، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز ، ۱۹۹۷.
[٦٨] حکيمزي، وکيل خيرالحکيم. د پښتو محاورې، ۱۹۹۵.
[٦٩] لائق، لائق زاده. د محمد حنيف قيس پۀ شاعرۍ کښې اولسي رنګونه، مشموله مرغزار (غزل) ليک د محمد حنيف قېس، مينګوره، شعيب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹۹، ۱۲مخ.
[٧٠] قيس، محمد حنيف. مرغزار، مينګوره، شعيب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹۹، ۲۰ مخ.
[٧١] همدغه اثر، ۲۲ مخ.
[٧٢] لېونے، روزي خان. اوښکې، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۱۹۹٦، ۵ مخ.
[٧٣] فيضان، فضل الرّحمان. څلور ګلونه، مينګوره، مکتبه رحمان سنز، ۱۹۷۵، ۳ مخ.

[۷٤]خان، محمد اصف. سریزه، یوه رنګینه افسانه څلور ګلونه،مصنّف فضل الرّحمان فیضان، سیدو شریف فیضان منزل، ۱۹۸٦، ۸ مخ.

[۷٥]فیضان، فضل الرّحمان. یوه رنګینه افسانه څلور ګلونه، سېدو شریف فیضان منزل، ۱۹۸٦، ۹،۱۰ مخونه.

[۷٦]فکري، شېر اکبر خان. فکري خيالات اوله حصه، ۱۹۸۲، ۱٦٥ مخ.

[۷۷] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۱۰۱مخ.

[۷۸]همدغه اثر، ۱۲۹مخ.

[۷۹]همدغه اثر، ۱۴٥مخ.

[۸۰]همدغه اثر، ۱٥٥مخ.

[۸۱]مخلص، عبدالقهار. عبرت نامه، پېښور، اکادمي افکار، ۱۹۹٥، ۲۱۸مخ.

[۸۲]همدغه اثر، ۲۱۳مخ.

[۸۳]همدغه اثر، ۲۳۷ مخ.

[۸٤]همدغه اثر، ۲٦۳، ۲٦٥، ۲٦۷، ۲٦۹ مخونه.

[۸٥] مشاعره شاه فیصل سلسله نمبر ۲، مینګوره سوات، رحمان سنز، ۱۹۷٥.

[۸٦] مشاعره د عبدالغني قصاب د څوی د واده سلسله نمبر ۳، سوات، مکتبه رحمان سنز، ۱۹۷٥.

[۸۷] مشاعره سلسله نمبر ۱، د نور محمد شاه عرف غوبه جان صاحب د اوډيګرام د فرځند د پیدا کېدو په خوشحالۍ کښې، مرتّب: فیضان، سوات، مکتبه رحمان سنز، [۱۹۷۴]

[۸۸] لوهار، محمد جان. دیوان محمد جان لوهار، ۱۹۷، ۱٥٦، ۱٥۸،۱٥۹، ۱٦۲ مخونه.

[۸۹] خلیل، محمد جاوېد. په صوبه سرحد کښې د مختلفو پښتو ادبي ټولنو او جرګو تنظیمونه او د هغوي کار، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹۹۴، ۲۹۰،۲۹۱ مخونه.

[۹۰]همدغه اثر، ۳۰٥، ۳۰٦ مخونه.

[۹۱] صابر، سید صابر شاه. د رڼاګانو محفلونه (د ادبي جرګو مرکو تاریخ)، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۱۹۹۴، ۲۷۹ مخ.

[۹۲] همدغه اثر،۲۹۰ مخ.

[۹۳] همدغه اثر، ۳۰۴ مخ.

[۹٤]خلیل، محمد جاوېد. په صوبه سرحد کښې د مختلفو پښتو ادبي ټولنو او جرګو تنظیمونه او د هغوي کار، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹۹۴، ۳۱۴ مخ.

[۹٥]همدغه اثر، ۳۱۸، ۳۱۹ مخونه.

[۹٦]ديناخیل، محمد علي. سوات کی ادبی تنظیمیں، مشموله، روزنامه چاند، سوات، جلد: ۱، شماره: ۱، (۲٦ دسمبر ۲۰۱۳)

[۹۷]همدغه اثر.

[۹۸]صابر، سید صابر شاه. د رڼاګانو محفلونه (د ادبي جرګو مرکو تاریخ)، پېښور، یونیورسټي بک ایجنسي، ۱۹۹۴، ۴۰۸مخ.

[۹۹]ديناخيل، محمد علي. سوات کی ادبی تنظيميں، مشموله، روزنامه چاند، سوات، جلد: ١١، شماره: ١، (٢٦ دسمبر ٢٠١٣)

[۱۰۰]همدغه اثر.

[۱۰۱]همدغه اثر.

[۱۰۲]همدغه اثر.

[۱۰۳]شاهين، محمد پروېش. ګل ورينې څوکې، مينګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۸۹، ۱۵۸مخ.

[۱۰٤] Yousafzai, Rafiullah, Journalism in Swat, (M.A. Thesis), Department of Journalism and Mass Communication, University of Peshawar, Session: ٢٠٠٢-٢٠٠٣, p. ٣٣

٤[١٠٥]Ibid., p. ٣

٥[١٠٦]Ibid., p. ٣

٥[١٠٧]Ibid., p. ٣

٢٠[١٠٨]Ibid., p.

٢٠[١٠٩]Ibid., p.

٢١[١١٠]Ibid., p.

٢١[١١١]Ibid., p.

٢١[١١٢]Ibid., p.

٢٢-٢٦[١١٣]Ibid., p.

٣٩،٤٠[١١٤]Ibid., p

٤١ [١١٥]Ibid., p

٤٢ [١١٦]Ibid., p

[۱۱۷] زېب سر، تاج محمد خان. زما د حج سفر او مناسک د حج، سوات، [۱۹۷۴]

[۱۱۸] فيضان، فضل الرحمان. زما د حج سفر، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ١٦، شماره:۴ (مىء: ۱۹۸۴)

[۱۱۹]جهان ،جهانګير. محسن انسانيت (حضرت محمد)، [۱۹۹۲]

[۱۲۰] لائق، لائق زاده. صلّو عليه واٰله، پېښور، تاج کتب خانه، [۱۹۸۹]

[۱۲۱] عزيز، عزيزالرحمٰن. روح اني غذا، پېښور، مکتبه روضة القرآن، ۱۹۹۵.

[۱۲۲] فيضان، فضل الرّحمٰن. ګلدسته حجاز نعتونه، پېلور، رحمٰن ګل پبلشرز.

[۱۲۳] قصاب، عبدالغني. ګلشن هاشمي.

[۱۲٤] افتاب، ف ـ ي، ګلستان مصطفیٰ، ۲۰۰۰.

[۱۲۵] چميار، جان محمد.د عقيدت ګلونه، مينګوره، مکتبه سيفيه، ۱۹۸۴.

[۱۲٦] عبدالغني، الحاج. ښکلے کتاب د بسم الله او الحمدلله فضيلتونه، مينګوره، حاجي کتب خانه، ۱۹۹٦.

[۱۲۷] اصلاح، صلاح الدّين. تازه ګلونه، ۱۹۹۸.

[۱۲۸]شاهين، محمد پروېش. ټپه، (مشموله) مياشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ٩،شماره:٣(اپرېل: ۱۹۷۷)، ۳۲مخ.

[۱۲۹]خان، شېر علي. د قافلې جرس، ۵۴ مخ.

[۱۳۰] همدغه اثر، ۷۴مخ.

[۱۳۱]همدغه اثر، ۷۵مخ.

[۱۳۲]روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۵۲ مخ.

[۱۳۳]همدغه اثر ۳۴۲مخ.

[۱۳۴] عبدالرّشید، میا. تذکره علماء کبّار و مشائخ عظام صوبه سر حد پاکستان، مدین سوات، مکتبه غوثیه.

[۱۳۵]فکري، شېر اکبر خان. فکري خیالات اوله حصه، ۱۹۸۲، ۱۳٦- ۱٦۰ مخونه.

[۱۳٦]روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، ۲۵۱مخ.

[۱۳۷]روغانے، عبدالرحیم. ځوربدلي احساسات، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اېنډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۵۱ مخ.

[۱۳۸]مومند، دوست محمد خان کامل. رحمان بابا: تاریخي، علمي او ادبي جاج، پېښور، اداره اشاعت سرحد، ۱۹۵۸، ۱۵۰مخ.

[۱۳۹]احمد فواد، پروفیسر. (مترجم) ریاست سوات (۱۹۱۵-۱۹٦۹ ) مصنف ، ډاکټر سلطان روم،، سوات ، شعیب سنز پبلشرز اینڈ بکسیلرز، ۲۰۱۳، ۲۴۵ مخ.

[۱۴۰]یوسفزے، ضیاء الدین. خو مینه تل ژوندون وي، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز، ۲۰۰۰، ۵۷ مخ.

[۱۴۱]شاهین، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۸۰ مخ.

[۱۴۲]شاهـین، محمد پروېش. ټپه، (مشموله) میاشتنۍ پښتو، پېښور، پښتواکېډمي، جلد: ۹،شماره:۳(اپرېل: ۱۹۷۷)، ۳۳ مخ.

[۱۴۳]روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۱۱۲مخ.

[۱۴۴]عزیز سهېل، کالي پتري او پښتو ادب (مقاله)، مشموله میاشتینۍ پښتو، پېښور، پښتو اکیډمي، جلد:۹، شماره :۱۱ (دسمبر ۱۹۷۷) ۳۳- ۳۷ مخونه.

[۱۴۵]همدغه اثر، ۳۷، ۳۸ مخونه.مخ.

[۱۴٦]همدغه اثر،۳۸- ۴۱ مخونه.

[۱۴۷]شاهین، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۸۱،۸۲ مخونه. مخ.

[۱۴۸]همدغه اثر، ۸۲ مخ.

[۱۴۹]روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ٦۱مخ.

[۱۵۰] عمران، محمد. د کلتور سوداگر او اوده اولس، ادهیانه ټوډے، سوات، EPS، جلد: ۷، گڼه: ۴، (اکتوبر ـ دسمبر ۲۰۰۰)، ۲۱ مخ.

[۱۵۱] خټک، خوشحال خان. سوات نامه، مقدمه تحقیق او سمون د همېش خلیل، اکوړه خټک، مرکزي خوشحال ادبي و ثقافتي جرگه، ۱۹۸٦، مخ:۴۹

[۱۵۲] همدغه اثر، ۴۹ مخ.

[۱۵۳] یوسفزے، ضیاء الدین. خو مینه تل ژوندون وي، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز، ۲۰۰۰، ۱۲٦مخ.
[۱۵٤] همدغه اثر، ۱۲۹- ۱۳۱ مخونه.
[۱۵۵] لېونے، روزي خان. اوښکې، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۱۹۹٦، ۷ مخ.
[۱۵٦] شاهین، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۵۴ مخ.
[۱۵۷] یوسفزے، ډاکټر دیدار. ژوندے وزر، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۱۹۹۹، ۱۷۲مخ.
[۱۵۸] عنایت الله، سردار. ړندې عقیدې، مشموله ایلم ، جهانزېب کالج سوات، ۷۲-۱۹۷۱، ۴۳-۴۵ مخونه.
[۱۵۹] فضل معبود. د سپین سر پۀ لور، ادهیانه ټوډے، سوات، EPS، جلد: ۵، شماره: ۲، (جون ۱۹۹۸)، ۱۸مخ.
[۱٦۰] فیضان، فضل الرّحمٰن. ګلزار تعویذات، پېښور، زېب آرټ پبلشرز، ۱۹۷مخ.
[۱٦۱] شبنم، محمد ابراهیم خان. خوابې اینګور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنیکي څانګه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۸۲ مخ.
[۱٦۲] روغانے، عبدالرّحیم. څوربدلي احساسات، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۱۳۸ مخ.
[۱٦۳] حاضر، بخت حاضر. زیړې پاڼې، سوات، افغان اکیډمي، ۱۹۹۱، ۱۲٦مخ.
[۱٦٤] روغانے، عبدالرّحیم. څوربدلي احساسات، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۱۳۸مخ.
[۱٦۵] محمد عمران، پروفېسر. چاپېرچل، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۵، ۳۵مخ.
[۱٦٦] خاکسار، عبدالغفار، نسوار او نسواري، ایلم، سوات، جهانزېب کالج، ۷٦- ۱۹۷۵، ۴۴مخ.
[۱٦۷] روغانے، عبدالرّحیم. څوربدلي احساسات، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۲۵٦مخ.
[۱٦۸] رحیم، رحیم شاه. غرځنې، ۱۹۹۰، ۱۲۱مخ.
[۱٦۹] مخلص، عبدالقهار. عبرت نامه، پېښور، اکادمي افکار، ۱۹۹۵، ۱۱۴مخ.
[۱۷۰] شاهین، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۵٦ مخ.
[۱۷۱] فکري، شېر اکبر خان. فکري خیالات اوله حصه، ۱۹۸۲، ۸۷، ۸۸ مخونه.
[۱۷۲] خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۳۵ مخ.
[۱۷۳] شاهین، محمد پروېش. پښتانۀ او یویشتمه پېړۍ، منګلور، شاهین سنز، ۲۰۰۰، ۱۵ مخ.
[۱۷٤] شاهین، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۵۳ - ۵۵مخونه.
[۱۷۵] شاه، مولوي نور محمد عرف غوبه جان. منظوم تاریخ سوات، [۱۹۹۴]، ۴۳مخ.
[۱۷٦] خان، شېر علي. د قافلې جرس، ۳۵۳، ۳۵۴ مخونه.
[۱۷۷] همدغه اثر، ۳۵۳مخ.
[۱۷۸] روغانے، عبدالرحیم. څوربدلي احساسات، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۳۱مخ.

[۱۷۹] همدغه اثر، ۳۷ مخ.

[۱۸۰] روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۵۵ مخ.

[۱۸۱] همدغه اثر، ۵۲ مخ.

[۱۸۲] روغانے، عبدالرّحیم. څوربدلي احساسات، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۱۵مخ.

[۱۸۳] همدغه اثر، ۲۵۲ مخ.

[۱۸۴] یوسفزے، سالار. تالا جانان، ۱۹۹۵، ۸۱ مخ.

[۱۸۵] رحیم، رحیم شاه. غرڅنی، ۱۹۹۰، ۱۰٦ مخ.

[۱۸٦] یوسفزے، ډاکټر دیدار. رابښکلي غشي، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۰، ۱۵۲مخ.

[۱۸۷] زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات څلورم جلد د ریاست د انضمام اعلان ۲۸ جولائي ۱۹٦۹،[ ۱۹۷۹]، ۱۴مخ.

[۱۸۸] خان، محمد افضل. پښتون قامي وحدت، پېښور، پښتونخوا پبلي کېشنز، ۱۹۹٦، ۱۹مخ.

[۱۸۹] یوسفزے، سالار، تالا جانان، ۱۹۹۵، ۱۱۸،۱۱۹ مخونه.

[۱۹۰] مخلص، عبدالقهار. عبرت نامه، پېښور، اکادمي افکار، ۱۹۹۵، مخ:

[۱۹۱] روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۵۴ مخ.

[۱۹۲] همدغه اثر، ۹۱مخ.

[۱۹۳] همدغه اثر، ۱۰۰مخ.

[۱۹۴] شاهین، محمد پروېش.سوات د سردرو وطن، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۴۰، ۴۱ مخونه.

[۱۹۵] همدغه اثر، ۸۲ مخ.

[۱۹٦] رحیم، رحیم شاه. غرڅنی، ۱۹۹۰، ۸٦ مخ.

[۱۹۷] همدغه اثر، ۲۸مخ.

[۱۹۸] روغانے، عبدالرحیم، څوربدلي احساسات،٦ مخ.

[۱۹۹] همدغه اثر، ۸۷ مخ.

[۲۰۰] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۴۱۹ مخ.

[۲۰۱] محمد عمران، پروفبسر. چاپېرچل، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۵، ٦۱مخ.

[۲۰۲] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۴۱۹ مخ.

[۲۰۳] همدغه اثر، ۴۱۹ مخ.

[۲۰۴] همدغه اثر، ۴۲۰ مخ.

[۲۰۵] همدغه اثر، ۴۲۱ مخ.

[۲۰٦] همدغه اثر،۴۲۲ مخ.

[۲۰۷] همدغه اثر، ۴۲۲مخ.

[۲۰۸] همدغه اثر، ۴۲۳مخ.

[209] همدغه اثر، ۴۲۳مخ.

[210] شبنم، محمد ابراهیم خان. خوابښې اینگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنیکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۲۹مخ.

[211] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۴۲۳مخ.

[212] همدغه اثر، ۴۲۴مخ.

[213] همدغه اثر، ۴۲۴مخ.

[214] شبنم، محمد ابراهیم. اجړه (ناول)، مینگوره، افغان اکېډمي، ۱۹۹۴، ۹مخ.

[215] خورشید (مترجم)، زۀ یو شپونکے یم، مشموله، ادهیانه ټوډے، سوات ، EPS، جلد: ۵، گڼه: ۳، (ستمبر ۱۹۹۸)، ۲۱مخ.

[216] فضل معبود. د سپین سر پۀ لور، ادهیانه ټوډے، سوات، EPS، جلد: ۵، شماره: ۲، (جون ۱۹۹۸)، ۱۹مخ.

[217] شبنم، محمد ابراهیم خان. خوابښې اینگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنیکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۱مخ.

[218] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۴۲۲مخ.

[219] نایاب، روح الامین. شبې، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۲، ۸۱،۸۲ مخونه.

[220] یوسفزے، عبدالجمیل. جنون، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۸، ۱۵،۱٦ مخونه.

[221] یوسفزے، سالار. تالا جانان، ۱۹۹۵، ۲۲مخ.

[222] رحیم، رحیم شاه. غرځنی، ۱۹۹۰، ۸۰،۸۱ مخونه.

[223] شاهین، محمد پروېش.سوات د سردرو وطن، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۳، ۴۲، ۴۳ مخونه.

[224] همدغه اثر، ۴۴مخ.

[225] یوسفزے، ډاکټر دیدار. ژوندے وزر، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۱۹۹۹، ۷۱- ۷۴ مخونه.

[226] روښان، فضل محمود. د پښتنو موسیقي، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۲، ۸۷،۸۸ مخونه.

[227] سلطان روم، ډاکټر. متلونه، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اېنډ بکسیلرز،۲۰۱۳، ۱۰۷مخ.

[228] حکیمزے، خیرالحکیم. د مېږو کوټگی، لاهور، اداره نشرالمعارف، ۱۹۹۹، ۸۹،۹۰ مخونه.

[229] حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۳۲۰ مخ.

[230] روښان، فضل محمود. شرپ گل، مشموله، درې میاشتنی مینه، سوات، جلد: ۲، گڼه: ۱ (اپرېل، مئي، جون ۲۰۰۷)، ۲۲، ۲۳ مخونه.

[231] خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۳۲ مخ.

[232] روغانے، عبدالرحیم. ځوربدلي احساسات، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اېنډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ٦۲مخ.

[233] روښان، فضل محمود. آدم او فلسفي، مینگوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۸۹، ۱۴مخ.

[۲۳۴] خان، پاءنده محمد. د دشت لوط مسافر (ناول)، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹٦،  ۱۳مخ.

[۲۳۵] یوسفزے، ډاکټر دیدار. راښکلي غشي، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۰، ۵۰ مخ.

[۲۳٦] یوسفزے، ډاکټر دیدار. ژوندے وزر، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۱۹۹۹، ۱۸۷مخ.

[۲۳۷] حبیب، حبیب الرّحمٰن. د حبیب مینه، ۱۹۷۰، ۲۴۸مخ.

[۲۳۸] رحیم، رحیم شاه. غرڅنی، ۱۹۹۰، ۱۰۲مخ.

[۲۳۹] روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۱۹۱مخ.

[۲۴۰] همدغه اثر، ٦۵مخ.

[۲۴۱] روغانے، عبدالرّحیم. ځورېدلي احساسات، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۲۵۲مخ.

[۲۴۲] لېونے، روزي خان. تېغونه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۱٦۷مخ.

[۲۴۳] یوسفزے، ډاکټر دیدار. راښکلي غشي، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۰، ۱۲۲مخ.

[۲۴۴] لائق، لائق زاده. ستا پهٔ نوم، ۲۰۱۳/۱۹۹۳، ۱۱۱مخ.

[۲۴۵] رحیم، رحیم شاه. غرڅنی، ۱۹۹۰، ۷٦ مخ.

[۲۴٦] روغانے، عبدالرحیم. ځورېدلي احساسات، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اېنډ بکسیلرز، ۱۹۹۹، ۲٦مخ.

[۲۴۷] وهاب، فضل وهاب. د بېلتون سلگی، ۲۰۰۰، ۴۰ مخ.

[۲۴۸] همدغه اثر، ۵۲ مخ.

[۲۴۹] روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ٦۹مخ.

[۲۵۰] لېونے، روزي خان. اوښکې، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۱۹۹٦، ۱۵۷، ۱۵۸ مخونه.

[۲۵۱] یوسفزے، ډاکټر دیدار. ژوندے وزر، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۱۹۹۹ ، ۱۷۵مخ.

[۲۵۲] خان، محمد افضل. پښتون قامي وحدت، پېښور، پښتونخوا پبلي کېشنز، ۱۹۹٦، ۱۷،۱۸ مخونه.

[۲۵۳] خان، محمد افضل. قامي جرگه، پېښور، د دانش خپرندوئې ټولنې تخنیکي څانگه، ۲۰۰۰، ۳۵- ۴۷ مخونه.

[۲۵۴] روغانے، عبدالرّحیم. نوې نغمه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز بکسیلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۳۱٦ مخ.

[۲۵۵] اداریه، ادهیانه ټوډے. سوات، EPS، جلد: ۵، شماره: ۲ (جون ۱۹۹۸)، ۲۲مخ.

[۲۵٦] کسکر، سکندر حیات. پرهرونه، سوات، افغان اکېډمي، ۱۹۹۱، ۹۲مخ.

[۲۵۷] شبنم، محمد ابراهیم خان، خوانبې اینگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنیکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۵،۷ مخونه.

[۲۵۸] خان، محمد اصف. سریزه، یوه رنگینه افسانه څلور گلونه،مصنّف فضل الرّحمان فېضان ، سیدو شریف فیضان منزل، ۱۹۸٦، ۵ مخ.

[۲۵۹] شبنم، محمد ابراهیم خان، خوانبې اینگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنیکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۹٦ مخ.

[۲٦۰] خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۴۷مخ.

[261]يوسفزے، ضياء الدين. خو مينه تل ژوندون وي، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز، ۲۰۰۰، ۱۰٦مخ.

[262]خان، شېر علي. د قافلې جرس، ۳۳۰ مخ.

[263]شبنم، محمد ابراهيم خان. خوابښې اينگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنيکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۱۹۷مخ.

[264] همدغه اثر،۴ مخ.

[265]همدغه اثر، ۱۷۵مخ.

[266]شاهين، محمد پروېش.سوات د سردرو وطن، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۳، ۵۳،۵۴ مخونه.

[267] رحيم، رحيم شاه. بي بي مبارکه (ناول)، مينگوره، افغان اکېډمي، ۱۹۹۱، ۲۷۹مخ.

[268]خان، شېر علي. د قافلې جرس، ۲۰۴ مخ.

[269] ناياب، روح الامين. شبې، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۲، ۷۳ مخ.

[270]لوهار، محمد جان. ديوان محمد جان لوهار، ۱۹۷۱، ۱٦۸مخ.

[271]شاهين، محمد پروېش. سوات د سردرو وطن، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۳، ۵۴ مخ.

[272] حکيمزے، خيرالحکيم، د سيند پۀ غاړه تږي (ناول)، ۱۹۸۷، ۳ مخ.

[273]وهاب، فضل وهاب. د مينې سورے، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹٦، ۲۲ مخ.

[274] حکيمزے، بدرالحکيم. تورونه سازښتونه، (ناول)، لاهور، اداره نشرالمعارف، ۱۹۹۷، ۱۴مخ.

[275] شبنم، محمد ابراهيم خان. خوابښې اينگور (ناول)، پېښور، د دانش خپرندوېې ټولنې تخنيکي څانگه، ۲۰۰۴/۱۹۷۳، ۱۱۳مخ.

[276]شاهين، محمد پروېش.سوات د سردرو وطن، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۳، ۳۹مخ.

[277]يوسفزے، عبدالجميل. جنون، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۸، ۳۱ مخ.

[278]روغانے، عبدالرّحيم. نوې نغمه، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز بکسيلرز، ۲۰۰٦/۱۹۹۱، ۲۳۹ مخ.

[279]همدغه اثر، ۲۵۱مخ.

[280] حکيمزے، وکيل. د بر سوات تاريخ نسلي سياسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۲۲ مخ.

[281]همدغه اثر، ۲۲۵، ۲۲٦ مخونه.

[282]زېب سر، تاج محمد خان. نوے سوات څلورم جلد د رياست د انضمام اعلان ۲۸ جولائي ۱۹٦۹،[ ۱۹۷۹]، ۱۴مخ.

[283]خليق، عبدالخالق. زۀ او زما زمانه، پېښور، اداره اشاعت سرحد، دويم ځل مارچ ۱۹۷۴، ۱۵٦مخ.

[284]همدغه اثر ، ۱۵٦مخ.

[285] روغانے، عبدالرّحيم. ځوربدلي احساسات، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۹، ۲۷۵مخ.

[286]محمد عمران، پروفېسر. چاپېرچل، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۵، ۵۴،۵۵ مخونه.

[287]يوسفزے، عبدالجميل. جنون، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۱۹۹۸، ٦۳مخ.

[288]خالص، عبدالسّلام. د شوخ قلم ناشنا خبرې، ۱۹۸۹، ۱٦مخ.

[289] اسير، جوان بخت. نوے غږ، ۱۹۸۷، ۱۵۸مخ.

# اووم باب

# په یویشتمه پېړۍ کې د سوات پښتو ادب او ثقافت (۲۰۰۱-۲۰۱۲)

## یویشتمه پېړۍ او سوات

لکه څنګه چې مخکې ویل شوي چې د سوات په تاریخ کې وخت پر وخت داسې خبرې او حالات راغلي، چې د سوات په تاریخ کې یې یو نوی باب پرانستی دی. دغه رنګ د یویشتمې پېړۍ په شروع کې چې کله امریکا پر افغانستان حمله وکړه نو د دې اثرات پر سوات هم پرېوتل او دلته د ژوند هره برخه له دې حالاتو نه په څه نه څه طریقه متاثره شوه، دغه وجه ده چې د سوات ادب هم په څه نه څه شکل د دې حالاتو په وجه اغېزمن شو. د افغانستان د خرابو حالاتو پر سوات د اثر پرېوتلو په باره کې ډاکټر سلطان روم داسې لیکي:

> And when in the backdrop of the ۹/۱۱ (۲۰۰۱) incidents in US, Pakistan backtracked from the support of the Afghan Taliban under the US pressure, Afghan Taliban's Pakistani supporters and counterparts (now called Pakistani Taliban) resented this U-turn and owed to fight against the US and its allies.[۱]

ترجمه: کله چې په امریکا کې د ۲۰۰۱م کال د ۹/۱۱ له حادثې وروسته پاکستان د امریکا د حکومت د دباو له وجې د افغان طالبانو له مرستې نه واپس شو، نو د افغان طالبانو پاکستاني مرستیالان (چې اوس ورته پاکستاني طالبان وايي) په دې واپس کېدلو خفه شول او د امریکا او د هغې د مرستیالانو خلاف یې جنګ شروع کړ.

په دغه وخت کې سوات يو طرف ته د افغانستان له حالاتو او بل طرف ته له پاکستاني طالبانو نه ډېر اغېزمن شو او يويشتمې پېړۍ د سوات په تاريخ کې يو نوی باب پرانستی شو. دغه وجه ده چې د دې دور ادب هم له وړاندينو دورونو نه ځينې مختلف خصوصيات لري، لکه څنګه چې ذکر شو د ځينو نړيوالو او ځينو مقامي حالاتو له وجې د دې پېړۍ له شروع نه سوات پخپله هم د ترهګرۍ او اړي ګړي ښکار شو. د سوات د حالاتو د خرابېدو وجوهات ډاکټر سلطان روم داسې بيانوي:

The people not only saw to the state period with nostalgia but also aspired for a positive change; especially in the judicial system and apparatus. With the passage of time some other factors—like the Afghan and Kashmir jihad, activities of Tahrik Nifaz-e-Shariat-e-Muhammadi (TNSM), vested interests of different elements and mafias, failure of the successive governments to in spirit implement the Islamic laws per the demand of TNSM and their own promises, and the intelligence agencies—worked in their own ways. All these culminated into the upsurge of ۲۰۰۷, the Pakistani security forces action and so-called operation, bringing destruction to Swat, its inhabitants and institutions. At reaching to agreements between the provincial government and TNSM (in April ۲۰۰۸) and the provincial government and the Swati Taliban headed by Fazlullah (in May ۲۰۰۸), the prospects for a durable peace emerged. However, shortly after the situation again became volatile, each side blaming the other for not honouring the agreements. These brought further miseries to the land, institutions and people of Swat.[۲]

ترجمه: خلکو نه يواځې په رياستي دور پسې ارمان کولو، بلکې د يو مثبت بدلون ارزو يې هم لرله، په خصوصي توګه په عدالتي نظام او مشينرۍ کې. د وخت تېرېدو سره څه نور عوامل لکه د افغانستان او د کشمير جهاد، د تحريک نفاذ شريعت محمدي سرګرمیانې، د مختلفو عناصرو او مافياګونو پټ مقاصد، د تحريک نفاذ شريعت محمدي او د حکومت د وعدې مطابق په حقيقي معنو کې د اسلامي نظام په نفاذ کې د حکومت

مسلسل ناکامي او استخباراتي ادارو په خپله طریقه کار وکړ او د دې ټولو عواملو په نتیجه کې د ۲۰۰۷ حالات مخې ته راغلل. د پاکستاني امنیتي ځواکونو کاروایي او تش په نوم فوځي اپرېشن سوات ته، د دې ځای خلکو او د دې ځای ادارو ته تباهي راوستله. د صوبایي حکومت او تحریک نفاذ شریعت محمدي د ۲۰۰۸م کال په اپرېل کې یوې معاهدې ته رسېدلو او د صوبایي حکومت او د فضل الله په قیادت کې د سواتي طالبانو په مینځ کې د ۲۰۰۹م کال په می کې شوې معاهدې په سوات کې د یو پایدار امن امکانات پیدا کړل، خو له دې وروسته ډېر زرحالات نور هم خراب شول. هر فریق په بل د معاهدې د احترام نه کولو تورونه ولګول، له دې وجې د سوات په خاوره، خلکو او ادارو نور مصیبتونه راغلل.

لکه څنګه چې مخکې ذکر شوي، چې د ۱۹٦۲کال په ائین کې سوات ته د قبایلي علاقې حیثیت ورکړل شو، چې وروسته هم برقرار وساتلی شو. د سوات د دې قبایلي حیثیت برقرار ساتلو له وجې دلته په ۱۹۹۴ ، ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸ کې د امن و امان حالات خراب شول او خلک د نظام د بدلون لپاره راپورته شول او بیا وروسته وقتي طور طالبان هم دلته کامیاب شول.[۳] په یویشتمه پېړۍ کې د سوات د حالاتو خرابېدو او د دې په وجوهاتو د ځان پوه کولو لپاره له نورو خبرو علاوه د سوات په دې خبره پوهېدل هم لازمي دي چې سوات د پاټا یوه حصه ده.[٤]

## پښتو ادب

په دې دور کې پښتو ادب ښه ترقي کړې د، د ادب په هر یو صنف کې څه نه څه لیکل شوي دي. په دې دور کې نوي نوي اصطلاحات په ادب کې په نظر راځي، په دې دور کې په ادب نړیوال اثرات هم ښکاره دي. له دې علاوه د دې دور په پښتو ادب کې د سائنس او ټیکنالوجۍ اثرات هم د نورو دورونو په نسبت ښکاره په نظر راځي.

## پښتو افسانه

په دې دور کې په مختلفو رسالو کې له خورو ورو افسانو علاوه د افسانو مجموعې هم چاپ شوي دي. په دې دور کې چې د افسانو کومې مجموعې چاپ شوي دي په هغو کې یو څو مجموعې دا دي: تغمې[٥]، دا مزی غوځول غواړي[٦]، شلیدلي تارونه[۷]، ماته ائینه.[۸] په دې ټولو افسانو کې د دې دور عکاسي شوې ده.

## پښتو ناول

په سوات کې د پښتو ناول شروع له رياستي دور نه شوې او بيا وروسته په هر دور کې ناولونه ليکل شوي دي. په دې دورکې چې د پښتو کوم ناولونه ليکلی شوي، هغه دا دي: الله او بهگوان[٩]، سکندر اعظم [١٠]، گلالی،[١١] "کوربانۀ خيالونه". دا ناولونه تاريخي او سياسي پسمنظر لري. "کوربانه خيالونه" يو ساينسي رنګ لري، دا کتاب هم د ناول بڼه لري، خو د روايتي ناول په هيئت کې نه دی ليکل شوی.[١٢]

## ادبي تذکرې

په ادبي تاريخ ليکنې او تحقيق کې هم په دې دور کې کار شوی دی. په دې دور کې چې کومې ادبي تذکرې د سوات د شاعرانو او ليکوالانو ليکل شوي، هغه دا دي:"د يوسفزو گلونه"[١٣]، "دصحرا ونه"[١٤]، "زما د لرې وطن ياره"[١٥]، "د ايلم گلونه"[١٦]. په دې تذکرو کې "د صحرا ونه" او "زما د لرې وطن ياره" هغه تذکرې دي چې په عربي ملکونو کې ليکل شوي، د سوات اديبانو ليکلي او د سوات د ليکوالانو او شاعرانو ذکر لري.

## د تصوّف تذکرې(Hagiographies)

د تصوف په اهمو تذکرو کې "د تصوف ځلانده ستوري خزينةالاولياء" شامله ده[١٧]. په دې کتاب کې د ټولې پښتونخوا د صوفيانو او وليانو ذکر موندل کېږي.

## نعتيه مجموعې

که له اول دور نه وکتلی شي نو د سوات پر ادب د مذهب ښکاره اثرات په نظر راځي. د اولني دور ادب خو زيات مذهبي رنګ لري او بيا وروسته په نورو دورونو کې هم په ادب د مذهب رنګ په څه نه څه شکل کې په نظر راځي، لکه د سوات د پښتو ادب په دې دور کې د نعتونو مجموعې هم ليکل شوي دي. د نعتونو د يو څو کتابونو نومونه دا دي: نوي نعتونه[١٨]، جلوې[١٩]،ائی گنبد خضرٰی[٢٠]، راز ونياز[٢١]، و رفعنا لک ذکرک[٢٢]، گډ وډ لعلونه[٢٣] او نور. دا خو هغه مجموعې شوې چې ټول په ټوله په نعتونو مشتملې دي، خو له دې نه علاوه په نورو کتابونو کې هم نعتونه ليکل شوي دي.

## د ماشومانو سندرې

د دنیا په هره ژبه کې د ماشومانو سندرې موجودې دي چې په ادب کې ورته د ماشومانو صوتونه هم وايي. دا سندرې د هر ماشوم د ژوند ملګرې وي او هر ماشوم دا په خپله ماشومتیا کې اوري. ماشومان دا زده کوي او دغه رنګ له یو نه بل ته او له بل نه بل ته پاتې کېږي. میندو، دائي ګانو او قلاروونکو هم په دغه جوړ دا زده کړې دي.[۲٤] د ماشومانو په دې سندرو کې ډېر یو شانوالی وي خو بیا هم د یوې علاقې او د بلې علاقې د ماشومانو په سندرو او صوتونو کې لږ لږ فرق ضرور وي. ډاکټر دیدار یوسفزي د "زرغون زیري"[۲٥] په نامه د ماشومانو لپاره نظمونه هم لیکلي دي. شاه وزیر خان خاکي د سوات د ماشونانو یو څو صوتونه لیکلي دي،[۲٦] چې په هغې کې دا لاندیني صوتونه په سوات کې ډېر مشهور دي او د سوات د هر کلي ماشومان ترې ښه خبر دي، چې کله باران زیات شي او د باران د ودرېدو سوال ماشومان کوي، نو دې صوت ته "شین" وايي او دغه صوت ماشومان داسې وايي:

یــــــا خدایـــــــه شـــــــین یـــــــې کـــــــړې
د شـــــــین غوایـــــــه پټـــــــون یـــــــې کـــــــړې
شـــین کـــانې رارتـــاو شـــه خانـــک دوړې دوړې لاړه
یـــو پـــه تمبګـــۍ راغـــی بـــل پـــه تنـــاره راغـــی
یـــــــو تـــــــه مـــــــې ډوډۍ واچولـــــــه
بـــل تـــه مـــې وې کـــورې شـــه تـــو تـــو الا هـــو
خدایـــــــه ځـــــــوی ورلـــــــه ورکـــــــړې
پـــه غـــوړو یـــې غـــوړوي، پـــه شـــودو یـــې لمبـــوي
قـــــــران تـــــــه یـــــــې کېښـــــــنوي
د رېښـــمو پـــه ټـــاټۍ کـــې یـــې ځنګـــوي
بـــــــې بـــــــې خـــــــیر یـــــــا جـــــــواب

په دې طریقه به دوی ته د هر کور ښځینه وو اوړه یا دانې ورکولې او دا به دوی بیا یو ځای حلوا پخه کړه او په شریکه به یې وخوړه، چې د کوم کور والا به اولاد نه و، نو هغوی ته به یې پکې د اولاد دعا وکړه او هغوی به نور هم په مینه اوړه یا دانې ورکړې.

د روژې په میاشت کې به ماشومانو کوټې ته روژه ماتې وخېژوله او چې بانګ به یې

ووې، نو دا چغې به يې وهلې.

بانـــــــګ يـــــــــې ووې روژه مـــــــاتې
خـــــــــانی راغلـــــــــــی ننــــــــــواتې
ږيــــــره يــــــې خرېلــــې برېــــــت يــــې پـــــاتې
د طالبـــــــانو ســـــــړې ډوډۍ ميراتــــــــې پـــــاتې

چې ماشومانو به اوښان په لاره وليدل، نو دا نعرې به يې وهلې:

اوښـــــــــــه اوښـــــــــــــه ډانګـــــــــــــه
لويـــــــــــــــــــه دې غړانګـــــــــــــــــــه
پـــــــه بېـــــــره کــــــــې ټـــــــال واچـــــــوه
ســـــــــبا بېګـــــــــا پــــــــرې ځانګـــــــــه

چې کله د غوايانو پر ځای د يوې کولو لپاره ټرېکټر وليدی شو، نو ماشومانو به دا نعرې وهلې:

هغـــــــــه دی ټرېکټـــــــــــر راغـــــــــــــی
غـــــــــټ کونــــــــــــاټور راغـــــــــــــی
پــــــــبچ پکـــــــــې تـــــــاويږي راتــــــــاويږي
د خانـــــــــــــانو پکـــــــــــــــــې زور دی
دا څنګــــــــــــــــــه لاهـــــــــــــــــور دی

چې چا به سر کټا کړ، نو هغه ته به يې داسې ويل:

اېــــــــــــــک دو تـــــــــــــــين
کټـــــــــــا سری دو متـــــــــــــين

يا به يې داسې ويل:

کټـــــــا کـــــــــــټ دی پـــــــــــه کوټـــــــــه
ســـــــــحر راپاڅـــــــــــه مـــــــــور تـــــــــه وايـــــــه
مالـــــــــــــــه غـــــــــــــــوړه پراټـــــــــــــــه

چې د چا په مخ کې به د ننکو يا د نورو ناروغيو له لاسه ټکي ټکي جوړ شوي وو، نو ماشومانو به ورته داسې وې:

ټیکـــــــــــی ټیکــــــــــی مــــــــخ

هســــــــپتال تـــــــه مخـــــــــامخ

چـــــــا ویشـــــــتلی پـــــــه ټوپـــــــک

چې د چا سترګې به شنې وې، نو هغه ته به یې داسې ویل:

شـــــــــین ټغـــــــــه پټوټغـــــــــه

د نســـــــــــــوارو کتولیـــــــــــــه

د پــــــــــیر بابـــــــــا نولیـــــــــه

د پینځه شپږو کالو په عمر کې به چې د کوم ماشوم غاښونه ووتل، نو نورو ماشومانو به ورته داسې ویل:

کنډاســـــــــــه غـــــــــــور پنډاســـــــــــه

انـــــــډې خـــــــوره انـــــــډې اوباســـــــه

د ســـــیند پـــــه پـــــورې غـــــاړه کېښـــــنه

مړدکـــــــــــــي راپـــــــــــوري باســـــــــــه

کـــــــه یـــــــو درنـــــــه خطـــــــا شـــــــه

خولـــــــــه دې چینګـــــــــه راوباســـــــــه

خویندو چې به خپل ورونه په غېږ کې واخستل او د هغوی د خندولو کوښښ به یې کاوه، نو د هغوی په وجود به یې ګوتې اېښودلې او دا به یې ویل:

دا پــــــــــــــی دي دا ژېــــــــــــــژې دي

دا غــــــــــــوړي دي دا ماســــــــــــته دي

دا شــــــــــوده دي دا بــــــــــه خــــــــــورو

دا بـــــه ږدو، دا بـــــه جـــــمات لـــــه ورکـــــوو

دا بــــــــه مېلمـــــــــه لــــــــــه ورکــــــــوو

دا بــــــــه توتـــــــــو تـــــــــه اچـــــــــوو

غـــــل، غـــــل راغـــــی دلتـــــه یـــــې شـــــپه شـــــوه

غـــــل، غـــــل راغـــــی دلتـــــه یـــــې شـــــپه شـــــوه

تخ،تخ،تخ،تخ،تـــــــــــــــــــــــــــخ

او په دې طریقه به یې ماشوم وتخنولو او هغه به وخندل.

کله به چې په کوټه جینکو لاسونه ورکړه او سندرې به یې ویلې، نو داسې به یې وې:

هغـــــــــــه دي ملخـــــــــــــوزې دي
لـــــــــــویې لـــــــــــویې ښـــــــــځې دي
یــــــــــوه پکــــــــــــې پــــــــــردۍ ده
نـــــورې تـــــــولې زمــــــا د ورور ښـــــځې دي

له دې لوبو او صوتونو علاوه د ماشومانو په صوتونو کې منظوم اړونه هم شامل دي، لکه دا:

درې چتـــــــــــــــه بنگلـــــــــــــــه ده
پـــــــه یـــــــوه ســـــــتنه راټینگـــــــه ده
خولـــــــه دې ولـــــــــې چینگـــــــه ده
څـــــــــــــه شي (شــــــــــــــــوتل)

او یا لکه دا اړ:

کـــــــــړه وړه پـــــــــه غـــــــــره ختــــــــــه
ازغــــــی یـــــې تـــــریخ مېـــــوه یـــــې خـــــوږه
څـــــــــــــــه شي (مچـــــــــــــــــــۍ)

او د ماشومانو داسې نور هم بې شماره صوتونه دي، چې د پښتو ادب پوهانو پرې وخت پر وخت تحقیقي کتابونه لیکلي دي:

## د ماشومانو لوبې

پخوا به هلکانو پټ پټونی، سخې گوډی، کبډې، غوزان، ټیکان، انگۍ، شاټوپۍ، اپړا ککی، څپلي مار او پرځول او نور کول، اوس فوټبال، والیبال او کرکټ زیات شوي، نو دا لوبې ډېرې کمېږي. جینکو به پټ پټونی، میرگاټې،څیندخ، بهاگه او د لېنزکو لوبې کولې. د ټي وي او موبایل راتگ او بیا په تېره تېره سوشل میډیا هم د دې لوبو په ورکولو کې لوی کردار دی. له دې نه علاوه په حجرو بېټکونو کې کیرم بورډ، تاش ، شطرنج، لډو او چکه هم لږ لږ کېږي.[۲۷] د یو څو لوبو ذکر په دې شعرونو کې شوی دی:

چـــــــــې ډبلــــــــــۍ او پـــــــــټ پټــــــــوني بـــــــــه وو
د مــــــــیره ډبلــــــــۍ هغــــــــه مــــــــل نــــــــه ویـــــــنم

چـــــې بـــــه گـــــوتى د نيمـــــې شـــــپې پـــــورې وه
د څـــــپلي مـــــار هغـــــه ويشـــــتل نـــــه ويـــــنم[28]

او يو بل شعر کې داسې وايي:

ســـــره روټـــــۍ خـــــوراک شـــــوملو، پيـــــازو او گـــــوړې سره
هغـــه ميرگـــاټ، هغـــه چينـــدخ، هغـــه گنـــډل نـــه ويـــنم[29]

د څو نورو لوبو ذکر داسې کوي:

هغـــــه دودونـــــه د نېنزکـــــو کـــــوټگۍ چـــــې بـــــه وې
هغـــه پـــوليس ډاکـــو پـــه لوبـــو کـــې نيـــول نـــه ويـــنم
هغـــــه بتخـــــې د يـــــو بـــــل پـــــه اوږو ســـــواره گرځېـــــدل
هغـــــه د پټـــــو ســـــترگو لـــــوبې گرځېـــــدل نـــــه ويـــــنم[30]

## صحافتي ادب

د سوات پر صحافتي ادب په څلورم باب کې لږ ذکر او په پينځم او شپږم باب کې په تفصيل خبرې شوې دي، چې له دغو دورونو سره متعلق وې. په دې دور کې د صحافتي ادب ذکر به په دې باب کې کولی شي. روزنامه سلام چې په ۱۹۹۳ کال کې له شروع کېدو نه وروسته بيا بنده کړل شوې وه هغه په ۲۰۰۱ کال کې بيا شروع شوه. علي حضرت باچا د دې اخبار چيف ايډيټر و او ميا سيد عمر ناصح د دې ايگزيکټيو ايډيټر وه.[31]

په دې دور کې هم په سوات کې د پښتو ډېرې رسالې چاپ شوې دي. په دې کې ځينې داسې رسالې دي چې د مخکې نه چاپ کېدې، لکه د جهانزېب کالج علمي او ادبي رساله ايلم، د گرلز کالج مينگورې رساله مرغزار، د چاپيريال ساتنې ټولنې رساله "ادهيانه ټوډې"، او نور په وړومبو بابونو کې د دوی ذکر شوی دی. له ۲۰۰۱ نه را په دېخوا چې د پښتو کومې رسالې چاپ شوي په هغو کې دا رسالې شاملې دي: د مټې کالج ميگزين "ماندور" د پرائېوېټ سکولز مېنېجمنټ ايسوسي اېشن تحصيل بابوزي رساله "سباون"، د اېس پي اېس کالج سوات کليزه ادبي مجلّه "دي ايگلټ"، له مينگورې نه وتونکې يوه معياري رساله "مينه"، د گورنمنټ ډگري کالج مينگورې رساله "ادهيانه"، د پښتو ادبي رڼا الرّياض سعودي عرب نه د سوات د ليکوالانو رساله "رڼا" د ايم پي اېس کالج رساله "فضاگټ" او نورې.

## ادبي ټولنې

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوي، چې د رياست له ادغام وروسته وخت پر وخت مختلفو اديبانو او شاعرانو ادبي ټولنې جوړې کړې. دغه سلسله له ۲۰۰۱ کال نه را په دېخوا هم جاري ساتل شوې ده. په ۲۰۰۶ کال کې د ډاکټر ديدار يوسفزي په سرپرستۍ کې په کالا کلي کې "چنار پښتو ادبي ټولنه " جوړه شوه او په همدغه کال ۲۰۰٦ کې په دېولۍ کې د "يوسفزي پښتو ادبي ټولنه" جوړه شوه. د دې سرپرست اعلیٰ حاجي محمود خان محمود و او باقي عهديداران يې دا دي: صدر معراج الدين سنګين، نائب صدر سردار عالم ساتر، سينئر نائب صدر محمد اقبال مخلص، جنرل سيکرټري اکبر زېب مجذوب، رابطه سيکرټري طاهر شاه حسرت، ډپټي جنرل سيکرټري محمد الياس ثاقب، فنانس سيکرټري سعيد علي شاه سعيد، ـ په مټه کې د "سوات ادبي الوت" په نوم هم يو فعال تنظيم کار کوي. په درشخېله کې "مشال پښتو ادبي ټولنه" کار کوي، په سخره کې "روڼ سحر ادبي ټولنه" جوړه شوې ده. په ۲۰۱۰ کال کې په خوازه خېله کې "دستار ادبي ټولنه" محمد ساجد ساجد او رفيع الله جوړه کړې ده. په ۲۰۱۲ کال کې په سبړ سينۍ کې "دوکټ پښتو ادبي ټولنه" سکندر شاه سکندر، ناصر نسيم يوسفزي، محمد شېرعلي خان ثالث، علي خان او احمد شاه عقاب جوړه کړې ده. د تحصيل خوازه خېلې په يو کلي شالپين کې محمد علي ديناخېل، فضل تواب خاکسار، جاوېد اشرف پرهر، حبيب احمد حبيب، عمر عالم خالص او محمد انور کرال د "ادهيانه ادبي او کلتوري ټولنه شالپين سوات" بنياد کېښوده[۳۲]

## پښتو ژبه

لکه څنګه چې په وړاندې بابونو کې ويل شوي، چې سوات هغه وړومبی رياست دی چرته چې يواځې پښتو سرکاري ژبه وه. همدغه وجه ده چې په سوات کې د پښتو ژبې د ترقۍ او پرمختګ لپاره ډېرې هلې ځلې کېږي. دلته د مورنو ژبو د نړيوالې ورځ په موقعه د پښتو ژبې د پرمختګ لپاره صلاح ګانې او مشورې هم کېږي او پوهان د دې ژبې د ودې لپاره خپل تجويزونه وړاندې کوي.[۳۳]

يو شاعر په يو نظم کې پښتو، پښتنو ته داسې مخاطب کړې ده:

راځـــــئ زمـــــا غېـــــرې تـــــه ټـــــول جمـــــع شـــــئ
زه ستاســـــــو پـــــــت ستاســـــــو ښـــــــېګړه يمـــــــه

زه ستاسو ننگ ستاسو وفا یادېږم
زه هغه توره یم هم هغه توره
چې هم میدان گټي هم ننگ کوي
چې هم جهان گټي هم جنگ کوي
زه ستاسو مور یمه ما اوپېژنئ
زه ستاسو کور یمه ما اوپېژنئ[٣٤]

یو بل شاعر د پښتو ژبې په باره کې داسې وایي:

سپک ورته کتی نه شم زما د بابا ژبه ده
دا ژبه پښتو که زما ژبه ده ستا ژبه ده[٣٥]

فضل عظیم عظیم د سوات سیمې زده کونکو ماشومانو ته د پښتو ژبې په باره کې دا سې وایي:

د سوات د سیمې غیرتي او ننگیالو بچورو
د پلار او مور د پښتنې غېږ گلالو بچورو
په پردو ژبو خپله ژبه پښتو هېره نه کړئ
دغه غوښتنه درنه کړمه پوهیالو بچورو[٣٦]

د پښتو په حیثیت د مورنۍ ژبې اهمیت داسې بیان شوی دی:

پښتو زما د خوږې مور د خلې خوږه ژبه ده
دا زه په دې باندې د دې مقام اوچت گڼمه؟
نه نه یارانو تاسو ټول زما نه ښه پوهه یئ
د مورنۍ ژبې په هر ځای کې مقام اوچت وي
مونږه یو ټول مسلمانان مونږه پرې فخر کوو
چې زمونږ دین کې هم د مور د ژبې حق ډېر دی
ځکه چې ټولې صحیفې او کتابونه د خدای
که نازل شوي دي نو بس هم په هغې ژبه کې
کومه د وخت د پیغمبر چې مورنۍ ژبه وه[٣٧]

د مورنۍ ژبې پښتو په باره کې یو بل شاعر داسې وایي:

نشــــته پـــــه خلـــه کـــــې د ریـــا ژبــــه مــــې
چـــــې بـــــه گــــونگی شي د صـــدا ژبــــه مــــې
تـــــل بـــــه اظهــــار پــــرې دانــــگ پئیلـــــی کـــــوم
لا خـــــو ژونـــــــدی ده د بابــــــا ژبــــــه مــــــې[38]

د پښتو ژبې او د پښتون تهذیب قدر نه کوونکو په باره کې یو شاعر داسې جذبات لري:

وایــــي پښـــتو خـــو زمـــا شـــک پیـــدا شــــه
دا زیـــــــړولي پښـــــــتنو بـــــــه نــــــــه وي
هــــــر یــــــو انـــــداز د فرنگـــــي یـــــې خـــــوښ دی
څنگـــــه بچــــــي د فرنگـــــو بـــــه نــــــه وي
د خپلـــــې ژبـــــې هـــــڅو قـــــدر نــــه کـــــړي
پــــــه ســــپک نظــــر گــــوري پښــــتو ژبــــې تــــه
اوس کـــــړي هغــــه پـــــه خپلـــه ژبـــــه فخــــر
چـــــې کړیـــــدل د پښــــــتنو ژبــــــې تــــــه[39]

له پښتو سره مینه یو بل لیکوال داسې څرگندوي:

ویلـــو کــــې پښـــتو هـــم پـــه لیکلـــو کــــې پښــــتو
مــــزه ده ســــتا د نـــوم پـــه اخســـتلو کــــې پښـــتو[40]

دغه شاعران، لیکوالان دي چې هر وخت یې د پښتو خبره کړې، دا ژبه یې ژوندۍ ساتلې او په هر مقام یې ورته درناوی ورکړی دی.

## د انگرېزۍ ژبې او ادب اثرات

د دې دور پر ادب د انگرېزۍ ژبې او ادب اثرات هم په نظر راځي، لکه اختر حسین اختر د انگرېزۍ د یو نظم What a wonderful world منظومه ترجمه د " څه ښکلې دنیا ده" تر سرخط لاندې کړې ده.[41] بل ځای کې یې یو نظم "تقدیر" د انگرېزۍ د یو متل د اثر لاندې لیکلی دی، هغه متل دا دی: There are many slips, between the cup and the lips.ـ د دې نظم دوه شعرونه دا دي:

دا زمـــــــا لاس کــــــــې چـــــــې وینـــــــــې
خـــــــدای خـــــبر د چــــــا قســــــمت دی

د دې لاس او خلــــــــــــې تـــــــــــــر مینځـــــــــــــه
هـــــــــــــم یـــــــــــــو اوږد مســـــــــــــافت دی[42]

د یو بل نظم سرخط یې په انګرېزۍ کې ورکړی دی. Sonnet Composed Upon "Life"[43] او دغه رنګ د یو بل لنډ نظم نوم Seasons of the year دی.[44] یو بل شاعر او لیکوال فضل رازق شهاب هم د خپلو اکثرو ازادو نظمونو سرخطونه په انګرېزۍ کې ورکړي، لکه د نمونې په توګه دا نظمونه : Exoneration[45]،او بل نظم Infinity[46] له دې نه علاوه د نورو پښتو ازادو نظمونو سرخطونه یې دا دي چې په انګرېزۍ کې یې لیکل شوي دي: Open Secret, Et Tu Brutus, Quagmire, Last Episode, Wall of Tears, Leave me alone. د سوات په پښتو ادب کې دا وړومبۍ تجربه ده چې د ازاد نظم سرخط په پښتو کې وي.

## د سائنس او ټیکنالوجي اثرات

د دې دور پر ادب او ثقافت د ساینس او ټیکنالوجۍ اثرات هم ښکارېږي، چې د دې دور په ادب کې هم په نظر راځي، لکه د مثال په توګه د "موبایل" ذکر یې داسې کړی دی:

تـــــــــــا د دې دور ســـــــــــــهولت اوګـــــــــــــڼم
کـــــــــه دې د وخــــــــت لــــــــوی مصــــــــیبت اوګــــــڼم
درتـــــــــــه ضــــــــــیاع د مــــــــال او وخــــــــت اوایـــــــــم
کنــــــــــــــه د ژونـــــــــــــــد دې ضرورت اوګــــــــــــــڼم
لاســــــو کــــــې تــــــه د هــــــر یــــــو تــــــن سره یــــــې
د وړو لویـــــــــــــو مـــــــــــــرد و زن سره یـــــــــــــې
ورلــــــــه کــــــــه چــــــــل او طریقــــــــه نــــــــه ورځــــــــي
تــــــه یــــــې ســــــاتلی پــــــه ډېــــــر فــــــن سره یــــــې
څــــــوک دې رینــــــګ ټــــــونز څــــــوک تصــــــویرونه خوښــــــوي
څــــــوک دې نغمــــــې څــــــوک دې ګېمونــــــه خوښــــــوي
مــــــاډلې څــــــوک دې نــــــوې نــــــوې غــــــواړي
څــــــــوک دې اوږده اوږده بحثونــــــــه خوښــــــــوي[47]

یو بل شاعر د موبایل نقصان په دې هایکو کې داسې بیانوي:

سـ‍ـــمه بـــــلا مـــــې ده پـــــه جېــــب کــــې پرتـــــه
ثـــــومره پيســــــې چـــــې پـــــه موبايـــــل خــــوروم
دومــــــره پيســــــې خـــــو زه پـــــه خېټـــــه نــــــه خــــورم[٤٨]

چې کله په ټيليفون کېCLI ولګېده، نو د هغې په باره کې يو شاعر په يو ازاد نظم کې داسې ليکي:

ټيليفـــــــون چــــــې پـــــــه کړنګــــــا شــــــه
ريســــــــيور بـــــــه مــــــــې اوچـــــــت کــــــړه
يـــــــــو رېښـــــــمين اواز بــــــــه راغــــــــى
زمــــــــا زړه بـــــــه پـــــــه درزا شـــــــه
ټـــــول مــــاحول بــــــه سر او ســـــاز شـــــه
خـــــو يـــــــو نـــــــوې بـــــــلا راغلـــــه
ټيليفــــــــون کــــــــولى نــــــــه شــــــو
يــــــار تـــــه يــــــار ويلــــــى نــــــه شــــو
CLI مــــــــــو رقيـــــــــب شـــــــــــــه[٤٩]

له ساينس او ټيکنالوجي سره د سوځولو ګيس پيدا شوی، چې ډېر اهم څيز دی. د ګېس له راتلو سره چې په کليوال ژوند کې کوم بدلون راځي د هغې نقشه يو شاعر داسې پېش کړې ده:

د خشــــاک پنـــــډ يــــې اوس پـــــه سر نـــــه ښــــکاري
پــــــه دېوالـــــه ځپيــــــاکې هــــــم نــــــه تپـــــي
چـــــا وې چـــــې کــــلي تــــه يــــې ګـــــېس ورســــېد[٥٠]

دغه رنګ د نوو نوو ايجاداتو او د ساينس او ټيکنالوجۍ بلها مثالونه د دې دور په ادب کې موندل کېږي، چې ترې په اسانه دا اندازه لګېدلی شي چې د دې دور پر تهذيب او ثقافت باندې د ساينس او ټيکنالوجۍ اثرات پرېوتي دي.

### د نوي دور اثرات او ترقي

انساني ترقي د ارتقاء له مرحلو نه تېر وتلې او د جديديت شکل يې اختيار کړی دی. يو وخت انسان په قبايلي طريقه ژوند کولو، د قبايلي دور متعلق شېر عالم خان داسې ليکي:

چپاوونـــــــه هـــــــم داړې بـــــــه پـــــــه یـــــــو بـــــــل وې
یـــــــوه ورځ بـــــــه د دوی نـــــــه وه دا بـــــــه تـــــــل وې
یـــا بـــه مـــړه شـــو یـــا بـــه یـــې هـــر څـــه ټـــیس ټپـــاس کـــړل
چـــې بـــه یـــې غشيـــ ښـــه تېـــره لکـــه المـــاس کـــړل
قبایـــــــل پـــــــه دې مـــــــرض کـــــــې مبـــــــتلا شـــــــو
اختـــــــه واړه د جنګونـــــــو پـــــــه بـــــــلا شـــــــو
د انـــــــا مســـــــئله هـــــــم ورسره مـــــــل شـــــــوه
بیـــا پـــه جنـــګ کـــې بهـــادري ښـــه یـــو پـــه ســـل شـــوه
د نـــــــامې پـــــــه نامـــــــه ځـــــــان بـــــــه یـــــــې قتلولـــــــو
دا پښـــــــتو وه چـــــــې پـــــــه شـــــــا نـــــــه ګرځېـــــــدلو
څـــوک چـــې مخکـــې رســـېدو د جنـــګ میـــدان تـــه
قبیلـــــــې بـــــــه بیـــــــا کتلـــــــو دغـــــــه ځـــــــوان تـــــــه
پېغلـــــــې جونـــــــه بـــــــه هـــــــم تلـــــــې ورپســـــــې شـــــــاته
چرتـــــــه را نشيـــــــ زلمـــــــي زمـــــــونږ پـــــــه ماتـــــــه[۵۱]

او له قبایلي دور نه چې انسان ووته، نو ډېره ترقي یې وکړه او د جدیدیت په دور کې داخل شو. د جدیدیت په باره کې فضل خالق فضل داسې لیکي:

د اخـــــــر وخـــــــت نخښـــــــانې چـــــــې شـــــــوې بیـــــــان
نصـــــــیحت تـــــــه د مـــــــلا شـــــــومه حـــــــیران
ګرځـــــــي ښـــــــځې پـــــــه ښـــــــکاره مـــــــخ پـــــــه بـــــــازار کـــــــې
ور پســـــــې بـــــــه لېونیـــــــان وي ډېـــــــر ځوانـــــــان
مـــــــال دولـــــــت او د پیســـــــې قـــــــدر بـــــــه ډېـــــــر وي
ورک بـــــــه فـــــــرق شي د انســـــــان او د حیـــــــوان
دیـــــــن ایمـــــــان او د حیـــــــا وجـــــــود بـــــــه ورک شي
فحـــــــاشي بـــــــه شي خـــــــوره پـــــــه ټـــــــول جهـــــــان
د نېکـــــــانو پـــــــه ټـــــــولګي کـــــــې بـــــــه کمـــــــی وي
هـــــــر یـــــــو تـــــــن بـــــــه وي ملګـــــــری د شـــــــیطان
بـــــــاوجود بـــــــه د ډېـــــــر علـــــــم ګمراهـــــــان وي

د اســــــلام مــــــذاق بـــــه کـــــړي ټـــــول کـــــافران[٥٢]

له نوي دور سره خلک په معاشي توګه نسبتاً ښه شوي، لکه هلالي چې وايي:

نـــــن هغـــــو خلقـــــو پـــــه غـــــوړ کړلـــــې والـــــې
چـــــې کـــــول بـــــه يـــــې خدمتونـــــه پـــــه ســـــيالۍ
پولاوونـــــه نـــــن د هغـــــه چـــــا خـــــوراک شـــــول
چـــــې خـــــوړې بـــــه يـــــې ډوډو سره مـــــولۍ
تېلـــــه داړې ټـــــوپۍ هغـــــه چـــــا پـــــه سر کـــــړې
چـــــې پـــــه سر يـــــې وو زخمونـــــه د ړلـــــۍ
د سرو خښـــــتو او ســـــيمټو يـــــې مکـــــان شـــــه
چـــــې بـــــه نـــــه وه د ســـــپېرکي د خـــــوار بلـــــۍ
چـــــې ګـــــزران بـــــه يـــــې کولـــــو پـــــه وربشـــــو
نـــــن ټرکونـــــه د دانـــــو ډک چلـــــيږ
قمقمـــــې ورتـــــه بليـــــږي پـــــه محـــــل کـــــې
چـــــې بـــــه نـــــه مونـــــدل غريـــــب تېـــــل يـــــو پلـــــۍ[٥٣]

خو له نوي دور سره سره انسان خپل ډېر کلتوري او ثقافتي روايات وبايلل. دغه وجه ده چې ځينو ليکوالانو "نوی دور" غندلی هم دی.

د نـــــوي دور تقاضـــــو رالـــــه ګـــــودر تالـــــه کـــــړه
دې رواجونـــــو د ښـــــکلا ډک مـــــازيګر تالـــــه کـــــړه
څـــــه خوشـــــحالۍ وې خنـــــدا ګـــــانې او ســـــيالۍ د جونـــــو
کـــــور لـــــه راغلـــــو ابـــــو دوی لـــــه دا اخـــــتر تالـــــه کـــــړه
پـــــه ديـــــدن ماتـــــه بـــــه شـــــوه تنـــــده د زلمـــــو او پېغلـــــو
وخـــــت د نشـــــو او تماشـــــو ډک ســـــمندر تالـــــه کـــــړه
هـــــم بـــــه ســـــېلونه وو، چکـــــر وه هـــــم بـــــه اوشـــــو ورزش
د ژونـــــد رفتـــــار دغـــــه هـــــر څـــــه ډېـــــر پـــــه هـــــنر تالـــــه کـــــړه
بـــــل پـــــه ســـــپرلي کـــــې بـــــه پټـــــو تـــــه جونـــــه ســـــاګو لـــــه تلـــــې
د نـــــن حـــــالاتو د ســـــپرلو هغـــــه اثـــــر تالـــــه کـــــړه
پـــــه شـــــنو پټـــــو کـــــې بـــــه شـــــنې ســـــپينې لـــــوپټې ښـــــکارېدې

د بازار ساګو د مئېن، د سود نظر تاله کړه
نه د مرغو شور او چغار شته نه خوږې سندرې
د مال لالچ مو دنګ چنار او لوی نختر تاله کړه[٥٤]

د نوي دور له اسانتیاوو سره ځینې څیزونه له ژوند نه داسې لاړ شي چې د هغوی په تللو ژوند ډېر پیکه شي، ځکه خو ثاقب وايي:

چرته په نلکو کې دې ابه کلي ته را نه شي
چرته دې منګي زما د یار د سر نه کوز نه شي[٥٥]

ګودر د پښتو په ولسي صنف ټپه کې هم ډېر یاد شوی دی، لکه دا ټپې:

جانانه مرم نه پاتې کېږم
لېونو سترګو په ګودر خوړلی یمه[٥٦]
د ګودر هر بوټی دارو دی
هر مازیګر پرې جونې سترګې لګوینه[٥٧]

لکه وړاندې چې ذکر شو چې په ثقافت کې چې کوم بدلون راغلی، هغه ځینو خلکو غندلی او ځینو لیکوالانو په دې بدلون "ساندې" هم ویلې دي، لکه چې وايي:

ورانې حجرې شوې وران د کلي ګودرونه
خدای خبر ولې داسې اوشو
نشته مېلې او نه د پېغلو اتڼونه
خدای خبر ولې داسې اوشو
نه مېخکې شته نه پېزوان شته
نه پېکړې نه باهوګان شته
نه د چارګل هاغه دوران شته
نه اورېدی شي د پازېبو اوازونه
خدای خبر ولې داسې اوشو
نه هاغه بام شته نه بلۍ شته
د جونو ټېل شته نه سیالۍ شته
نه پټ پټونې نه انګۍ شته
نه خپل مئېن ته څوک کوي اشارتونه

خـــــــدای خـــــــبر ولـــــــې داســـــــې اوشـــــــو
ورکـــــــه پښـــــــتو ورکـــــــه حیـــــــا شـــــــوه
مینـــــــه عنقـــــــا ورکـــــــه وفـــــــا شـــــــوه
دا څـــــــه دنیـــــــا وه څـــــــه دنیـــــــا شـــــــوه
پـــــــه چغـــــــو جـــــــاړم یادومـــــــه تېـــــــر وختونـــــــه
خـــــــدای خـــــــبر ولـــــــې داســـــــې اوشـــــــو
اوس نـــــــه محفـــــــل شـــــــته نـــــــه یـــــــاران شـــــــته
نـــــــه چرتـــــــه جـــــــان شـــــــته نـــــــه جانـــــــان شـــــــته
نـــــــه څـــــــوک د مینـــــــې صـــــــادقان شـــــــته
لائقـــــــه بـــــــل د نفرتونـــــــو دي اورونـــــــه
خـــــــدای خـــــــبر ولـــــــې داســـــــې اوشـــــــو[58]

له یوې ورځې نه بلې ورځې ته په ساینس او ټیکنالوجۍ کې ترقي کېږي، نوي نوي ایجادات کېږي، د انسانانو په ژوند کې د لاسو خپو محنت کمېږي، دا ټول عوامل د انسان د ژوند په هر اړخ اثرات پرېباسي. که د سوات د تاریخ تېرو دورونو ته مونږ وګورو او بیا یې له یویشتمې پېړۍ سره موازنه وکړو، نو مونږ ته په اسانه په نظر راځي چې دا دور په ډېرو حوالو له تېرو دورونو نه بدل دی.

## پښتونولي

له ژبې نه علاوه پښتو د پښتنو د ضابطه حیات نوم هم دی، د دغه پښتو په باره کې یو شاعر داسې وایي:

پښـــــــتو د یـــــــو بـــــــل د عـــــــزت نـــــــوم دی
د ورورولـــــــــــــــــی د محبـــــــــــــــت نـــــــــــوم دی
پښـــــــتو د زړونـــــــو د وحـــــــدت نـــــــوم دی
پښـــــــتو پښـــــــتو ده ډېـــــــر اوچـــــــت نـــــــوم دی
د هـــــــر ســـــــتم خـــــــلاف اواز پښـــــــتو
خـــــــودي پښـــــــتو، د نفـــــــس اعـــــــزاز پښـــــــتو
د محبـــــــت د نغمـــــــو ســـــــاز پښـــــــتو

پښـــــــــتو د رحـــــــــم د شـــــــــفقت نـــــــــوم دی[٥٩]

د دې پښتو او غیرت په باره کې یو بل شاعر داسې وايي:

پښـــــتو غـــــیرت پښـــــتو حیـــــا پښـــــتو عـــــزت تـــــه وایـــــي
پښـــــتو راحـــــت پښـــــتو خـــــدمت پښـــــتو جـــــرات تـــــه وایـــــي[٦٠]

د وخت له تېرېدو سره پښتو او پښتونولي ورو ورو په کمېدو دي، لکه یو شاعر چې وايي:

پخـــــوا دیـــــن غـــــیرت پښـــــتو وه پـــــه هـــــر چـــــا کـــــې
دا دري واړه اوس ختمېـــــــــــــــــــږي د دنیـــــــــــــــــــا[٦١]

ډېر خلک خپل نا حق ضد ته هم پښتو وايي، خو دغه پښتو نه وي، لکه یو شاعر چې وايي:

تـــــه چـــــې څـــــه تـــــه پښـــــتو وایـــــې دا پښـــــتو نـــــه ده
تـــــه چـــــې کومـــــه ارزو غـــــواړې د غوښـــــتو نـــــه ده[٦٢]

پښتو یا پښتونولي ډېر ښه اوصاف لري او که پر دغه لار سړی روان شي، نو بې ځایه به نه وي که داسې ووایو چې د دین په لار به هم سم روان شي. دغه وجه ده چې ډېر پښتانه پښتو د دین او ایمان مترادف ګڼي:

دا مـــــې دیـــــن دا مـــــې پښـــــتو دا مـــــې ایمـــــان دی
پـــــټ پـــــه پټـــــه بانـــــدې هـــــیچ چـــــا تـــــه دام نـــــه ږدم[٦٣]

پښتو چې د کومو لازمي توکو غوښتنه کوي، هغه دا دي:

پښـــــــــتو حیـــــــــا پښـــــــــتو غـــــــــیرت غـــــــــواړي
پښـــــــــتو ادب خپـــــــــل ثقافـــــــــت غـــــــــواړي
پښـــــــــتو ایمـــــــــان او صـــــــــداقت غـــــــــواړي
پښـــــــــتو وحـــــــــدت یـــــــــو جمعیـــــــــت غـــــــــواړي
یـــــه پښـــــتنو پښـــــتو پـــــه ســـــوال نـــــه کیـــــږي
پښـــــــتو ټوپـــــــک قتـــــــل وغـــــــارت خـــــــو نـــــــه دی
پښـــــــتو دروغ د بـــــــل غیبـــــــت خـــــــو نـــــــه دی
خـــــــوږل د بـــــــل حـــــــق څـــــــه غـــــــیرت خـــــــو نـــــــه دی
د خـــــــان ملـــــــک څـــــــه فضـــــــیلت خـــــــو نـــــــه دی
یـــــه پښـــــتنو پښـــــتو پـــــه ســـــوال نـــــه کیـــــږي[٦٤]

لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول چې ځینو خلکو پښتو او پښتونولي یو خاص ضد او

ناحق غیرت ته ویلی دی، پوه او تعلیم یافته پښتانه د دغه قسم پښتونوالي خلاف دي، لکه هلالي چې وایي:

مـــــا خپـــــل پښــــــتونوالی پخــــوا اور تــــه غــــورزولی دی
څــــوک خــــو دې دا ووئ چـــــې اثـــــر یــــې مـــا لیــــدلی دی
پتــــه وه کــــره چــــې پښــــتونوالی څــــه اثــــر نــــه کــــړي
ځکــــه پــــرې مــــا اور بنــــه پــــه اخــــلاص ورلگــــولی دی
زه د پښــــــتونوالي پــــــه مطلــــــب لا پوهــــــه نــــــه وومــــــه
بنــــه اوشــــو چــــې مــــا پــــه اور د مینــــې ســــوزولی دی
بنــــه شــــوه چــــې ســــتي شــــه پښــــتونوالی زمــــا تېــــر پخــــوا
مــــا د پښــــــتونوالي غــــرض ډېــــر مخکــــې بــــایللی دی[٦٥]

د هلالي د کتاب په دیباچه کې جمیل احمد لیکي چې هلالي خپل پښتونوالی په علم قربان کړه. له دې نه دا واضحه شوه چې علم حاصلول هم پښتنو د خپل شان خلاف کار گڼلو او دا د ملیانو کار وه.[٦٦]

## د مېلمستیا اداب

لکه څنگه چې ویل شوي چې په پښتو او پښتونولۍ کې مېلمستیا یو بنیادي توکی دی، همدغه وجه ده چې په ادب کې هم د مېلمستیا ذکر ډېر ډېر راځي. په دې لاندینو شعرونو کې د مېلمستیا د ادابو خبره بیان شوې ده:

دا نصــــــیحت واوره پــــــه تیــــــاره مېلمــــــه کېــــــږه مــــــه
بــــل کــــه درلــــه راشي ځــــان خــــبر کــــړه تــــرې پټېــــږه مــــه
کلــــه چــــې مېلمــــه ناســــت وي تــــه قهــــر غصــــه مــــه کــــوه
دا خــــــبره واوره د مېلمــــــه مخکــــــې قــــــاربږه مــــــه
مــــه کــــوه اظهــــار د مېلمــــه مخکــــې د تنگســــیا خپلــــې
کــــور تــــه چــــې داخــــل شــــې زر راځــــه ډېــــر ایســــاربږه مــــه
چــــا لــــه چــــې ورځــــې ناوختــــه مــــه ځــــه تنگــــول دي دا
وازمیــــه خپــــل دوســــت مگــــر پــــه دوســــت ســــتومانه کېــــږه مــــه
تېنــــگ شــــه پــــه دوســــتۍ کــــې دا زمــــا خــــبره اومنــــه
یــــو شــــانې رفتــــار کــــړه هــــلالي گــــورې بــــدلېږه مــــهٔ[٦٧]

لـه مېلمـه نـه پټېـدل، د مېلمـه پـه مخکـې قارېـدل، د مېلمـه پـه موجـودګۍ کـې پـه کـور کـې ډېـر وخـت تېـرول، د مېلمـه مخکـې د خپلـې تنګسـیا ذکـر کـول، د چا پـه کـور کـې ناوختـه مېلمه کېدل دا صفتونه ښه صفتونه نه دي او د پښتو د مېلمستیا د اصولو خلاف دي.

## جرګه

جرګه د پښتنو یو زوړ روایت دی او د دې ذکر د هر دور په ادب کې په څه نه څه ډول موندلی شي. په جرګه باندې خلک روغې کوي او د نورو ډېرو مسئلو حل په جرګه راوباسي،لائق زاده لائق د "جرګه" د سر خط لاندې داسې لیکي:

د رقیـــــــب څـــــــه مجـــــــال او څـــــــه همـــــــت دی
د زړګـــــــي سره چـــــــې جـــــــدا بـــــــه مـــــــو کـــــــړي
راځـــــــه چـــــــې دواړه سره روغـــــــه اوکـــــــړو
زمـــــونږه څـــــوک دي چـــــې پخـــــلا بـــــه مـــــو کـــــړي[٦٨]

جرګه د پښتنو یو قسم ته پارلیمان دی، په دې کې د پښتنو پر ټولنیزو مسئلو بحث کېږي او د هغو حل لټول کېږي.

## د رواج پابندیانې

ځینې رواجونه او رسمونه داسې دي چې پر خلکو یې مختلفې پابندیانې لګولې دي، اګر چې په شخصي توګه خلک غواړي دا کارونه وکړي، خو رواج او ټولنه اجازت نه ورکوي، اګر چې داسې ډېر رواجونه د ترقۍ په لار کې خنډ هم دي، خو یو دم وتل ترې ډېر ګران دي، لکه دیدار یوسفزی چې وایي:

یـــــو مـــــې رواج د خپلـــــې خـــــاورې د دې لارې خنـــــډ وه
بـــــل بـــــې ســـــمته وه مـــــزل، ګنـــــي منـــــزل مـــــې لنـــــډ وه[٦٩]

او یا لکه بل شاعر چې وایي:

راځـــــه چـــــې دواړه نـــــن د دې دنیـــــا پـــــه لاره لاړ شـــــو
رواج راسره ولـــــــې د دنیـــــــا کـــــــولی نـــــــه شـــــــي[٧٠]

ډېر خلک خو د دې رواجونو په شور زوږ کې په ژوند د سره پوه نه شي او همېشه د ذهني دباو ښکار وي،لکه یو شاعر چې وایي:

نــــه پــــه رواج نــــه پــــه تهــــذیب د ســــماج پوهــــه شــــومه
بــــــس یــــــوه چغــــــه یــــــم ټپــــــه نیمگــــــړې
نــــه د خپــــل ځــــان نــــه د اولــــس پــــه رواج پوهــــه شــــومه
بــــــس یــــــوه چغــــــه یــــــم ټپــــــه نیمگــــــړې[۷۱]

ځینې خلک په مینه محبت کې دومره لېوني شي چې له رواج نه ووځي، اگر که دغه خلک خپل ضمیر په هر څه مطمن کوي، خو ټولنه دوی نه مني، لکه شاعر چې وایي چې مینه له رواج نه ډېره لوړه ده:

چــــــې زړه مئــــــېن شي رواجونــــــه څــــــه کــــــړي
خــــــالي گوگــــــل شي نــــــو غمونــــــه څــــــه کــــــړي[۷۲]

رواج ډېــر زورور ټــولنیز دبــاو دی. د رواج مخــې تــه خلــک کلــه کلــه مــذهبي خــبرې هــم پرېــږدي، هــر وخــت خلــک د رواج پابنــد وي، ځکــه خــو متــل دی چــې لــه کــلي ووځــه خــو لــه نرخــه مــه ووځــه. کــوم خلــک چــې د یــوې خــاص علاقــې رواج نــه شي کولی، نو بیا کوښښ کوي چې له هغې علاقې نه ووځي.

## اشر

د سوات په کلیوالو علاقو کې د اشر غوبل او کلي کلوبغې اصطلاح ډېره عامه ده. په شریکه کار کولو ته اشر وایي، عموماً خلکو به نهل، لو، غوبل،وابنه رېبل، جوار ټکول،ختې گتې کول، کوټو ته خاورې خېژول او دغسې نور کارونه به یې په بدل او اشر له یو بل سره کول. د مالداره خلکو اشرې به د هغوی کنډریانو کولې چې هغوی به بې د بدل نه دا کارونه د بیگار په توگه کول. د ټرېکټرو او تهرېشرو د راتگ او د زمکو له مسلسل تقسیم سره اوس اشرې ډېرې کمې شوي دي.[۷۳]

## د سوات فنکاران

په سوات کې د هر فن فنکاران موجود دي، د موسیقۍ په مېدان کې هم د دې ځای یو خپل مقام دی. په سوات کې خو ډېر فنکاران او فنکارانې دي، خو د ډېرو کمو فنکارانو په ژوند لیکل شوي دي. لائق زاده لائق د پښتونخوا په گڼ شمېر فنکارانو لیکل کړي دي، د سوات د فنکارانو په حقله هغه لیکي چې په دغو فنکارانو کې د سوات د منځني دور گلناز، شهناز، عقل مینه، معشوق سلطان، شکیله ناز او نورې ډېرې شاملې دي، خو مشهورې پکې گلزار بېگم او مېرمن نگار سلطان دي.

## گلزار بېگم

په وړومبي دور کې چې کومه سندر غاړې ډېره مشهوره وه هغه گلزار بېگم وه، د هغې دا سندره ډېره مشهوره وه "اور په سالو واچوه". په نورو مشهورو سندرو کې یې "زما جانانه ظلمونه کوه"، "رېباره ورشه یار ته وایه" او" سترگې تورومه همزولو" شاملې دي. د گلزار بېگم د خاوند نوم اول خان و، چې کله گلزار بېگم په لر و بر کې مشهوره شوه نو بیا پېښور ته لاړه. پېښور ته تگ د هغې لپاره ښه ثابت نه شه ځکه چې په یو مجلس کې چې کله ډزې شوې نو د گلزار بېگم پکې سترگه اولگېده او په ټکي ړنده شوه. گلزار بېگم په ډبگرۍ کې اوسېده، هغې د ریډیو پاکستان د وړومبي دور په پروگرامونو کې هم برخه اخستې وه، خو د نورو سندر غاړو په شان د هغې زمزمې ژوندۍ پاتې نه شوې او د پیدائش او د مرگ نېټې یې هم معلومې نه دي.[٧٤]

## مېرمن نگار سلطان

د مېرمن نگار سلطان په ژوند او فن ښاغلي لائق زاده لائق څېړنه کړې ده. د هغه د څېړنې تر مخه مېرمن نگار سلطان د سوات په بېدره نومې کلي کې په ۱۹۳۷ کال کې پیدا شوې وه. د هغې د پلار نوم شموزی و. د نگار سلطان دوه ترونه وو، د یو نوم محمد جان و او د بل احمد جان. دوی نگار سلطان له ځان سره مردان ته راوسته، په مردان کې له مخکې نه د هغې تروریانې میشته وې او سندرې به یې ویلې. په دغو ورځو کې د مردان د موسیقۍ دنیا ښه اباده وه، د صبرالنّساء، مهرالنّساء او چشتي چمن جان نه پس دلته د باچا زرین جان، کشور سلطان او قمرو جان د فن هر خوا ته شور و. د نگار سلطان پلار د موسیقۍ له دنیا سره هېڅ علاقه نه لرله او چې کله خبر شو چې نگار سلطان د فن دنیا ته داخله شوې ده نو ډېر خفه شو، خو هېڅ یې نه شو کولای ځکه چې د نگار سلطان د اواز زمزمې او د گنگروگانو شرنگا هر چا اورېدلې وه. د دې خفگان له لاسه هغه کلی پرېښود او په داسې لاره لاړ چې لا بیا یې د مړ او ژوندي هیڅ پته ونه لگېده، چې کله محمد جان او احمد جان پوه شول چې اوس د مېرمن نگار سلطان د مینه والو شمېر زیات شو، نو هغوی دا کراچۍ ته بوتله. د نگار سلطان په سازیانو کې یو د صوابۍ د وړوکي لاهور اوسېدونکی خاتم استاذ هم و. خاتم استاذ د نوموړو سندرغاړو شبنم، نورجهان او ناهید اختر پلار او د ماسټر علي حیدر سخر دی. د ساز او اواز دغه اهنگونو د خاتم استاذ او د نگار سلطان زړونه هم یو بل ته نزدې کړل او بیا هغه د خاتم استاذ د ژوند ملگرې شوه. بیا هغوی له کراچۍ نه د بونېر

علاقې طوطالۍ ته راغلل او دلته د هغې وړومبی ماشوم ظاهر شاه پيدا شو، ظاهر شاه د سندر غاړي طارق حسين شاه پلار دی. څه وخت وروسته بيا له خاتم استاذ نه د هغې جدايي وشوه او ترونو يې بيا حسن باز ته واده کړه او هغې د ريډيو پاکستان په پروګرامونو کې هم برخه اخستل شروع کړل. له ربډيو پاکستان پېښور نه علاوه د لاهور سنټرل پروډکشن يونټ کې هم هغې د خپل اواز زمزمې خوندي کړي دي. د ۲۰۰۹ په اپرېل کې دې لويې فنکارې د همېشه لپاره سترګې پټې کړې. د هغې مشهورې سندرې دا دي:

چې ښار ته ځې زما په تا باندې قلنګ دی
ماله د جالۍ لوپټه د ښاره راوړه
او هيڅ مناسب درسره نه دي
زه دې د دره بې ګنا شړلې يمه[۷۵]

فنکار يا فنکاره عموماً په پښتنه ټولنه کې د ډم او ډمه يا لولۍ په نومونو يادېږي او خلک ورته په سپک نظر ګوري. غني خان ويلي چې د پښتنو فن خوښ وي خو فنکار بې بدي شي. دغه وجه ده چې زمونږ په ټولنه کې د ډم او د ډمې عزت نه کېږي، خو ځينو شاعرانو او ليکوالانو د دوی د ژوند ښه اړخونه او د دوی مجبوريانې په ګوته کړي او د معاشرې د عامو خلکو او د دوی د ژوند موازنه يې کړې ده،لکه دا نظم "لولۍ" په دې حواله د کتلو وړ دی:

ډکـــــه د خنـــــدا زمـــــا کـــــوګۍ ده کـــــه کتلـــــی شـــــې
زه پــــه شـــــړنګا شـــــړنګ کـــــې د ګنګـــــرو چـــــې ګډېـــــده کـــــوم
زړه دې راتـــــه ټينـــــګ کـــــړه کـــــه درينجقـــــې مـــــې زغملـــــی شـــــې
زه پـــــه کـــــړو وروځـــــو نـــــرو شـــــونډو موســـــېده کـــــوم
زه بـــــه يـــــې لکـــــه شـــــمع د خپـــــل ځـــــان پـــــه ســـــوځېدو کړمـــــه
راشـــــئ هـــــر ســـــړی چـــــې دا محفـــــل پـــــه ګډېـــــدو کړمـــــه
دا زمـــــا ګـــــډا او کـــــه خنـــــدا ده خـــــو کنجـــــره ده
مـــــا درلـــــه راوړې د مســـــتۍ يـــــوه ســـــندره ده
زه کـــــه بـــــې وفـــــا يمـــــه نـــــو ستاســـــو وفـــــا کـــــوم ده
نـــــه راځـــــي پـــــه لاس نـــــه شـــــم ورتلـــــی د بـــــل پـــــه لاس کـــــې
زه کـــــه بـــــې حيـــــا يمـــــه دنيـــــا کـــــې حيـــــا کـــــوم ده

نــــه ورکـــــوم د مینـــــې امانـــــت د غـــــم پــــه لاس کـــــې
مـــا غـــوه لـــئ نـــو ځکـــه بـــه دا ټـــول پـــه غولېـــدو کړمـــه
راشـــئ هـــر ســـړی چـــې دا محفـــل پـــه ګډېـــدو کړمـــه
ځـــان مـــې بـــازیګره کـــړه د نیـــل چـــې بـــازیګره ده
مـــــا درلـــــه راوړې د مســـــتۍ یـــــوه ســـــندره ده[٧٦]

داسې نورو شاعرانو او لیکوالانو د ډمې په مجبوریانو او د هغې د ژوند په کنډو کړمو او نورو ستونزو رڼا اچولې ده. د شاعرانو او لیکوالانو د ډمو په باره کې دا قسمه خیالات په تېر باب کې هم نقل شوي دي.

## د مغربي دنیا او د ۱۱/۹ اثرات

د دوه زره وړومبي کال د ستمبر په یوولسم چې کله پر امریکا حملې وشوې، نو دې حادثې د دنیا په سیاست، معیشت غرض په هره شعبه اثر وکړ. د دې اثرات په پاکستان او بیا په پښتنو په خصوصي توګه پرېوتل. همدغه وجه ده چې د سوات په پښتو ادب کې د دې واقعې او له دې نه وروسته د پیداکېدونکو حالاتو ذکر موندلی شي. له دې نه علاوه د سوات په پښتو ادب کې د مغربي ملکونو ذکر هم موندلی شي. پر امریکا د یوولسم ستمبر د حملو په باره کې دیدار یوسفزی داسې لیکي:

چـــــــا وې عظیمـــــــــه ســـــــانحه پېښـــــــه شـــــــوه
چـــــا وې چـــــــې ســـــــتنې د تهـــــــذیب پرېـــــــوتې
چـــــا وې د ظلـــــــم انتهـــــــا اوشـــــــوه نـــــــن
چـــــا وې قیامــــــت راغـــــــی دنیـــــــا تبـــــاه شـــــوه
چـــــا وې انســــــان شـــــــه خـــــــونړی ځنـــــاور
چـــــا وې چـــــې مـــــړه شـــــو بـــــې ګنـــــاه انســـــانان
چـــــــا وې د دې ظلـــــــــم حســـــــــاب دې اوشي
مـــــا وې د هـــــــر ظلـــــــم حســـــــاب دې اوشي[٧٧]

رحیم شاه رحیم په خپل یو نظم "لویو طاقتونو ته" کې داسې لیکي:

تـــل مـــو دا کوشـــش دی چـــې یـــو قـــام پـــه بـــل وهـــل غـــواړئ
ځنګـــه پـــه دنیـــا کـــې تاســـو امـــن راوســـتل غـــواړئ

اى پــــه خولــــه د امـــن دعـــوه گـــيرو تاســـو څـــه كـــوئ
دا مـــــو پاليسيـــــ ده كشـــالې ښــــه زيـــاتول غـــواړئ
يـــو خـــوا خـــو اواز د انســـاني همـــدردۍ ډېـــر كـــوئ
بـــل خـــوا دوه قامونـــه پـــه يـــو بـــل كـــې جنگـــول غـــواړئ[٧٨]

نذير شموزي د امريكې د هغه وخت وزير خارجه "كسنجر" په باره كې داسې نظم ليكل دى:

د هـــــر چـــــا د غـــــم غمخـــــوار دى كســــــنجر
د هـــــر چـــــا بـــــوج تـــــه تيـــــار دى كســــــنجر
پـــــه يـــــو ځـــــاى كلـــــه حصـــــار دى كســــــنجر
بـــــس د خپـــــل وطـــــن روئبـــــار دى كســــــنجر
د پـــيري پـــه شـــانې گرځـــي گېـــر چـــاپېره
پـــه يـــو دم كـــې كـــړي دنيـــا لـــه قـــدم تېـــره
كســـــنجر دى هـــــم ډاكټـــــر دى هـــــم دوا
واه طاقتـــــه ســـــتا پـــــه لاس كـــــې د شـــــفا
چـــې يـــې څـــوک پـــه نصـــيحت نـــه كـــړي پـــرواه
پـــــه مـــــوذي مـــــرض هغـــــوى شي مبـــــتلا
د نســـــخو ليكلـــــو كـــــار كـــــې ډېـــــر هوښـــــيار دى
كـــــه څـــــه بـــــل څـــــه تـــــرې پيـــــدا شي د رب كـــــار دى
د كمـــــــزورو حمايـــــــت كـــــــړي كســـــــنجر
زورورو سره پـــــــت كـــــــړي كســـــــنجر
مومنـــــانو نـــــه نفـــــرت كـــــړي كســـــنجر
او د عربـــــو قيـــــادت كـــــړي كســـــنجر[٧٩]

د هټلر ستاينه نذير شموزى داسې كوي:

يـــــو هټلـــــر وه نـــــر زلمـــــى وه جرمنـــــى وه
دښـــــمنان يـــــې لاتـــــر اوســـــه كـــــړي غوغـــــا
كـــــه يهـــــود كـــــه نصـــــارٰى كـــــه مشرـــــكان وو
ناســـــت پـــــه څـــــټ وه د همـــــه واړو واه وا

چـــــې گرېــــوان د ســــــتمگر پـــــاره پـــــاره کـــــړي
زار لــــــه هغــــــه شــــــاه زلمــــــو شــــعر زمـــــا[80]

امیر فیاض د "امریکه او مسلمانان مشران" تر سر خط لاندې داسې لیکي:

ځنگـــه امریکـــه ده چـــې دا ځـــه جـــادو پـــه دې کـــې دی
زړه د هـــر رهـــبر چـــې گـــورې بـــس پـــه امریکـــې کـــې دی
دومـــره خـــو د خـــدای نـــه وېـــره نشـــته امریکـــې نـــه ده
هـــر یـــو شـــېخ وېریـــږي د یهـــود پـــه دبـــدبې کـــې دی[81]

سالار یوسفزی د اسامه بن لادن تعلق هم له امریکه سره ښائي او داسې یې یادوي:

زمـــــــا د کـــــــور د بربـــــــادۍ ذمـــــــه وار
"بـــــــن نیویـــــــارک" "بـــــــن لنـــــــدن" هـــــم دی
دا دي ښـــــــکاره د دیـــــــن ملـــــــت دښـــــــمنان
پـــــټ د اســـــلام جامـــــه کـــــې بـــــن لادن هـــــم دی[82]

## افغان جنگ او د سوات پښتو ادب

خلقـــــــــه بمبـــــــــار رابانـــــــــدې کیـــــــــږي
جانـــــان مـــــې ســـــترگو کـــــې بمونـــــه گرځوینـــــه[83]

ټپه د ولسي ادب یو اهم صنف دی، په ټپه کې د ټولنې او چاپېریال عکس ښکاره په نظر راځي. په ټولنه کې چې څه کېږي هغه مونږ ته په ټپه کې ښکاري. له کله نه چې پښتنه خاوره د جنگونو او بمونو په ضد کې راغلې ده، نو په ولسي او تحریري ادب کې یې هم دغه جنگي اثرات ښکاره دي. د سوات په پښتو ادب کې د افغان جنگ ذکر په مختلفو حوالو مېلاویږي. د امریکې له حملې نه وروسته د افغانستان تصویر داسې بیان شوی دی:

دی هـــــــر یـــــــو کـــــــور یـــــــې کنـــــــډر
هـــــــره حجـــــــره یـــــــې ورانـــــــه
هـــــــر یـــــــو بـــــــازار یـــــــې ویـــــــران
هـــــــره کوځـــــــه یـــــــې ورانـــــــه
هـــــــر یـــــــو تصـــــــویر یـــــــې څـــــــیرې
هـــــــره څهـــــــره یـــــــې ورانـــــــه

چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی
چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی
دي وار خطـــــــــــــــــــــــــا وارخطـــــــــــــــا
او در پـــــــــــــــه در یـــــــــــــــــــې خلــــــــــــــق
دي یرېـــــــــــــــــــــــــدلي غونـــــــــــــــــــــــدې
اوتـــــــــــــــر اوتــــــــــر یـــــــــــــــې خلــــــــــق
گرځـــــــــــــــي ښـــــــــــپې ابلـــــــــــــه، سر تـــــــــــور
کــــــــــــــړه پـــــــــــه سر یـــــــــــــــې خلــــــــــق
چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی
چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی
چـــــــــــــې بربــــــــــــادي یـــــــــــــې دنیـــــــــــا
پـــــــــــــه ځــــــــــان یـــــــــــو پــــــــور اېښــــــــــی دی
چـــــــــــــې هـــــــــــر الـــــــــــــزام پــــــــــرې نـــــــــړۍ
پـــــــــــــه وچ کلــــــــــــــک زور اېښـــــــــــــــی دی
چـــــــــــــې پـــــــــــــرې "شـــــــــــــــداد" د "ارم"
د ورانـــــــــــــــۍ تـــــــــــــــور اېښـــــــــــــــی دی
د ماشـــــــــــــــــــومانو تنـــــــــــــــــــــــــــــې
پـــــــــــــه گولـــــــــــو غـــــــــــار پرتــــــــــــې دي
د شـــــــــــــــاه زلمـــــــــــــــو ککـــــــــــــــرۍ
پـــــــــــــه هــــــــــــــره لار پرتــــــــــــــې دي
د پېغلوکـــــــــــــــــو لـــــــــــــــــــــوپټې
بیخـــــــــــــي تـــــــــــــار تــــــــــــار پرتــــــــــــې دي
چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی
چـــــــــــــېدا د چـــــــــــا وطـــــــــــــن دی[٨٤]

یو شاعر په دې ارمان دی چې د پښتنو دا وران کور به کله جوړېږي او هغه "د وران کابل په نوم" داسې لیکي:

کلـــه بـــه بیرتـــه بیـــا ودان شـــې د افغـــان کـــوره
د پښـــــتو وران کـــــوره اللــــه دې مـــــل شـــــه
ســـتا چـــې دې وران تصـــویر تـــه گـــورم نـــو ژړا راشي
پـــه ســـوو غرونـــو بـــه دې بیـــا چرتـــه گیـــا راشي
پـــه ژړیـــدلو خلـــو بـــه بیـــا کلـــه خنـــدا راشي
ولـــې پـــه توپـــو تـــل نړیـــږې د افغـــان کـــوره
د پښـــــتو وران کـــــوره اللــــه دې مـــــل شـــــه
بچـــــي دې لاړه در پـــــه در خـــــواره شـــــو
څـــوک پښـــې ابلـــه پښـــې او سرتـــور سر خـــواره شـــو
څـــوک پـــه ســـحر څـــوک مـــازیگر خـــواره شـــو
د اســـتوگنې کلـــه بـــه جوگـــه شـــې د افغـــان کـــوره
د پښـــــتو وران کـــــوره اللــــه دې مـــــل شـــــه[۸۵]

محمد نذیر شموزی په یو ازاد نظم کې داسې لیکي:

کـــــــه روس کـــــــه هندوســـــــتان
غـــــــاوره پـــــــه افغـــــــان
ســـــزا بـــــه یـــــې پښـــــتون خـــــوري
غلطـــــــــــــي د پاکســـــــــتان
وســـــله لـــــــه کـــــــومې راغلـــــــه
لـــــــه چېرتـــــــه طالبـــــــان
عـــــــوام دي کـــــــه خـــــــواص
پـــــــه مـــــــونږ شـــــــو ظالمـــــــان
زمـــــا زمکـــــه تبـــــاه شـــــوه
خنـــــــدا کـــــــوي اســـــــمان
بـــــس زه یـــــې پـــــه ژړا کـــــړم
گـــــدا کـــــړي غلـــــیمان
زمـــــا مینـــــه خـــــر ځیـــــږي
پېســـــې شـــــماري جانـــــان

خپـــــــــل خلـــــــــق وژنـــــــــو يـــــــــاره
مـــــــــونږ ډېـــــــــر يـــــــــو غيرتيـــــــــان[٨٦]

په افغانستان د امريکې د وحشيانه بمبارۍ په وخت کې ډاکټر ديدار يوسفزی د "جبر" تر سر خط لاندې داسې ليکي:

رانـــه تـــاو شـــوي دي وحشـــيان ســـړي خـــواره چـــاپېره
پـــه هوســـناکو پنجـــو نـــولي مـــو مازغـــه چـــاپېره
پـــه شســـت يـــې نـــه دي د ځوانـــانو ککـــرۍ يـــواځې
وژني پـــه غـــولي کـــې زمـــونږه لـــوی واړه چـــاپېره
چـــې دې دپاســـه ورلـــه هـــم پـــه لاس کـــې لاس ورکـــوو
ورلـــه د خپلـــې بـــې حســـۍ ثـــومره احســـاس ورکـــوو
زمـــونږه پلونـــه پړاوونـــه يـــو پـــه ســـل ورانـــوي
هـــم مـــو اقـــدار هـــم مـــو اثـــار بـــس پـــه چـــل چـــل ورانـــوي
يـــو خـــوا شـــهيد يـــې کـــړه جـــمات د بـــابري د وختـــو
بـــل خـــوا زمـــونږ قبلـــه اول هـــم پـــه غوبـــل ورانـــوي
د دوی د لاســـــه هـــــر دېـــــوال دی نړېـــــدلی زمـــــونږ
د دوی د لاســـــه هـــــر ارمـــــان دی روړېـــــدلی زمـــــونږ
کلـــــه بغـــــداد د زور او ظلـــــم پـــــه يرغـــــل ورانـــــوي
کلـــــه خرطـــــوم ښـــــاريه هســـــې پـــــه اټکـــــل ورانـــــوي
کلـــــه يـــــې نخښـــــه تريپـــــولي کلـــــه يـــــې چيچنيـــــا وي
کلـــــه زمـــــونږ د بابـــــا کـــــور زمـــــونږ کابـــــل ورانـــــوي
خـــــو د نـــــړۍ پـــــه بټـــــو ســـــترگو لا پـــــردې پرتـــــې دي
پـــه خولـــه يـــې مهـــر دی پـــه فکـــر يـــې پهـــرې پرتـــې دي[٨٧]

رحيم شاه رحيم د "افغان کشاله" تر سر خط لاندې داسې ليکي:

مـــونږ کـــه يـــو خـــوا گـــورو پړانـــگ دی او کـــه بـــل خـــوا گـــورو ټانـــگ دی
پـــه دې ميـــنځ کـــې نـــور څـــه نشـــته پـــروت زمـــونږ پـــه اوگـــو ډانـــگ دی
چـــا پـــه غـــوږ کـــې راتـــه وېلـــې بـــې اودســـه مـــلا بانـــگ دی
چـــې انجـــام رانـــه نـــن پـــټ دی د ويتنـــام کـــه د هانـــگ کانـــگ دی

پـــه دې هســـــې نـــــازک وخـــت کـــــې د شـــاهین نظـــر پیـــدا کـــړئ
پـــــه ایـــــران اورونـــــه بــــل شـــــو فلســـطین پـــــه وینـــــو ســـــور دی
جرمنـــــــي دوه ټـــــوټې گـــــوره بنگلـــــه دېـــــش د زړه ناســــــور دی
د لبنـــــــان خـــــو راتـــــه وایـــــه اخـــــر شـــــوی څـــــه قصـــــور دی
پـــــه کشـــــمیر د کشـــــمیریانو ژونـــــد اخـــــر ولـــــې تنـــــور دی
لــــــړ پــــــرواز د فکـــــر اوکـــــړئ د عقـــــاب وزر پیـــــدا کـــــړئ
امریکـــــه روس تربـــــوران دي دوی پـــــه خپلـــــو کـــــې ښـــــه وران دي
پښـــــتانه د دوی پـــــه لاس کـــــې اخـــــر ولـــــې مـــــړزان دي
تربـــوري د دوی خپلـــه پـــه خپـــل ســـود کـــه پـــه خپـــل زیـــان دي
خـــــو پـــــه غـــــولي کـــــې زمـــــونږه ولـــــې مشـــــت او گرېبـــــان دي[۸۸]

رحیم شاه رحیم په یوه ملي نغمه کې افغان وطن داسې یادوي:

گـــــران وطـــــن افغـــــان وطـــــن زمـــــونږ د زړه درمـــــان وطـــــن
تـــــل دې وي قربـــــان پـــــه تـــــا زمـــــونږه دل و جـــــان وطـــــن[۸۹]

بل ځای کې رحیم شاه رحیم د افغان ولس په نوم داسې پیغام ورکوي:

څـــوارلس کالـــه جنـــگ مـــو اوکـــړه سر شـــیندونکو افغانـــانو
نـــړۍ ستاســـو زور تســـلیم کـــړه مـــاتی اوخـــوړ غلیمانـــو
تاســـو نـــوی تـــاریخ ســـاز کـــړه کشـــیده پـــه خپلـــو وینـــو
یادگارونـــه مـــو قـــائم کـــړل پـــه جهـــان کـــې بـــاتورانو
ســـیاسي مصـــلحت دا دی چـــې اوس خپـــل تعمـــیر پکـــار دی
قـــام بېشـــکه زبـــون حـــال دی د دې قـــام تـــدبیر پکـــار دی
خپـــل ذاتي اخـــتلاف پرېـــږدئ پـــه قـــامي جذبـــه کـــې ورک شـــئ
مســـــتقبل حېـــران ولاړ دی ورلـــه بـــل تقـــدیر پکـــار دی[۹۰]

حکیم الله بریالی د افغان جنگ په باره کې داسې وایي:

دا خـــــــوار وگـــــــړي پـــــــه کـــــــوم تـــــــور وژني
افغـــــان زلمـــــي چـــــې کـــــور پـــــه کـــــور وژني
ملگـــــرو څـــــه سر شـــــته د دې خـــــبرې
ورور پـــــــه مـــــــا وژني مـــــــا پـــــــه ورور وژني[۹۱]

او په بل ځای کې داسې وايي:

ککـــــرۍ بایلمــــــه مــــــیراث د خپــــــل تـــــاریخ ټینګــــــوم
خــــــو د ډګـــــر تېښــــــته یادېږمــــــه افغـــــان نــــــه کړمـــــه
تــــــر د هغـــــــې دې وي ارام د ســـــوور غوښـــــه پــــــه مـــــا
چـــــې د غلـــــیم پــــــه وینـــــو ســـــور افغانســـــتان نــــــه کړمـــــه [۹۲]

قیس په یوه هایکو کې افغان جنګ طرف ته داسې اشاره کړې ده:

چـــــې کلــــــه روس راغــــــی پـــــــه روس مــــــې خــــرڅ کــــــړه
اوس پـــــــــه ډالـــــــرو مـــــــــې بــــــــدل کــــــــړه افغــــــــان
زه قـــــام پرســـــــت یــــــم کـــــــه قـــــام خرڅــــــه یمــــــه[۹۳]

د سوات د شاعرانو او لیکوالانو له دې احساساتو نه پته لګي چې د افغانستان جنګ د سوات پر پښتو ادب هم خپل اثرات مرتب کړي دي.

## د سوات د امن په بربادۍ ویر وینا

اګر که د پښتو په وخت کې په سوات کې د امن و امان په حواله څه لږ ډېر اړی ګړی و، خو بیا له ریاستي دور نه د سوات د امن و امان حالات ډېر ښه شوي وو او تر ۲۰۰٦ پورې دا حالات ښه برابر وو ، ځکه خو په ۲۰۰٦ کې رحیم شاه رحیم په "سوات نامه جواب نامه" کې داسې لیکي:

تـــــر ښایســـــــت یـــــــې ده قیصــــــــه د امــــــن زیاتــــــــه
چـــــا ویـــــلي چــــــې ســـــوات ډک دی لـــــــه فســــــاته[۹٤]

او بل ځای کې داسې وايي:

ســـــوات د امـــــــن او راحـــــــت یــــــو ښــــــه مثــــــال دی
پــــــه ښایســــــت د پښــــــتونخوا کــــــې د مـــــخ خــــــال دی[۹۵]

کله چې له ۲۰۰۷ نه د سوات امن تاله ترغه کړی شو او له جنت وطن سوات نه د بارودو لمبې پورته شوې، نو شاعرانو او لیکوالانو په دې حالاتو هم ویر وینا کړې ده. په دې اړه صابر داسې وايي:

چینــې چنــار تــه پــه ژړا کــې ویــل پــه ســوات کــې ولــې فســادونه اوشــو
ستا پــه ګولــو تنــه ســورۍ ســورۍ ده زمــا پــه زړه کــې هــم غارونــه اوشــو

چنار ویل دا د پردو پـه لمسـه خپلـو د سـوات ښائسـت تـه اور پـورې کـړه
د سوات سـاده خلـق حېـران ولاړ وو چـې د ظـالم ځـامنو نـور پـورې کـړه
خانه جنګي یې مسلط کړه په دوی هم یې کړه مړه هم یې پرې تور پورې
کړه ـ د سوات په ښکلې او پر امن خاوره چې نه کېده هغه کارونه اوشو[96]

او بل ځای کې داسې وایي:

دا چـــا میـــدان جنـــګ جـــوړ کـــړه زمـــونږ د ښـــکلي ســـواته
زه چـــا تـــه قصـــور اوکړمـــه فـــوجي تـــه کـــه مـــلا تـــه
دا چـــا د امـــن ډکـــه ســـیمه داســـې جنـــګ زده کـــړه
د ســـوات پاکـــه فضـــا یـــې پـــه رنجکـــو الـــوده کـــړه
دا چـــا د ترقـــۍ پایـــه زمـــونږه بوتلـــه شـــاته[97]

په سوات چې د بارودو کوم اور بل شوی و، د هغې په باره کې یو شاعر په دې هایکو کې داسې وایي:

څـــــو بـــــه دې ژاړو خـــــوار نصـــــیبه زمـــــونږ
د چـــــا د تېلـــــو د چینـــــو د لاســـــه
زمـــــونږ د ســـــوات پـــــه واورو اور اولګېـــــد[98]

د سوات پرهرونه یو شاعر داسې یادوي:

ســـواته دا ســـتا غـــم زه زغملـــی نـــه شـــم
پرهـــر پرهـــر دې نـــور لیـــدلی نـــه شـــم
ســـتا د ښایســـت ســـېنې چـــې څـــوک پرېکـــوي
پـــه دغـــه صـــف کـــې ودرېـــدلی نـــه شـــم
ســـتا د جبـــین نـــه چـــې خالونـــه ورانـــوئ
لمبـــه لمبـــه شـــم صـــبرېدلی نـــه شـــم[99]

او بل ځای کې د سوات په باره کې داسې ټپې وایي:

ازار خـــــو نـــــه دی نظـــــر ښـــــکاري
ســـواته پـــه ســـپین جبـــین دې جـــوړ شـــولو جنګونـــه
زړګـــــی مـــــې داســـــې اوس نـــــری شـــــه
ســـــواته چـــــې تـــــا زه یـــــادوم ژړا راځینـــــه

پــــــه تــــــا مئــــــېن پــــــه تــــــا بــــــه ژاړم
ســــواته کــــه ســــتا پــــه سر مــــې دار تــــه خېژوينــــه[100]

شهر يار ظاهر "د سوات ناوې تر سرخط لاندې داسې ليکي:

دا چــــې د ښايســــت پــــه گلســــتان کــــې بــــې مثالــــه وه
دا چــــې پــــه خېــــوه کــــې د ســــيالانو سره ســــياله وه
دا چــــې د گلونــــو پــــه جــــامو کــــې بــــه ســــنباله وه
يــــا لکــــه پــــري د پرســــتان بــــدري جمالــــه وه
نــــن هغــــه د ســــوات نــــاوې خــــزان ميراتــــه کــــړې ده
مــــلا ورلــــه حــــالاتو پــــه ځــــوانۍ کــــې ماتــــه کــــړې ده
دا چــــې لکــــه ثانگــــه د ســــپرلي پــــه رنــــگ رنگينــــه وه
گــــل غــــاړه غنــــدل د خوشــــبو ډکــــه گــــل ورينــــه وه
جــــوړه د فطــــرت د فــــن پــــه گوتــــو ښــــه حســــينه وه
وړ وه د ســــتاينې زار شــــم ټولــــه مينــــه مينــــه وه
کيــــږي نــــن زمــــا د هغــــې نــــاوې پــــه وربــــل ډزې
دا لکــــه دشــــمن کــــوي زمــــا پــــه دې گوگــــل ډزې
نښــــتې وې د نــــاوې پــــه اوربــــل مــــې د لښــــکرو جنــــگ
غېــــږ تــــه يــــې د امــــن، خدايــــه راوړو جنــــگ بــــبرو جنــــگ
تــــود دی د بــــارودو او د توپــــو د مــــاټرو جنــــگ
نــــه ختميــــږي اوس دا د ځنگــــل د ځنــــاورو جنــــگ
نــــن مــــې حيــــا داره د پښــــتو نــــاوې سر تــــوره ده
وختــــه ســــتا د لاســــه پــــه دې شــــته کــــور کــــې بــــې کــــوره ده[101]

يو بل شاعر په سوات د بل شوي اور ذکر داسې کوي:

درتــــه لا جــــوړ نــــه يــــم دلــــبره او خنــــدلی نــــه شــــم
د ښــــکلا گــــانو پــــه ســــوات اور بليــــږي
زه دې لا غــــاړې لــــه امېــــل د گــــل راوړلــــی نــــه شــــم
د ښــــکلا گــــانو پــــه ســــوات اور بليــــږي
د چينــــو شــــور د ابشــــارونو نغمــــې بنــــدې شــــولې

د محبـــــــــت ســـــــــندرې ځنــــــــګ ووایــــــــم
د هـــــر ارمـــــان د بهـــــارونو نغمــــې بنـــــدې شـــــولې
زه د ښــــــــکلا غزلـــــــې ځنــــــــګ ووایــــــــم
جانانــــه خپـــل وطـــن جانـــان مـــې هېرولـــی نــــه شـــم
د ښــــــکلا ګــــــانو پــــــه ســــــوات اور بلیـــــــږي[۱۰۲]

محمد الیاس ثاقب "د سوات حالات" تر سرخط لاندې داسې لیکي:

خنـــدا مـــو ورکـــه ده د هـــر کـــور نـــه ویرونـــه خیـــږي
قـــــلارې نشـــــته د توپونـــــو اوازونـــــه خیـــــږي
خـــوب بـــه مـــو ځنـــګ اوشي چـــې دا رنګـــې ډزونـــه خیـــږي
د یـــو یـــو ډز سره خـــالص د خلقـــو زړونـــه خیـــږي
څـــوک د ملبـــو نـــه د لاشـــونو پـــه ویســـتو ســـتړي شـــو
څـــوک مقـــبرو کـــې پـــه قبرونـــو کنســـتو ســـتړي شـــو
څـــوک جنـــازو تـــه د نیتونـــو پـــه لوســـتو ســـتړي شـــو
خـــو هغـــه کلـــه د مـــارتړو پـــه ویشـــتو ســـتړي شـــو
یـــو وئ حیـــران یـــم چـــې دا ولـــې پـــه رکشـــه کـــې مـــړ دی
بـــل وئ کرفیـــو نـــه خـــبر نـــه وه پـــه دهوکـــه کـــې مـــړ دی
څـوک وئ هـیڅ پتـه راتـه نشـته چـې پـه څـه کـې مـړ دی
څـــوک وئ فلانـــی دې پېژنـــده پـــه دهماکـــه کـــې مـــړ دی[۱۰۳]

محمد ګل منصور د سوات د جنګ منظر نامه داسې بیانوي:

چـــې مـــې پـــه زمکـــه لـــوپټې د خپلـــو خویانـــدو لیـــدې
زمانــــــــه هــــــــر څــــــــه هېــــــــر شــــــــو
چـــې ماشـــومان بـــه مـــې د وېـــرې نـــه نختـــل پښـــو پـــورې
زمانــــــــه هــــــــر څــــــــه هېــــــــر شــــــــو
چـــې مـــې مـــزار پـــه مقـــبره کـــې د بابـــا ورانېـــده
زمانــــــــه هــــــــر څــــــــه هېــــــــر شــــــــو
چـــې مـــې د خـــاورې د شـــنو ونـــو نـــه لمبـــې ختلـــې
زمانــــــــه هــــــــر څــــــــه هېــــــــر شــــــــو

چې مشرانو مې نيولې وې شملې په ترخ کې
زمانه هر څه هېر شو
چې د انسان د عظمتونو قتل گاه گرمه وه
زمانه هر څه هېر شو
د لوی اختر قرباني هم په انسانانو کېده
زمانه هر څه هېر شو[۱۰۴]

او کله چې د سوات خلک له سوات نه وويستلی شول، نو دغه منظر يو شاعر داسې بيان کړی دی:

وختونو څه څه راته اونه ښودل
چې مې واړه وروڼه د کلي وتل
تمبوان يې واخستل د ځانه سره
هغوی له کلي چرته وتي نه وو
هغو په بله لهجه څه پوهېدل
هغوی خو ما نازک نيازبين ساتلي
هغوی خو تل مستۍ کې ژوند کړی وه
هغو خو تل يو نا جائزه ضد هم
په ما منلی وه، منلی مې وه
لکه په پاڼو کې گلان چې اوسي
داسې مې غېږه کې ساتلي مدام
نن هغو بل کلي کې شپې کولې
په نااشنا خلقو نا اشنا کلي کې
هغو په وېره وېره ژوند تېروه
هيڅوک يې نه وو د تپوس هلته کې
خير دی په دې هر څه خفه نه يمه
وخت به هم تېر شي دا هر څه به هم هېر شي
خو زه به دا خبره څنگ هېره وم
چې وړو وروڼو په تمبوانو کې مې

پــــه کــــوم یـــــو کـــــلي کــــې څـــــو شــــپې کـــــړي دي
هغـــــــه یـــــــو کلـــــــــی د خـــــــوړ دوســــــــت وه زمــــــا[۱۰۵]

تاریخ دا ښیي چې یو ځل د سوات خلک د اکبر باچا د فوځ له لاسه هم بې کوره شوي وو او ډېر یوسفزي له سوات نه پېښور او لاندې علاقو ته راغلي وو چې په دې کې اخوند دروېزه هم شامل و. په دې کې څه یوسفزي او نور خلک دولس کاله بعد سوات ته واپس لاړل او بعضې خلک په پېښور کې پاتې شول.[۱۰٦] رضا خان رضا د سوات د خرابو حالاتو په باره کې داسې وایي:

د وخـــــت خـــــدایانو ســــتا اولـــــس کـــــړه پـــــه وتـــــو مجبـــــوره
چـــــــــــې خپـــــــــــل کورونـــــــــــه پرېـــــــــــږدي
کـــــړه یــــــې پــــــه ډېــــــرو لـــــوږو تنــــــدو ژړېــــــدو مجبـــــوره
چـــــــــــې خپـــــــــــل کورونـــــــــــه پرېـــــــــــږدي
پـــــه څـــــو څـــــو رنگـــــه ســــتا ازمېښـــــت او امتحـــــان کېـــــده
ســـــــــــواته چـــــــــــا هـــــــــــیڅ اونـــــــــــه وې[۱۰۷]

د سوات په جنگي حالاتو کې د سوات د خلکو کډوال کېدل یوه لویه المیه وه، نو ځکه یې پر ادب باندې هم اثرات په نظر راځي، د سوات د کډوالو باره کې ډېرې ټپې هم خلکو ویلي دي، لکه د مثال په توگه دا ټپې:

د مالاکنـــــــــــــډ پـــــــــــه سر نعـــــــــــرې شـــــــــــوې
د ســــــــــــوات پـــــــــــه سرو گلونـــــــــــو اور اولگېدنـــــــــــه
پـــــــــــــــــه مالاکنـــــــــــــــــډ کــــــــــــــــډې رااوړي
د درگـــــــــــۍ خلـــــــــــق ورتـــــــــــه اوښـــــــــــکې تویوینـــــــــــه
د مالاکنـــــــــــــــــډ پـــــــــــــــــه دنگـــــــــــــــــو لارو
پښـــــــــتنې پېغلـــــــــې پیـــــــــدل ځـــــــــي ژړا کوینـــــــــه[۱۰۸]

د سوات د خلکو د بې وسۍ او د سوات پر خلکو چې کوم ظلمونه شوي، د هغوی یادونه په یو بل نظم کې داسې شوې ده:

پـــه مـــونږ څـــوک څـــه کـــوي زیـــاتي یـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه
گـــــوره! دا څـــــومره لېـــــوني یـــــو مـــــونږ تـــــه څـــــه پتـــــه وه
پــــــه مــــــونږ گــــــولۍ راورېــــــدې چــــــا مــــــو تپــــــوس نــــــه کــــــا وه

پـــه مـــونږ کـــوټې راغورځېـــدې چـــا مـــو تپـــوس نـــا کـــاوه
د هـــيچ چـــا خپـــل نـــه يـــو پـــردي يـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه
پـــه جنـــګ مئـــېن څـــوک وو او څـــوک بدنامېـــده ورپکـــې
ګنــــاه د چـــــا وه او دا څـــــوک نيـــــوی کېـــــده ورپکـــــې
قــــاتلان څـــــوک وو او دا څـــــوک قتـــــل کېـــــده ور پکـــــې
داســـې پـــه نخښـــه د ښـــکاري يـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه
اوس بــــه يـــــې څنګـــــه هېـــــروو زهـــــر څکـــــلي دي مـــــونږ
سرتـــــور سرونـــــه پښـــــتنې خويانـــــدې ليـــــدلي دي مـــــونږ
حـــــلال مالونـــــه د کلونـــــو چـــــې بـــــايللي دي مـــــونږ
څـــه انســـانان نـــه يـــو څـــاروي يـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه
زمـــــا واړه واړه بچـــــي يـــــې معـــــاف کـــــړي نـــــه دي
روغ خـــــو پرېږده،لېـــــوني يـــــې معـــــاف کـــــړي نـــــه دي
انســـانان هـــم خيـــر دی څـــاروي يـــې معـــاف کـــړي نـــه دي
منصـــوره! ګـــرم يـــو افغـــاني يـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه
ګـــوره! دا څـــومره لېـــوني يـــو مـــونږ تـــه څـــه پتـــه وه[۱۰۹]

يو بل شاعر داسې وايي:

دا چـــا ټـــوټې ټـــوټې کســـکر کســـکر کـــړه زمـــا ســـوات
دا چـــــا د امـــــن غېـــــږ نـــــه رابهـــــر کـــــړه زمـــــا ســـــوات
شـــوې ډېـــرې پېغلـــې کونـــډې او بچـــې يتيمانـــــان شـــول
ډېـــر خلـــق بـــې درکـــه شـــول د ډېـــرو کـــلي وران شـــول
د ډېـــرو غېـــږ خـــالي شـــوه ډېـــر پـــه ژونـــد پـــورې حـــيران شـــول
خپـــل ورور مـــې ورور د ورور سره پـــه شر کـــړه زمـــا ســـوات
دا چـــــا د امـــــن غېـــــږ نـــــه رابهـــــر کـــــړه زمـــــا ســـــوات
بـــس ســـم يـــو قيامـــت جـــوړ وه پـــه هـــر لـــور جـــوړه غوغـــا وه
سرې اوښـــــــکې بهېـــــــدلې واوېـــــــلا وه واوېـــــــلا وه
د ســـوات ښـــکلې غېـــږه څـــه وه خـــو بـــس ســـمه کـــر بـــلا وه
دا چـــا پـــه لـــوی ســـازش د جنـــګ ســـنګر کـــړه زمـــا ســـوات

دا چــــا د امــــن غېـــږ نــــه رابهـــر کــــړه زمــــا ســــوات
د غېـــر د اوره بـــچ نــــه شــــه دهقــــان وه کــــه مـــزدور وه
نــو ځنــګ بــه بــچ کېـدل چــې دا خپــل کــور ورتــه تنــور وه
پــــه هـــر بشرــــ تکلیــــف وه صـــحت یــــاب وه کــــه معــــذور وه
دا چــــا د وینــــو اوښـــکو ســــمندر کــــړه زمـــا ســــوات
دا چــــا د امــــن غېـــږ نــــه رابهـــر کــــړه زمـــا ســــوات
ســـــکولونه، مدرســـــې او مکتبونـــــه زمـــونږ ړنـــګ شـــو
ورشـــــې او ګلـــــدرې پټـــــي فصــــلونه زمـــونږ ړنـــګ شـــو
چینـــې او حجـــرې څــه چــې خپــل کورونــه زمــونږ ړنــګ شــو
دا چــــا پــــه هـــر انــــدام پرهـــر پرهـــر کــــړه زمـــا ســــوات
دا چــــا د امــــن غېـــږ نــــه رابهـــر کــــړه زمـــا ســــوات
څــــادر یــــې د حیـــا کـــوز کــــړه زمـــونږ د خـــور د سر نــــه
محتــــاج یــــې پښــــتانه کــــړل د بـــل درتـــه د خپـــل در نــــه
هغــــه یــــې در پـــه در کــــړل چـــې وتـــلي نــــه وو د ور نــــه
دا چــــا د ســـوات د ســـیمې در پـــه در کــــړه زمـــا ســــوات
دا چــــا د امــــن غېـــږ نــــه رابهـــر کــــړه زمـــا ســــوات[۱۱۰]

له سوات نه د حسن او د امن په رخصتېدو یو بل لیکوال داسې فریاد کوي:

ای ســـــواته ســـــتا د حســــن ښــــکلا ګــــانې چرتــــه لاړې
خـــــــوږې د امـــــــن ډکــــــې هواګـــــــانې چرتـــــــه لاړې
پــــه غرونـــو پـــه ســـمونو دې ښایســـته شـــین څـــادر خـــور وه
د حســــن ښــــکلا ډک هـــــره حجــــره، جماعـــــت او کـــــور وه
د ســـوات د امـــن غـــږ خـــور پـــه نـــړۍ کـــې لـــور پـــه لـــور وه
تیــــــارې شــــــوې د بـــــارودو رڼــــا ګــــانې چرتــــه لاړې
ای ســـــواته ســـــتا د حســــن ښــــکلا ګــــانې چرتــــه لاړې[۱۱۱]

د سوات په مثالي امن کې چې کله ناځاپي خلکو دا ظلمونه او زیاتي ولیدل، نو ظاهره خبره ده چې هغوی به خپل دغه فرهاد کولو. د یادونې وړ ده چې ډېر لیکوالان داسې هم شته چې هغوی د سوات د دغه وخت د ظلمونو هغه اصلي ذمه واران هم نبغ په

نېغه په ګوته کړي، خو د څه مجبوريو له کبله هغوی خپل ليکونه لا تر اوسه نه دي چاپ کړي، هيله لرو چې ډېر زر به د سوات د ليکوالانو په ليکونو کې دغه ټولې خبرې ښکاره شي او ټول قام به په دې خبره پوه شي چې په سوات کې دا لوبه چا ګرمه کړې وه او د دې په شا مقاصد څه وو.

## د امن غږ

کله چې د سوات خلکو د جنګ اور په خپلو سترګو وليد او خپل ځانونه او مالونه يې پکې وبايلل، نو هغوی د جنګ د تباکاريانو نه ډېر تنګ شو او د امن لپاره يې چغې وهل شروع کړه. د امن په باره کې يو ليکوال د "امن" تر سر خط لاندې داسې ليکي:

د قلـــم ژبـــه مـــې مـــدام امـــن لـــه غېـــږه ورکـــوي
مـــا محبـــت تـــه پخـــير راغلـــی هـــر کلـــی ويلـــی
هغـــه اولـــس د ګلســـتان پـــه غېـــږ کـــې ژونـــد تېـــروي
چـــې يـــې د خـــاورې نـــه يـــو جنـــګ او بـــل نفـــرت شـــړلی[۱۱۲]

د امن په باره کې د ضياءالدّين يوسفزي د يو نظم "امن تينګ ساتل جهاد دی" نه يو دوه بندونه دا دي:

امن ژوند دی امن ساز دی
امن مينه ده، ښکلا ده

امن سپـــل دی د کونتـــــرو　　　امـــــن غرونـــــه د نخـــــترو
امن خوند دی د ګور ګـــــورو　　　امـــــن رنـــــګ دی د ګـــــودرو
امن شـړنګ دی د پانزېبـــــو　　　امـــــن ترنـــــګ دی د ســـــندرو
امن ګل ګل سمـــــــې غرونه　　　د خوشـــــبو ډکـــــه فضـــــا ده
امن ژوند دی امن ســــاز دی　　　امـــــن مينـــــه ده، ښـــــکلا ده
جنګ فتنه ده وسوســــــه ده　　　جنـــګ د کرکـــې نتېجـــه ده
د خپل سيوري نه به تختـــــې　　　جنـــګ د وېـــرې اندېښـــنه ده
په رڼا پسې به ړوند شـــــــې　　　جنـــګ يـــو تکـــه تـــوره شـــپه ده
جنګ هيڅ حل د شخړو نه دی　　　جنـــګ پـــه خپلـــه مســـئله ده
د انســــــــان په وينو پائي　　　جنـــګ هغـــه تـــوره بـــلا ده

امن ژوند دی امن ساز دی

امن مينه ده، ښکلا ده[113]

يو بل شاعر "د امن قاتل" تر سر خط لاندې داسې وايي:

قاتـــــل د امـــــن مـــــې د امـــــن پـــــه نـــــوم قتـــــل کـــــوي
زمـــــا ارمـــــان قتلـــــوي زمـــــا احســـــاس قتلـــــوي
دا قـــــاتلان دي ظالمـــــان مـــــې ماشـــــومان قتلـــــوي
دا څنـــــګ د امـــــن پيـــــامبر دي! امـــــن څـــــه تـــــه وايـــــي؟
امـــن دې تـــه وايـــي چـــې مـــې د پېغلـــو د سرونـــو لـــوپټې والـــوتې
چـــــې مـــــې د مينـــــدو ګرېوانونـــــه د حيـــــا څـــــيرې شـــــول
پکـــــې لاســـــونه پـــــه نکريـــــزو سره پـــــه وينـــــو سره شـــــول
هاغـــــه مســـــکا د شـــــونډو لاړلـــــه ســـــلګۍ پـــــرې راغلـــــې
زه دې تـــــــــه امـــــــــن نـــــــــه ويـــــــــم
زه دې تـــــــــه صـــــــــلح نـــــــــه ويـــــــــم
زه دې تـــــــــه مينـــــــــه نـــــــــه ويـــــــــم
ورتـــــــــه رهـــــــــبر هـــــــــم نـــــــــه ويـــــــــم
ورتـــــــــه خـــــــــير خـــــــــوا هـــــــــم نـــــــــه ويـــــــــم
ورتـــــــــه غمخـــــــــوار هـــــــــم نـــــــــه ويـــــــــم
ورتـــــــــه خـــــــــوددار هـــــــــم نـــــــــه ويـــــــــم[114]

قاسم سرحدي د امن په باره کې داسې ليکي:

امـــــن د امـــــن پـــــه مېـــــز يـــــا پـــــه مېـــــدان د امـــــن
جـــــوړ کـــــه داســـــتان د امـــــن، واخلـــــه ســـــامان د امـــــن
دنيـــــا مـــــه ځـــــان لـــــه ګڼـــــه، دنيـــــا نـــــه ځـــــان لـــــه ګـــــڼم
پـــــه حـــــق مـــــاموره تـــــه يـــــې، پـــــه حـــــق مـــــاموره زه يـــــم
د افريقـــــې نـــــه واخلـــــه تـــــر بدخشـــــان د امـــــن
امـــــن د امـــــن پـــــه مېـــــز يـــــا پـــــه ميـــــدان د امـــــن
کـــــه ســـــتا نـــــه امـــــن غـــــواړم، تـــــا لـــــه بـــــه امـــــن درکـــــړم
کـــــه مـــــا نـــــه امـــــن غـــــواړې، راکـــــوې امـــــن بـــــه تـــــه
نشـــــته دی بـــــل ځـــــای داســـــې، چرتـــــه دکـــــان د امـــــن

امـــن د امـــن پـــه مېـــز يـــا پـــه ميـــدان د امـــن[115]

قيس د "جنګ" تر سرخط لاندې د امن تصور داسې وړاندې کوي:

نـــن مـــې د خپـــل ماشـــوم ګـــل ګـــل بچـــوړي
پـــه دې خـــبره زړګـــى تـــخ مـــخ شـــه چـــې
هغـــه پـــه نرمـــه او معصـــومه ژبـــه
څـــه عجيبـــه شـــان ســـوال زمـــا نـــه وکـــړه
پـــه مـــايې غـــونى زيـــګ زيـــګ اودرولـــو
زمـــا احســـاس يـــې بيـــا راولـــړزاو
هغـــه خـــو ډېـــر پـــه معصـــوم تـــوب کـــې اووې
دادا تـــه مالـــه يـــو ټوپـــک خـــو واخلـــه
بيـــا مـــا تـــه ګـــوره چـــې زه څـــه کوومـــه
د اغيـــار سر کـــې ابـــه څښـــمه کنـــه[116]

په دغه نظم کې هغه دغه ماشوم ته د ټوپک پر ځای د قلم د اوچتولو خبره کوي او په دې يې پوه کوي چې دا زمانه د قلم د جنګ ده نه د ټوپک د جنګ او کله چې څوک د قلم جنګ وګټي نو ټوله دنيا بيا له هغه نه امن غواړي:

تـــه د قلـــم پـــه دې وروکـــي ژبـــه
د ارتقـــا دغـــه جنـــګ اوګټـــې نـــو
بيـــا کـــه تـــه هـــر څـــو نـــوم د جنـــګ اخلـــې خـــو
دنيـــا بـــه ټولـــه ســـتا نـــه "امـــن" غـــواړي[117]

د سوات د دې دور په پښتو ادب کې د امن موضوع د شاعرۍ اهمه موضوع ده او په دې موضوع شاعرانو په مختلفو اصنافو کې ليکل کړي او دنيا ته يې دا پېغام رسولى چې مونږ امن پسند خلک يوو او مونږ امن غواړو. دا کوښښ يې هم کړى چې په مونږه چې د دهشت ګردۍ او ترهګرۍ دا کوم لېبل لګول شوى، دا زمونږ د کلتور او رواياتو خلاف دى.

## جنګي وسلې

د سوات د پښتو ادب له تجزيې نه د هر دور د وسلو اندازه ولګېدله، له دې نه دا پته هم ولګېدله چې په نړيواله توګه کومې نوې وسلې متعارف کېږي هغه د دې ځای په ادب

کې هم په څه نه څه شکل کې په نظر راځي. د دې دور په ادب کې د جدید دور د جنګي وسلو ذکر هم موندلی شي. د ایټمي دهماکو په باره کې یو شاعر داسې وایي:

خلـــــک خوشــــــحالېږي پاکســـــتان دهماکــــــې اوکړلــــــې
چـــا د چـــا پـــه لمســـه چـــا پـــه ځـــان دهماکـــې اوکړلـــې
دا څـــه دهماکـــــې دي مـــــونږه هـــــر وخـــــت ډزېـــــدلي یـــــو
مـــونږ پـــه دې ډرامـــو کـــې کـــال پـــه کـــالې لوبېـــدلي یـــو[118]

د بم په باره کې داسې لیکي:

مـــونږه بـــم نـــه! مـــونږه خپلـــې خېټـــې لـــه ډوډۍ غـــواړو
یـــا خـــو جـــوړ ســـمه خاتمـــه د زنـــدګۍ غـــواړو[119]

او د مسایلو د زیاتېدو وجه یو شاعر د وسلو زغل ښایي:

چرتـــه غـــوري میزائېـــل څـــه پرتهـــوي میزائېـــل
داســـې پـــه چـــل ول کـــې مـــو زیـــاتوي مســـائېل[120]

له دې طنزیه شعرونو نه هم پته لګي چې د سوات خلک امن غواړي او په هېڅ صورت هم جنګونو او جدیدو وسلو ته خوشحالېږي نه. د دې وجه دا ده چې د سوات خلک په دې پوه شول چې دا وسلې زمونږه مسئلې حل کوي نه، بلکې لا یې زیاتوي. بله خبره دا ده چې د سوات خلک پخپله د دې خطرناکو جنګي وسلو ښکار شوي دي ځکه هغوی د هر قسمه وسلو د زغل خلاف دي.

## سیاست

په دې دور کې چې د سوات خلکو کوم تکلیفونه او مشکلات ولیدل او په دې حالاتو کې ډېرو کمو سیاسي مشرانو د سوات له خلکو سره غمرازي کړې ده، نو همدغه وجه ده چې د سوات د خلکو د سیاست، سیاسي پارټیو او سیاسي مشرانو نه بې زاري د دې دور په پښتو ادب کې په نظر راځي. د دې دور په پښتو ادب کې سیاست او سیاسي لیډرانو ته په ښه نظر نه دي کتل شوي. برکت علي برکت د لیډر د احساس په باره کې په دی هایکو کې داسې وایي:

نـــــوم د احســـــاس چـــــې د لیـــــډر نـــــه واورم
شي زمـــا ټـــول وجـــود بـــې حســـه غونـــدې

چـــــې څنـــــګ قصـــــاب سره شـــــه غـــــم د څـــــاروي[۱۲۱]

په سیاست کې په اظهار خیال د پابندۍ په باره کې صابر داسې وايي:

خــــولې بنـــــدول پـــــه زور د خلقــــو سیاســــت خــــو نــــه دی
ده بــــدمعاشي، بــــد معــــاشي جمهوریــــت خــــو نــــه دی[۱۲۲]

یو بل ځای کې صابر احمد د "سیاست نامه" تر سرخط لاندې د سیاست په باره کې داسې لیکي:

سیاســـت څـــه دی خـــو دهوکـــه فرېـــب کـــول دي دروغ ویـــل دي
دروغ ویـــل دي خـــو ویـــل یـــې لـــږ پـــه چـــل دي دروغ ویـــل دي[۱۲۳]

رحیم شاه رحیم د سیاست او سیاسي لیډرانو په باره کې داسې لیکي:

سیاســـت چـــې د دهوکـــو شـــه حکومـــت د دهماکـــو شـــه
د دې دواړو د عذابـــــه ملـــــک د ګوتـــــو د لکـــــو شـــــه
لـــــوی منصـــــب د وزارت وه د عـــــزت او د خـــــدمت وه
وزیـــر خپـــل فـــرائض هېـــر کـــړل بوخـــت پـــه شـــوکو او ډاکـــو شـــه
کـــه ډېـــر ښـــه سیاســـتدان وه غـــټ یـــې نـــوم او خانـــدان وه
د ازمېښـــت مقـــام چـــې راغـــی د پیشـــاړو د خـــاکو شـــه
افـــرین پـــه اســـمبلو کـــې پـــه خرڅـــون د ممبرانـــو
کـــه مضـــبوط لکـــه فـــولاد وه ارتـــاو هلتـــه پـــه پوکـــو شـــه[۱۲٤]

عبدالقهارمخلص ووتړ ته د هغه اهمیت او مقام داسې ښيي:

ګـــوره ای ووټـــره د اعـــلیٰ نـــه چـــې ادنیٰ نـــه شـــې
تـــه حکومـــت ســـاز یـــې هســـې نـــه چـــې وارخطـــا نـــه شـــې
دا نـــاظم ممـــبر وزیـــر او صـــدر تـــا جـــوړ کـــړي دي
پـــام کـــوه چـــې تـــه د حیثیـــت خپـــل نـــا اشـــنا نـــه شـــې
تـــا تـــه دا مالـــدار حـــرام خـــواره د لالـــچ تـــال نیسيـــ
هســـې نـــه چـــې تـــه د ګنـــده خلقـــو سره ســـخا نـــه شـــې
دغـــه منـــافق خـــو الیکشـــن پـــورې دوســـتي ســـاتي
تـــه د منـــافقو خـــود غرضـــو هـــم نـــوا نـــه شـــې[۱۲۵]

د موجوده سیاسي نظام په باره کې رحیم شاه داسې لیکي:

ځـــــــه قـــــــانون ځـــــــه سیاســـــــت
ځـــــــه وطـــــــن ځـــــــه حکومـــــــت
اســـــــمبلۍ پکـــــــې جـــــــوړېږي
بیـــــا ســـــاعت لـــــــره مـــــاتیږي
ممـــــــبران پکـــــــې خرڅیـــــــږي
لیـــــــډران پکـــــــې بـــــــدلیږي
نـــــه ټـــــاکلی ځـــــه ائـــــین شـــــته
نـــــه تمیـــــز د تـــــور او ســـــپین شـــــته
تـــــش پـــــه نـــــوم جمهوریـــــت دی
شـــــا تـــــه پـــــټ تـــــرې امریـــــت دی[126]

له سیاسي لیډرانو نه د خلکو د اعتماد لرې کیدلو غټه وجه همدا ده چې دې خلکو د ذاتي مفادو او لالچ لپاره قوم په تیارو کې پرېښود او خپله یې په هر ځای کې خپلو مفادو ته ترجیح ورکړه. بله خبره دا ده هغه جمهوریت په کوم چې اصلي طاقت د عوامو په لاس کې وي هغه جمهوریت نشته، اګر که په ظاهره جمهوریت ښکاري خو په حقیقت کې یې په شا امریت ولاړ دی. په سیاسي لیډرانو د اعتماد د ختمېدلو په باره کې قیس داسې وایي:

پـــه رهبرانـــو مـــو نـــور ځـــای د بـــاور پـــاتې نـــه شـــه
مـــونږ بـــه پـــه یـــو رنـــګ کـــې لیـــدل هغـــه بـــه نـــور اوخاتـــه
اخـــر مـــو ســـپین ســـپین د انصـــاف کرســـۍ تـــه اوخېـــژول
نتېجـــه دا شـــوه دوی د تـــورو نـــه هـــم تـــور اوخاتـــه[127]

نذیر شموزي "پاکستاني رهبر ته" داسې وایي:

د غریـــــــب اوښـــــــکې خـــــــولې
فریادونـــــــه، شـــــــور، نـــــــالې
نتېجـــــــه یـــــــې د غاصـــــــب
د شراب ډکـــــــــــې پیـــــــــــالې
دې احســـــاس مـــــې پـــــه ســـــینه کـــــې
جـــــــوړې کـــــــړې دي چهـــــــالې
مـــــا د ختـــــو کـــــور جـــــوړ نـــــه کـــــړه

تـــــــا ودانــــــــې کـــــــړې بنګلـــــــې
مــــونږ وې ملـــک بـــه ټـــول اوچـــت کـــړې
خپلــــــــه خېټــــــــه صرف پــــــــالې[128]

امیر فیاض پیرخېل "اوسنی سیاست" داسې بیانوي:

دا وطـــــــن زمـــــــونږ وطـــــــن دی دا رښـــــــتیا ده
نـــــــن اغیـــــارو جـــــوړه کـــــــړې واوېـــــلا ده
څـــــــوک رښـــــــتیا او څـــــــوک دروغ راسره کانـــــــدي
پښـــــــتونخوا کــــــــې د کانګرســــــو چغـــــه بیـــــا ده
دا وطـــــن چـــــې چـــــا جـــــوړ کـــــړی دی خـــــبر یـــــم
چـــــې ورکـــــړې قربـــــاني ورپکـــــې چـــــا ده
څـــــوک پښـــــتون او پنجـــــابی بلـــــوچ ســـــندهی شي
مهـــــــاجر هندوســـــــتانی بلـــــــه بـــــــلا ده
پـــــه دې ملـــــک کـــــې نخښـــــانې د اســـــلام نشـــــته
دا خـــــو ډلـــــه د فـــــوځي سرکـــــار صـــــفا ده[129]

د ووټ په وخت کې د سیاسي خلکو حالات داسې بیانوي:

چـــې پـــه ووټونـــو کـــې د هـــر یـــو تـــن پـــه پښـــو پرېـــوتې
اوس خـــو ممـــبره ســـتا سره بـــې رخـــي خونـــد نـــه کـــوي
چـــــې شي ووټونــــه چینـــــدخان د پشـــــکال پیـــــدا شي
فیاضـــه دغـــه موســـمي مشرـــي خونـــد نـــه کـــوي [130]

او بل ځای کې داسې وایي:

بیـــا د ووټونـــو زمانـــه شـــوه مـــداریان ښـــکاره شـــو
بیـــا لېـــوني او ســـپېلني پـــه دې کوڅـــه تېریـــږي[131]

او " د ووټ غل" تر سر خط لاندې داسې لیکي:

بیـــــا انتخـــــاب دی لیـــــډران پیـــــدا شـــــول
بیـــــا د غریبـــــو همـــــدردان پیـــــدا شـــــول
خدایـــــه مـــــونږ څـــــه اوکـــــړو ذرې ذرې شـــــو
بیـــــا مـــــو د وچـــــې مشرـــــان پیـــــدا شـــــو[132]

لنډه دا چې له سیاسي لیډرانو نه خلکو ډېر زیات سر ټکولی او د دوی منافقت یې هر ځای په ډاګه کړی دی. په دې دور کې لکه څنګه چې وړاندې ذکر شول چې خلکو باندې ډېرې سختې راغلې او سیاسي خلکو یې مرسته و نه کړه، بلکې ډېر تش په نوم سیاسي خلک خو هم د سوات د خلکو په دې عذابولو کې شریک هم وو، همدغه وجوهات دي چې د سوات د خلکو پر سیاست او سیاسي لیډرانو باندې اعتماد ختم شوی دی.

## توهّمات

توهم پرستي د پښتو ادب په هر دور کې موندی شي، دغه رنګ په دې دور کې هم توهم پرستي په ادب کې لیدی شي. مثالونه یې دا لاندې ورکړل شوي دي.

## بد نظر

پر یو ښایسته انسان یا بل یو څیز د بد نظر د اثر د مخنیوي مختلفې طریقې دي، لکه د نظر نه یو څیز پټ ساتل یا ورته تعویذ په غاړه کول او نور. په دې شعر کې هم د بد نظر ذکر شوی دی:

نــــــــه لګــــــــــي نظــــــــــر د بــــــــــد نظــــــــــرو پــــــــــرې
پــــــــــټ مــــــــــې کښــــــــــولی د زړه تــــــــــل کــــــــــې دی[۱۳۳]

## کوډې

د دې دور په ادب کې د کوډو ذکر هم موندلی شي، کوډې جادو منتر او نورو ته ویلې شي. په دې ټپه کې د کوډو د مرۍ ذکر شوی دی:

ســـــــــــــترګې دې بـــــــــــــې اثـــــــــــــره نـــــــــــــه دي
لکـــــــــه د کـــــــــوډو مـــــــــرۍ برګـــــــــې برګـــــــــې دینـــــــــه[۱۳٤]

## تعویذونه

لائق زاده لائق په یو ازاد نظم "تعویذ" کې د تعویذ په باره کې داسې وایي:

زمـــــــــا پـــــــــه غـــــــــاړه تعویـــــــــذ
ســـــــــتا د غـــــــــرور پـــــــــه نامـــــــــه
"هاغـــــــــه مـــــــــلا" لیکلـــــــــی

چـــــې ماشـــــوم تـــــوب کـــــې بـــــه مـــــونږ
ورسره ناســـــــــــــــــــــــــــت وو دواړه
تـــــــا بـــــــه ســـــــبق ویلـــــــو
مـــــا بـــــه دې مـــــخ تـــــه کتـــــل
مـــــــــلا بـــــــــه زه وهلـــــــــم
تـــــا بـــــه خنـــــدل راپـــــورې
زمـــــا پـــــه غـــــوږو کـــــې اوس
هاغـــــــــه خنـــــــــدا پرتـــــــــه ده
تـــــا د ځـــــوانۍ پـــــه درشـــــل
ایلـــــــه قـــــــدم ایښـــــــی دی
ســـــبق لـــــه نـــــه راځـــــې اوس
زمـــــا بـــــې صـــــبره زړګـــــی
هـــــــدو قـــــــرار نـــــــه کـــــــوي
زه یـــــو تعویـــــذ پـــــه غـــــاړه
ســـــتا پـــــه لټـــــون ګرځمـــــه
دغـــــــه بـــــــاور لرمـــــــه
چـــــې ســـــتا غـــــرور بـــــه یـــــو ځـــــل
دغـــــــه تعویـــــــذ مـــــــاتوي
ځکـــــه پـــــه دې پوهـــــه یـــــم
دا عقیـــــــــــــــده لرمـــــــــــــــه
مـــــلا کـــــه "هـــــر څـــــه" کـــــوي
ولـــــــې دروغ نـــــــه وایـــــــي[۱۳۵]

د سوات په خاوره د کوډو تعویذونو او د جادو اثرات د دې دور په ادب کې هم په نظر راځي. جادو او کوډې په هندوانو کې هم شته نو له دې وجې ډېر خلک دا څیز په دې خاوره د هندویزم یوه اثر ګڼي، لکه څنګه چې د تاریخ نه هم په ډاګه دي چې په سوات د هندو شاهي حکومت تر کافي وخته پورې موجود و.

## د اظهار پابندي

په دې دور کې هم ځینو خلکو د خپلو خیالاتو اظهار په ډاګه نه دی کړی، ځکه چې هغوی څه نه څه مجبوریانو پابند کړي وو. یو لیکوال د "پابندي" تر سر خط لاندې داسې اظهار کوي:

هیڅ نه شم ویلی په ویلو پابندي ده
خوار ته په قدم پورته کولو پابندي ده[136]

له ۲۰۰۷ نه را په دېخوا چې په سوات کې کوم خراب حالات رامخې ته کړی شوي وو په دغه دوران کې هم ځینو طاقتونو خلک په ازادۍ سره د خیال اظهار ته نه دي پرېښودي او که چا څه لږ ډېر اظهار کړی هم دی نو هغوی ته ډېر ګران پرېوتی دی.

## د ښځو ژوند

په دې دور کې د ښځو د ژوند او د حالاتو په حواله څه نه څه په ادب کې په نظر راځي او د ښځو په حقله په سوچ فکر کې هم بدلون ښکاري. فضل محمود روښان د یو څو پښتنو مېرمنو په کارنامو مشتمل یو کتاب "سره پښتنه په شنو جامو کې"[137] هم لیکلی دی. په پښتنه ټولنه کې یو ډېر خراب رسم د سورې و چې په دښمنۍ کې به یې لور خور ورکوله او روغه به یې وکړه. دا رسم دیدار یوسفزي په یو نظم "سوره" کې غندلی دی. د دغه نظم یو څو شعرونه دا دي:

د ادم ځامن بالا دي د هر رنګه بندشونو
د حوا مجبوره لور یم ځکه ښکار د نفرتونو
چې اوبه مدام بهیږي په کمزورو ورخونو
د ژوندون په دې مېله کې په ویړیا بېعه خر څېږم
چې روانه یم له کوره، د رواج سولۍ ته خېژم
چا ترلې خویاندې لوښه، د انا په زنځیرونو
چا د کور عزت بایللی، د ژوندون په خواهشونو
چا د عمر نازولي، قربان کړي په رسمونو
په منکره روایاتو، څو څو ځله قربانېږم
چې روانه یم له کوره، د رواج سولۍ ته خېژم

څـــو بـــه کيـــږي پـــه جرگـــو کـــې، وېـــش زمـــونږ د تقـــديرونو
څـــــو پـــــه نـــــوم بـــــه د واده ځـــــي، جنـــــازې د ارمـــــانونو
څـــــو بـــــه ځـــــانگي نصـــــيبونه، پـــــه صـــــليب د رواجونـــــو[۱۳۸]

پښتانه د لور په پيداکېدلو خفه کېږي او د زوی په پيدايښت خوشحالېږي او بيا زوی ته د لور په نسبت زياته توجه ورکوي، ځکه خو يوه لور له خپل پلار نه داسې گيله کوي:

تـــه زمـــا ابـــو يـــې خـــو زه ســـتا نـــه گيلـــه منـــه يمـــه
نـــــن يـــــې درتـــــه وايمـــــه چـــــې ولـــــې زه غمژنـــــه يمـــــه
زمـــا پـــه پيـــدائش بانـــدې خفـــه شـــوې او زهـــير شـــولې
کلـــه بـــه غصـــه شـــوې او غصـــې نـــه بـــه بـــاهر شـــولې
تـــا زمـــا وروركـــى پـــه انگلـــش ســـکول کـــې داخـــل کـــړی دی
تـــا خپـــل مســـتقبل دغـــې طـــرف تـــه مائـــل کـــړی دی[۱۳۹]

قاسم سرحدي په پښتنه معاشره کې د ښځو د حالاتو عکاسي په يو نظم "د ادم لور" کې داسې کړې ده:

زه د ادم لـــــور يـــــم د دنيـــــا زېـــــب و زينـــــت يمـــــه
دلتـــه کـــې راحـــت يمـــه او هلتـــه کـــې جنـــت يمـــه
زه نـــــوم د طاقـــــت بهـــــادرۍ او د غـــــيرت يمـــــه
گـــل يمـــه، ازغـــى يمـــه هـــم پاڼـــه د راحـــت يمـــه
وخـــت او رواجونـــو پـــه پنجـــرو کـــې بنـــدي کـــړې يـــم
ظلـــــم او زيـــــاتو زه د حـــــالاتو ژرنـــــده کـــــړې يـــــم
زه يـــــوه خاموشـــــه خـــــاموشي يـــــم د صـــــحرا هســـــې
ښـــکاري مـــې پـــه شـــونډو د حســـرت ډکـــه خنـــدا هســـې
ژونـــد هســـې د رســـم پـــه تـــيرو کـــې تېرومـــه زه
يمـــه پـــه تـــيرو کـــې خـــو رڼـــا تـــل خورومـــه زه
زه هـــم يـــو طاقـــت يـــم خـــو تړلـــى بنـــد پـــه بنـــد يمـــه
څـــه اوکړمـــه ربـــه زه مجبـــور پـــه دغـــه ژونـــد يمـــه
مـــا پيغمـــبران او اوليـــا هـــم زېـــږولي دي
مـــا ډېـــر شـــهيدان پـــه خپلـــه غېـــږ کـــې ځنگـــولي دي

مــــا همـــــېش ورکـــــړې قربـــــاني انســـــانیت لـــــه ده
وینــــه څــــه؟ چــــې مــــا مینــــه ورکــــړې شــــجاعت لــــه ده
بیــــا هــــم زمــــا ژونــــد د رواجونــــو زولنــــو کــــې دی
صرف زمــــا حــــق زمــــا د دیــــن پــــه ســــیپارو کــــې دی[۱۴۰]

له ځینو رواجونو نه وتل خو واقعي د سړو لپاره هم گران وي، خو په ښځو د رواج ډېرې پابندیانې پرتې دي، لکه مختیار بېگم چې وایي:

زه د رواج د وېــــــــرې نــــــــه شــــــــم درتلــــــــی
ســــــتا د خــــــاطره مــــــې تــــــول چــــــم پرېښــــــوده[۱۴۱]

په ښځو د شعر و ادب پابندیانې هم وې او که چا به پټ په پټه څه ولیکل نو هغه به یې بیا هم ضایع کول چې کوروالا ترې خبر نه شي. که د چا په کور کې مور یا ښځې به شاعري کوله نو سړو به دا د شرم خبره گڼله او د بل چا په مخکې به یې د دې ذکر نه کولو.[۱۴۲] عبداللطیف شاهین "د مشرق پېغله" تر سرخط لاندې د مشرق پېغله د مغرب له پېغلې نه داسې غوره کوي:

مغــــــرب هغســــــې لاهوب دی پــــــه تیــــــارو کــــــې
د مشرــــــــقه نــــــــور ختلــــــــی دی صــــــــبا دی
د مغــــــــرب پېغلــــــــه اوده ده ســــــــترې ســــــــترې
د مشرــــــق د پېغلــــــې خــــــوب خنــــــدا خنــــــدا دی
تــــول مغــــرب بــــه یــــې پــــه یــــو قــــدم قربــــان کــــړم
د مشرــــــق د پېغلــــــې ژونــــــد حیــــــا حیــــــا دی
زه شــــــاهین بــــــه فخــــــر ولــــــې پــــــه دې نــــــه کــــــړم
چــــــې ســــــاتلی یــــــې نــــــاموس د خپــــــل بابــــــا دی[۱۴۳]

د زنانه وو د پردې او برقعې په سر کولو ذکر قیس په دې هایکو کې داسې کوي:

بورقــــــــه کــــــــې پټــــــــه ده د پونــــــــدو پــــــــورې
خــــــدای خــــــبر تــــــوره او کــــــه ســــــپینه بــــــه وي
دې تجسّــــــس کــــــې یــــــې ښــــــکلا پټــــــه ده[۱۴۴]

مولانا امیر رحمان "د زنانه وو بې ستري" داسې بیانوي:

بــــې دینــــي ډېــــره شــــوه د کــــور ښــــځې بهــــر اوځــــي

ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی
په رڼا ورځ اوځي د کوره
اکثر په سر وي دا سرتوره
چغې خندا کړي دا په زوره
اوبه بهانه کړي دا په نیت خو د چکر اوځي
ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی
څوک به بهانه کړي ځان له اور
گشتونه کړي د هر یو کور
هر یو سړي ته وایي ورور
خاوند یې ملاست وي دا ترې پټه په هنر اوځي
ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی
یا که شي غم ښادي د کلي
بیا به دا ټولې ښځې زغلي
هلته سړي د هر یو کلي
بهانه یې غم وي دا په زړه کې په اختر اوځي
ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی
څوک به بابا ځانله بهانه کړي
خبر به ټولې زنانه کړي
نری جامې سر به شانه کړي
دا شي رخصت، په سړي ټوله ورځ نهر اوځي
ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی
یا چې اختر رانږدې کیږي
ښځې جامو ته خوشحالیږي
خپلو سړو ته به قاریږي
جامې زړې دي څنگ په ما به دا اختر اوځي
ښې رڼا سحر اوځي دا څنگه ایمان دی[١٤٥]

په سوات مینگوره ښار کې د جینکو د گرځېدو په باره کې فضل خالق فضل داسې لیکي:

ښــــــــکلی د ســــــــوات چینـــــــــه بــــــــازار دی
پکـــــــــې ســـــــــېلونه خونـــــــــد کـــــــــوي
د جینکـــــــــــو پکـــــــــــــې یلغـــــــــــار دی
ســـــــپین یـــــــې رنگونـــــــه خونـــــــد کـــــــوي
قطـــــــــار قطـــــــــار جینکـــــــــــۍ راغلـــــــــــې
پـــــــــه هـــــــــره لار جینکـــــــــــۍ راغلـــــــــې
دا د بـــــــــــازار جینکـــــــــــــۍ راغلـــــــــــې
چـــــــال د هـــــــوسي ســـــــور یـــــــې رخســـــــار دی
سره څادرونـــــــــــه خونـــــــــــد کـــــــــــوي
څـــــــوک ســـــــودا گـــــــانو لـــــــه راغلـــــــې
څـــــــوک خنـــــــداگانو لـــــــه راغلـــــــې
څـــــــوک خپـــــــل یـــــــارانو لـــــــه راغلـــــــې
دیـــــــــدن پـــــــــه هـــــــــره یـــــــــوه لار دی
دا بازارونـــــــــــه خونـــــــــــد کـــــــــــوي
دا یـــــــــــــې گنـــــــــــــاه ده د پلارانـــــــــــــو
د بـــــــــــــې غیرتـــــــــــــه خاونـــــــــــــدانو
د بـــــــــــــې حیـــــــــــــاو مشرـــــــــــــانو
دا د فضـــــــــــــل د خلـــــــــــــې گفتـــــــــــــار دی
رښـــــــــتیا شـــــــــعرونه خونـــــــــد کـــــــــوي[146]

قاري امیر نواب په خپل نظم "د فحاشۍ خلاف" کې داسې لیکي:

پـــــه کـــــور د مســـــلمان د فحاشـــــۍ جـــــوړې اډې شـــــولې
څـــــــه بـــــــل شـــــــانې نخـــــــرې شـــــــولې
تبـــاه یـــې شـــو ایمـــان چـــې د وي سي آر چرچـــې خـــورې شـــولې
نـــــــو لـــــــرې یـــــــې برقعـــــــې شـــــــولې
نـــــور بربنـــــډ فوټـــــوان راځـــــي پـــــه اخبـــــاراتو رســـــالو کـــــې
جینکـــــــــــــۍ پکـــــــــــــې گـــــــــــــډیږي
دا خـــــــــل شـــــــــو تبـــــــــاه کیـــــــــږي

په ماحول او معاشره کې ډمګیرۍ چغه خوره شوه
خرابه معاشره شوه
حیا زمونږ نه لاړه ډش انټینا زمانه شوه
هر کور کې ډم خانه شوه
نو مخلوط تعلیم شو عام په کالجونو یونیورسټو کې
بې شرمه نه شرمیږي[147]

په دې شعرونو کې په اخبار، رساله، وي سي ار، ډش انټینا، مخلوط تعلیم باندې نیوکې شوي دي. له دې نه پته لګي چې دلته په هر وخت کې یوه طبقه داسې موجوده پاتې شوې، چې په هر قسمه ترقۍ یې تنقید کړی دی. د ټي وي د کتلو په باره کې داسې وایي:

ټي وي د هر کور مشعله جوړه شوه
چې پکې فلم ماشومان ګوري
اولاد سره د والدینو ناست وي
ځوانان لا څه چې بوډاګان ګوري
چې پېغلې ناست وي زلمي رونږو سره
پکې بربنډ فحاش فوټوان ګوري[148]

نذیر شموزي د نن زمانې د پېغلې او د میوند د ملالې موازنه داسې کړې ده:

په مکېز مې یوه جل تېره شوه خوا کې
ما ته یاده د مونٍدو ملالۍ شوه
چورلوله یې بټوه خپله هوا کې
رنګینه مې په بیرغ د سوچ نرۍ شوه
ما وې اې د قام خورلنې واوره پند
ستا د شوندو د لپ سټکو نشته خوند
ستا د وینې هغه رنګ د قدر وړ دی
چې عظمت د پښتنو ترې شي څرګند
هغه اوګوره نزدې و قندهار ته
پروت لمنه کې د غره ښکاري میوند

ملالـــــــــی د ننـــــــــګ بـــــــــیرغ پـــــــــه لاس ولاړه
د وطـــــــــن زلمـــــــــو تـــــــــه راز ښـــــــــایي د ژونـــــــــد
تـــــــــل ابـــــــــاد بـــــــــه پښـــــــــتانه وي پـــــــــه دنیـــــــــا کـــــــــې
دا ثبـــــــــوت مـــــــــې د میونـــــــــد یـــــــــوه جینـــــــــۍ شـــــــــوه
پـــــــــه مکېـــــــــز مـــــــــې یـــــــــوه جـــــــــل تېـــــــــره شـــــــــوه خـــــــــوا کـــــــــې
مـــــــــا تـــــــــه یـــــــــاده د میونـــــــــدو ملالـــــــــۍ شـــــــــوه[۱۴۹]

ډاکټر امیر فیاض د "بې حیا معاشره" تر سر خط لاندې داسې لیکي:

راشـــــــــه دا خلـــــــــق بـــــــــې وفـــــــــا اوګـــــــــوره
نیمـــــــــې بربنـــــــــډې بـــــــــې حیـــــــــا اوګـــــــــوره
تـــــــــه پـــــــــه ملکونـــــــــو ګرځېـــــــــدلی بـــــــــه یـــــــــې
راشـــــــــه د حســـــــــن دا دنیـــــــــا اوګـــــــــوره[۱۵۰]

## د کلي او ښار ژوند

لائق زاده لائق د ښار له ژوند نه سر ټکوي او د کلیوال ژوند ستاینه کوي:

دلتـــــــــه ګـــــــــودر نشـــــــــته د پېغلـــــــــو تنورونـــــــــه نشـــــــــته
دلتـــــــــه کـــــــــې مســـــــــتې چینـــــــــې نشـــــــــته چنارونـــــــــه نشـــــــــته
دلتـــــــــه حجـــــــــرو کـــــــــې د یـــــــــارانو محفلونـــــــــه نشـــــــــته
دلتـــــــــه پیکـــــــــه مـــــــــازیګری دی ځـــــــــه چـــــــــې کـــــــــلي تـــــــــه ځـــــــــو
دلتـــــــــه کـــــــــې نـــــــــه ســـــــــړی ســـــــــړی دی ځـــــــــه چـــــــــې کـــــــــلي تـــــــــه ځـــــــــو[۱۵۱]

د کـلي او د ښـار د ژونـد د هـر یـو خپلـې خپلـې فایـدې او نقصـانونه شـته. پـه دې شـعرونو کـې شـاعر چـې کومـو څیزونـو تـه اشـاره کـړې ده هغـه تنـور، ګـودر، چینـې، چینارونه، حجرې، محفلونه، د مازیګر سیلونه او نور دي.

## مېلې

په بر سوات کې د یوې هفته وارې مېلې په باره کې وکیل حکیمزی وایي چې څه خواوشا شل دویشت کاله پخوا دا مېله د متې د بازار په مینځ کې شروع شوې وه. دا مېله به د هرې چارشنبې په ورځ کېدله، اوس دا مېله د سمبټ او د متې په مینځ کې د ملنګ خوړ په غاړه کېږي. په دې مېله کې به اول اول خلقو صرف څاروي خرڅول خو بیا پکې

سمه والو ټوکي او ګوړه خرڅول شروع کړل، نن صبا دا مېلې د ښارونو د جمعه بازار یا مینه بازار حیثیت لري. [۱۵۲] په سوات کې دوه ځایونه د "مېله ګاه" په نوم یاد دي. په بره درشخېله درشخېله کې یو بازار ورسره پلو په مېله ګاه مشهور دی، بل په کبل تحصیل کې د کوټلۍ په خوا کې مېله ګاه نومې کلی ودان دی.[۱۵۳] له دې زړو نومونو نه پته لګي چې په سوات کې د مېلو یو زوړ تاریخ موجود دی. نن صبا په مټه، خوازه خېله او مینګوره کې هفته وارې مېلې لګي. د خوازه خېلې مېله صرف د څاروو ده او دې نورو مېلو کې هر څه خرڅیږي. دلته په دې مېلو کې چې کوم څیزونه خرڅیږي په هغې کې چرګان، تیتر، خړتمیان،ایلۍ، کونترې ، طوطیان، زاړه استعمال شوي کوټونه،بنینونه، بوټان، څپلۍ، د پلاسټکو هر قسمه پېزار، مسالې، ټوکي، ګوړه، چای، لوښي، پیالې، د څاروو دارو، د بنیادمو د پاره د لارې کوڅې د پنساریانو دارو، د زراعت سامان، سبزیانې، مېوې او د دوی بوزغلي وغیره شامل دي. فالګر او مداریان پکې هم ناست وي خپل کرتبونه ښائي.[۱۵٤]

## ګودر

د وخت په تېرېدو سره ګودرونه هم ختم شول، د ګودرونو په ختمېدو چې شاعرانو کوم ماتم کړی دی د هغې نمونې دا دي:

نـــــه رنګـــــین ګلونـــــو نـــــه د جونـــــو پـــــرې ســـــیلونه
خـــــالي خـــــالي شـــــو زمـــــونږ د کـــــلي ګودرونـــــه[۱۵۵]

او یو بل شاعر داسې وایي:

پـــــــه ګودرونـــــــو او چینـــــــو چـــــــې بـــــــه وو
اوس د منګـــــــو هغـــــــه غوبـــــــل نـــــــه ویـــــــنم[۱۵٦]

کلـه چـې هـر کـلي او کـور تـه د اوبـو نلکـې ورسـېدلې، نـو بیـا ګـودر تـه د تللـو ضرورت پـاتې نـه شـو. د ګـودر خپلـې فایـدې وې او جینکـۍ بـه ګـودر تـه پـه دې خوشـحالېدلې چـې هلتـه بـه یـې لـه نـورو جینکـو سره خـبرې اتـرې کـولې، ګودر تـه تلـل به یو قسم ته د تفریح ذریعه وه.

## خان

خـان او ملـک د پښـتني ټـولنې اهـم جـز وي. دا پـه هـر دور کـې پـه څـه نـه څـه شـکل کـې پـه نظـر راځـي. پـه تېـرو دورونـو کـې هـم د خـان ذکـر او د خـان د کـردار ذکـر

شوی دی. له هغو دورونو سره د موازنې لپاره دلته هم د خان ذکر په دې باب کې لټوو چې پته ولګي چې په مختلفو دورونو کې د خان په کار کردار او حیثیت کې څه ډول بدلون راغلی دی. د خان په باره کې قاسم سرحدي داسې لیکي:

منـــــزری د ځنګـــــل هلتـــــه خـــــان بهـــــادر دی
خـــان زمـــونږ د کـــلي دلتـــه پـــه مـــونږ نـــر دی
پـــه عـــادت کـــې نـــه، خصـــلت کـــې سره یـــو دي
منـــــزری زمـــــونږ د خانـــــه ډېـــــر بهـــــتر دی
منـــــزری چـــــې خېټـــــه ډکـــــه کـــــړي روان شي
زمـــونږ خـــان پـــه ډکـــه خېټـــه کـــې نهـــر دی
منـــــزری چرتـــــه د یـــــخ ســـــوري د لانـــــدې
ځـــان اوده کـــړي بـــس د هـــر څـــه بـــې خـــبر دی
منـــزری پـــه چـــا بـــې وجـــې حملـــه نـــه کـــړي
زمـــونږ خـــان دی چـــې هـــر وخـــت حملـــه اور دی
منـــــــزری د ضـــــــابطو سره پابنـــــــد دی
ضـــابطې دلتـــه د خـــان د خپـــو ټـــوکر دی[۱۵۷]

د سوات په معاشره کې خان او ملک داسې کردارونه دي چې له اول نه په نظر راځي خو ورو ورو د دوی په کار او اختیار کې کمی هم په نظر راځي. په دې دور کې که د خان ذکر راځي خو هومره اهمیت یې نه دی پاتې کوم چې په وړومبو دورونو کې و.

## کسبګر

پراچه، نایي، اینګر، ترکاڼ، جالوان، زرګر او وغیره ته کسبګر ویلی شي.کسبګر دوه قسمه وي، یو قسم کسبګر له پخوا راهیسي د خلکو خدمت په یوه ټوټه زمکه یا په دانو کوي، لکه جالوان، اینګر، نایي، غوبه، پراچه، داروغه، دهوبي، ابو وړی او وغیره. دویم قسم هغه کسبګر دي چې د خلکو خدمت په دانو یا په زمکه نه کوي خو د خدمت په بدله کې نقدې پیسې اخلي، لکه زرګر، تیلي، درزي، ننداف، جولا، ډېګر، مسین ګر، کولال، شاخېل وغیره. ډېګر، ننداف، شاخېل، داروغه، دهوبي، غوبه، ابو وړی او کخی اوس نشته. دغه کسبګرو ته سوشل ګروپس ویل کېږي. دوی له یوې وینې سره تعلق نه لري او د قبیلې لوازمات نه شي پوره کولی او په تعداد کې کم وي نو ځکه د قبیلې په تعریف کې نه

راځي.[۱۵۸] میاګان، پیر زادګان، صاحبزادګان، اخون زادګان او ملایان هم سوشل ګروپس دي خو قبیلې نه دي. هر څوک میا ملا، پیر زاده ، اخون زاده، صاحبزاده او کسبګر جوړیدی شي. د سوات تاریخ د دې خبرې ګواه دی چې دلته ډېر یوسفزي د دوتر په خلاسېدو غېر پښتانه شوي او کسبګر شوي دي. دغسې ډېر غیر یوسفزي په مالدارۍ، په دوتر اغستو او د پښتنو سره په خپلوۍ یوسفزي پښتانه شوي دي. دغه خلک نه یواځې د کورنو او د افرادو په شکل کې پښتانه شوي دي، بلکې لوی لوی خېلونه لکه سیبوجني کې دوه غټ خېلونه، په حسن خېل، نکره دین خېل کې دوه خېلونه او په مامت خېل کې یو خېل غېر یوسفزي وصلي یوسفزي شوي دي.[۱۵۹]

## ترقي پسند ادب

د ریاستي دور د ادب پر ضد د دې دور ادب ترقي پسند دی او د معاشرې د هرې طبقې خبره یې په څه نه څه رنګ کې کړې ده، لکه په دې نظم کې د یوې ماشومې شپونکۍ په باره کې یو شاعر داسې لیکي:

دا وړه اکـــــــه پکـــــــه ناســـــــته شـــــــپونکۍ ده
کـــه ســـاتلې پـــه صـــحرا کـــې چـــا هوســـۍ ده
راتـــــه ښـــــکاري د دې غرونـــــو شـــــهزادګۍ ده
یــــا د باغـــــه شـــــوکولې چـــــا غـــــوټۍ ده
خـــــدای خـــــبر چـــــې دا د کـــــوم بـــــوډا نمســـــۍ ده
د خپـــــــل مـــــــور د ارمـــــــانونو دنیـــــــاګۍ ده
د جهانـــــــه نـــــــا خـــــــبره لا کمکـــــــۍ ده
رڼـــــايي ورځينـــــي خيـــــژي جـــــوړ ســـــپوږمۍ ده
پـــــه دې غرونـــــو کـــــې مـــــې اولیـــــده یـــــواځې
لکـــــه ګـــــل ځانلـــــه ولاړ وي پـــــه صـــــحرا کـــــې
د خپـــــل ژونـــــد د شـــــب و روز نـــــه خـــــبر نـــــه شـــــوه
چـــــې څـــــه کیـــــږي څـــــه روان دي پـــــه دنیـــــا کـــــې
دا دی وخـــــــت د دې د لوبـــــــو خنـــــــداګانو
غـــــم د کـــــور ورتـــــه پـــــه غـــــاړه مجبـــــورۍ کـــــړې
د دې ورځـــــــې د ســـــــبق د مدرســـــــو دي

ترېنه پاتې داخبرې غریبۍ کړې
ډېرې جونه ماشومان په پښتونخوا کې
ژوند د غم او د خوارۍ تېروي داسې
څو به حال وي دا زما د قام د لوڼو
زمانه به یې تر څو زېروي داسې[۱۶۰]

یو بل شاعر په دې هایکو کې د یوې غریبې پېغلې ستړي او سخت ژوند ته داسې اشاره کړې ده:

څاروي دې سر وخوري ورشو ته مه ځه
واورې وریږي ده یخني لېونۍ
یا مې شړۍ واخله ناجوړه به شې[۱۶۱]

د مزدور په باره کې رحیم داسې لیکي:

په دنیا کې که ښکلا ده
که څه حسن او ځلا ده
وداني ده که ښادي ده
که ایجاد که ابادي ده
که زما او ستا ارام دی
یا د ژوند دا ټول نظام دی
کارخانې دي که تعمیر دی
دا نهرونه که بهیر دی
خوراکونه که غلې دي
که کورونه یا محلې دي
که یو ښکلی عمارت دی
یا د هر قسمه راحت دی
د دې ټولو نعمتونو
د دې عیش او عشرتونو
په شا لاس د یو مزدور دی
خو پخپله ډېر مجبور دی[۱۶۲]

د سوات په پښتو ادب کې په ارتقائي انداز مونږ ته پته لګي چې ورو ورو د معاشرتي مسايلو او د عامو خلکو د مسايلو ذکر پکې په نظر راځي. په خصوصي توګه د رياستي دور په ادب کې دا قسمه موضوعات د نشت برابر دي.

## واده

د واده د رسمونو ذکر په وړومبو بابونو کې هم شوی، خو د دې دور په ادب کې هم د واده بعضې رسمونه ياد شوي دي. اول په غوښتانه کې چې د جينۍ پلار يا مور له کومې روپۍ ورکوي هغې ته ګل وايي. له دې نه وروسته د هلک کوروالا به په ګڼه د جينۍ کور ته لاړل او هلته به يې خوړل څښل وکړل، دې ته به يې خوړه ويله. بيا د واده نېټه وټاکلی شي، پخوا به يې "اوړی سېر يا تويانه" او د "جينۍ د سر پيسې" هم اخستې او دې عمل ته به بې "پرېکون" ويلو. پخوا به له واده نه يوه ورځ مخکې د هلک له کور نه د واده سامان لکه کټ، کرسۍ او نور لوښي لرګي به د جينۍ کور ته په دې غرض اوړلی کېدل چې صبا پرې د واده جنج درون ښکاره شي. ياده دې وي چې دا ټول ځيزونه به د هلک کوروالا اخستلي وو. اول اول دلته کې د جهيز او داج هيڅ رواج نه وه خو اوس موجود دی. پخوا به واده په ډولۍ کې اوړی شه، نائي به خپل "جلب" غوښته او د ناوې د رخصتۍ په وخت به د "نغري د برې غاړې" مطالبه کېدله. په ډولۍ پسې به په لارې ډول سرنا غږولی شول. پخوا به د واده په موقعه د چم ګاونډ او کلوېغۍ خلکو د واده کوروالا ته چاي ډوډۍ کوله. نن صبا نکاح يا مخکې شوې وي او يا د واده په ورځ د هلک يا د جينۍ په کور کې وشي. د واده په اوومه ورځ به جينۍ يوې ورځې له د پلار کور ته تلله، دې ته به يې "وومه" ويله او د ځان سره چې به يې د خوراک څه ځيزونه اوړل، نو دې ته به يې "خونی" ويلو. څه ورځې وروستو به جينۍ د خاوند د کور نه د پلار کره تله او هلته به يې يو څو ورځې تېرولې، دې ته به يې "خپه ارته" ويله. د واده نه پس په وړومبي ځل د هلک او جينۍ مېلاوېدلو ته به يې "سپخته" ويله. نن صبا چې کوم بدلون راغلی دی هغه په "پرېکون" کې دی، چې د پرېکون لانجه اوس نشته. البته "د واده نېټه" د دواړو کورنو په مشوره ټاکلی شي، جهيز او داج نن صبا ډېر عام شوی دی.[۱۶۳]

## د هلک په پيدائش خوشحالي

پخوا به د هلک په کېدلو ډمامه کېدله، نايي ته به د خپلو نائکانو خپل خپلوان او

یاران دوستان معلوم وو، نو هغه به د هر چا په دروازه کې ډمامه وهله او دا به یې هم وې چې د فلاني ځوی شوی دی. اوس د هلک په کېدلو څوک ډمامې نه وهي خو که څوک خبر شي نو امبارکۍ له ورشي.[١٦٤]

## د ماشوم سنت

پخوا به د هلک په سنتو هم ښادي کېدله، نایي به ډېر خوشحاله و، ځکه د هغه به څه سامان لکه پیاله، کنډولی، سلور، برستن تولایي او جوړه جامې په لاس ورغلې. د ماشوم د سنت کولو په موقعه به ډمې هم ګډېدې، لکه یو شاعر چې وایي:

واده ســــــنت کـــــې چـــــې بـــــه ډمــــــې راغلــــــې
هغــــــه ربــــــاب، ســــــتار، تمبـــــــل نـــــــه ویــــــنم[١٦٥]

اوس خلک ماشوم په وړوکوالي په هسپتال کې سنت کړي او څوک هډو خبر نه شي.[١٦٦]

## مړی او جنازه

پخوا به د مړي ماښامونه، جمعې، درېمې او تلینونه ډېر په اهتمام سره کېدل، خو اوس دې کې بدلون راغلی دی. خلک د مړو ماښامونه او جمعې نه کوي او له درېمې ورځې نه پس خیرات کوي. د چا د مرګ اعلان په ګرځنده لاوډ سپیکرو او یا په جماعتونو کې وشي، بیا د کلي خلک خپله چاري، کشۍ او بېلچه واخلي او قبر وکني او جنازه وشي، پخوا به په جنازه کې ډېر کم خلک ولاړ وو او نور به شاته ولاړ وو او جنازه به یې نه کوله خو نن صبا ټول خلک په جنازه ودرېږي.[١٦٧] بعضې خلک له جنازې نه اول یا وروسته اسقاط هم ورکوي. دا اسقاط په حاضره جمع کې هر سړي ته د دېرشو روپو نه واخله تر سلو روپو پورې ورکوي. تر درېو ورځو پورې د چم ګاونډ خلک د غم کوروالا ته ډوډۍ کوي او د هغوی د ټولو مېلمنو انتظام د چم ګاونډ خلک پخپله کوي.[١٦٨] اول به یې په اسقاط کې ګوړه او صابن هم ورکوه.

## جامه پېزار

په ژوند د نوي دور د ترقۍ اثرات د خلکو په جامه پېزار کې هم په نظر راځي، لکه څنګه چې یې په دې شعرونو کې اظهار شوی دی:

د پرتـــــــــــوګ سره ټـــــــــايي ترلـــــــــــې ګرځـــــــــــي
مـــــا پــــــه ســـــوات کـــــې داســـــې خلـــــق اوليـــــد يـــــاره
داســـــــــــې وايـــــــــــي دا يـــــــــــې شـــــــــــغل د "والي" وه
ځکـــــــه دوی پـــــــرې عاشـــــــقان شـــــــو بـــــــې اختيـــــــاره[۱۶۹]

پخوا به مشرانو سپين لټي (پټکی) ترلو او پښې به يې په پښو کولې او د هلکانو به ټيله دارې يا ساده ټوپۍ پر سر وې، خو اوس دغه درې واړه څيزونه په نظر نه راځي، زياتره خلک سرتور ګرځي او د مشرانو نرۍ ټوپۍ پر سروي او په ژمي کې ډېر کم خلک پکول پر سرکوي. پټکی يا دستار د پښتون د شان يوه نخښه ده، دا د مشرۍ لپاره د علامت په توګه هم استعماليږي. خوشحال خان هم ويلي دي:

چـــــــــــې دســـــــــــتار تـــــــــــړي هـــــــــــزار دي
د دســـــــــــتار ســـــــــــړي پـــــــــــه شـــــــــــمار دي

پټکی د علميت يوه نخښه هم پاتې شوې، خو د وخت په تېرېدو سره خلکو پټکی هسې پر سر يوې چيرړې ترلو ته ووې. او رنګ د پټکي وقار ختم شه. محمد ګل منصور په دې هايکو کې پټکی داسې ياد کړی دی:

هســـــــــــې پــــــــــه سر بانــــــــــدې چــــــــــيرړه مــــــــــه تــــــــــړه
کــــــــــه دې "پټکـــــــــی" خـــــــــوښ وي نــــــــــو دومــــــــــره وهــــــــــه
چـــــــــــې دې بالښـــــــــــت تـــــــــــه ضرورت نـــــــــــه راځـــــــــــي[۱۷۰]

په اوړي د څرمنو سپکې څپلۍ او غريبان د پلاسټکو چپل يا څپلۍ او په ژمي کې د څرمنې يا د پلاسټکو بوټان د جرابو سره په خپو کوي. په ژمي کې زياتره خلک څادر، بلاوز، جرسي او کوټ اغوندي. د شړۍ رواج ختم شوی دی.[۱۷۱]

## خوراک

پخوا د سوات د خلکو زيات خوراک وريژې وې ځکه خو دا متل مشهور دی چې " سواتی زوړ شي خو په وريژو موړ نه شي". له دې نه علاوه به يې د اوربشو ډوډۍ هم پخولې، د شوملو مستو نه علاوه به په اينګولو کې د باتينګڼو کړي او سابه وو، اوس ټول خلک سحر چای ډوډۍ خوري. غريبانان د بېګا نه پاتې د جوارو يا د غنمو سره ډوډۍ خوري او مالداران په سحر کې پراټه خوري. غرمه ټول خلک زياتره د غنمو ډوډۍ خوري او

ورسره سبزي، غوښه یا بل څه اینگولی وي. ماښام د سیند د غاړې خلک زیاتره وریژې پخوي او د درو خلک د غنمو یا د ژوارو ډوډۍ خوري. وربشې خو اوس د سره څوک خوري نه او د جوارو د ډوډۍ رواج هم کم شوی دی. د ښاروو د کموالي په وجه شوملې ماسته هم کم شوي دي خو د دې په ځای خلک سبزیانې، غوښې او نورو اینگولي خوري. د چای استعمال ډېر عام دی.[۱۷۲] له دې نه علاوه شوملې، پیاز، گوړه، پیتې، دال او نور څیزونه هم د سوات د خلکو په خوراک کې شامل دي او په دې لاندینو شعرونو کې یې ذکر شوی دی.

سره روټۍ خوراک شوملو، پیازو او گوړې سره
هغه میرگاټ، هغه چیندخ، هغه گنډل نه وینم[۱۷۳]

پیتي او دال په دې شعر کې ذکر شوي دي:

هغه پیتي او دال په جمع چې خوړل به مونږه
هغه روټۍ اوس شراکت سره خوړل نه وینم[۱۷٤]

د سوات په ثقافتي ارتقا کې د خوراکونو ارتقايي سفر هم شامل دی او دلته هم مختلف قسمه خوراکونه په هوټلو کې پخولی شي، خو په دې شعرونو او حوالو کې چې کوم خوراکونه ذکر شول دا د عامو خلکو خوراکونه دي او دا د سوات خپل کلتوري خوراکونه دي.

## د مهیانو ښکار

د سوات سیند او ورسره خوا او شا ته واړه واړه خوړونه د مهیانو د ښکار د پاره ډېر مشهور دي، خو اوس خلکو د مهیانو ښکار په غیر قانوني طریقه شروع کړی دی او مهیانو ته د بجلۍ کرنټونه ورکوي او په دې طریقه مهیان ډېر کم شوي دي. د مهیانو په ښکار کې د ظلم زیاتي طرف ته د خلکو توجه راگرځولو باره کې هم لیکوالانو کوشش کړی دی. په دې حقله یوه کتابچه "ما ته غوږ شئ"[۱۷۵] په نوم هم چاپ شوې، چې خلکو ته پکې د مهیانو مهیانو د ښکار په باره کې د بیدارۍ خبرې شوي دي.

## فصلونه

د سوات مشهور فصلونه غنم، جوار او وریژې دي. نن صبا د اوبو لاندې زیاتره او څه نه څه د وچوبې زمکې هم د هر قسمه مېوه دارو ونو بوټو نه ډکې دي. هر ځای د مڼو، املوکو، الوچو، خوبانو او شلتالانو باغونه دي. له دې نه علاوه په غیر مېوه دارو ونو کې

سپېردار، شنډۍ، کیکر او ګیري وغیره شامل دي. د دې باغونو له وجې نه د شولو، جوارو او غنمو پیداوار کم شوی دی. په سبزو کې پیاز، ټماټر، اوړه، تور باتینګڼ،بېنډۍ، مولۍ، الو، ټېپر، مټر، کدوان، کولت، او توری کرېلې هم کري. دلته به په یو وخت کې خلکو ګنې او مالوچ هم کرل. مالوچ به یې په اشر راټولول او د خلکو کره به څرخې لګېدلې وې په هغې به یې ترې تارونه جوړول او بیا به جولاګانو خلکو ته د ضرورت نور څیزونه ترې جوړول. شولې به خلکو ټکولې خو اوس د شولو لپاره مشینان را اووتل، ګنې او مالوچ اوس په سوات کې نشته.[۱۷۶] د سوات په تاریخ کې دا دور هم ډېر اهمیت لري ځکه چې په دې دور کې د سوات خلک له ډېرو ستونزو سره مخامخ شول او سوات د ډېرو وجوهاتو په بنا د ټولې نړۍ د توجه مرکز وګرځېده.

## د دې باب خلاصه

د یویشتمې پېړۍ په شروع کېدو چې په نړیوال سیاست، مواصلاتو، ساینس ټیکنالوجي او نورو حالاتو کې کوم بدلون راغی نو د دغه بدلون څه نه څه اثرات د سوات په پښتو ادب او ثقافت هم پرېوتل.

په دې دور کې د سوات په پښتو ادب کې افسانې او ناولونه د تېر شوو دورونو په نسبت زیات لیکل شوي، خو د ډرامې صنف په دې دور کې هیڅ ترقي نه ده کړې. د ادبي تحقیق په لړ کې د شاعرانو ، ادیبانو او د صوفیانو او ولیانو تذکرې لیکل شوي دي. د ماشومانو صوتونه او د ماشومانو لوبې هم په ادب کې څه نه څه ښکاري. په ادب کې اسلامي موضوعات دومره ډېر نه دي البته د نعتونو مجموعې کافي لیکل شوي او په ځینو مذهبي موضوعاتو ځانله جدا کتابونه لیکل شوي دي.

په دې دور کې صحافتي ادب هم ډېر پرمختګ کړی او د پښتو نوې نوې رسالې مینځ ته راغلې دي. په ادبي اصنافو کې غزل، نظم، ازاد نظم، چاربیته، سندره، لوبه، مرثیه او نور لیکل شوي دي. نوی جاپاني صنف "هایکو" چې پښتو ته راغلی، په دې دور کې یې په سوات کې هم ترقي کړې ده. د فرانسوي ژبې یو نوی صنف "درېواله" په دې دور کې په وړومبي ځل په پښتو ادب کې متعارف شوی دی. د دې دور پر ادب د انګرېزۍ ژبې او ادب او د انفارمېشن ټیکنالوجي ښکاره اثرات پرېوتلي دي. د مغربي ملکونو اثرات او د جدیدیت اثرات په ادب او کلتور ښکاره شوي دي. پښتو، پښتونولي، پښتو ژبه، له سوات او پښتونخوا سره مینه هم په دې دور کې ښکارېږي.

د سوات د ښځینه سندرغاړو ذکر په ادب کې موندل کېږي. د یوولسم ستمبر او د افغان جنګ اثرات هم د سوات پر ادب شوي دي. په ادب کې د سوات پر خرابو حالاتو ویر وینا شوې او د امن په ضرورت زور ورکړی شوی دی. د دې دور په ادب کې د کشمیر او فلسطین په باره کې هم شاعرانو او لیکوالانو د خپلو خیالاتو اظهار کړی دی، لکه د تېر دور په شان په دې دور کې هم له سیاست او سیاسي لیډرانو نه د نفرت اظهار شوی دی او د انقلاب چغه وهل شوې ده.

په توهماتو کې د بد نظر او کوډو تعویذونو ذکر شوی دی. په ټولنه د ماډرنیزم او د ټي وي او ډش اثراتو او په خصوصي توګه د ښځو په ازاد ګرځېدو او د هغوی په فېشن ډېرې نیوکې شوي دي. د ټولنې د مختلفو طبقو، یعنې د خان، مزدور او کسبګر ذکر په ادب کې

شوی دی. د غم ښادۍ رسم و رواج، خوراک، فصلونه، جامه پيزار، کلي کلوېغۍ، اشر غوبل، د مېلو او نورو بحث هم د دې دور د ادب موضوعات دي. په دې دور کې د تېرو دورونو په نسبت د واده په رسمونو کې کافي بدلون ښکاري، لنډه خبره دا چې د دې دور په تهذيب او ثقافت کې چې څومره بدلون يا ترقي راغلې ده نو هغه تر ډېره حده په ادب کې ښکارېږي.

# حوالې

[1] Sultan-i-Rome, *Crises and Reconciliation in Swat*, Pakistaniaat: A Journal of Pakistan Studies, Vol. ۳, No. ۱ (۲۰۱۱), p. ٦۰ available at www.Pakistaniaat.org/article/viewarticle/۷۹٦۹

[2] Sultan-i-Rome, *Swat A Critical Analysis*, New Delhi, Institute of Peace and Conflict Studies New Delhi India, IPCS Research Papers ۱۸, January ۲۰۰۹, p.۲.

[3] Ibid., p.۱۱.

[4] Ibid., p. ۸.

[5] شبنم، محمد ابراهیم خان. تغمې (افسانې)، ۲۰۰۲.

[6] حکیمزے، بدرالحکیم. دا مزے غوځول غواړي، ۲۰۰۵.

[7] لائق، لائق زاده. شلیدلي تارونه، پېښور، ډایریکټوریټ آف کلچر خیبر پښتونخوا، ۲۰۱۲.

[8] لائق، لائق زاده..ماته آئینه (د افسانو مجموعه)، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۹.

[9] خان، پائنده محمد. الله او بهګوان (ناول)، پېښور، باګرام پښتو ادبي جرګه، ۲۰۰۲.

[10] رحیم، رحیم شاه. سکندر اعظم، مینګوره، افغان اکېډمي، ۲۰۰۵.

[11] شبنم، محمد ابراهیم. ګلالۍ (ناول)،پېښور، دانش خپرندویه ټولنه، ۲۰۰۵.

[12] روغانے، عبدالرّحیم. کوربانه خیالونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۱۰، ۳ مخ.

[13] د یوسفزو ګلونه، دېولی، یوسفزۍ پښتو ادبي ټولنه دېولۍ سوات، ۲۰۱۰.

[14] حیدر، غلام حیدر. د صحرا ونه سعودي عرب، پښتو ادبي غورځنګ الریاض، ۲۰۰۴.

[15] منصور، محمد ګل. زما د لرې وطن یاره، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۰۸.

[16] د ایلم ګلونه، بریکوټ، ایلم پښتو ادبي ټولنه بریکوټ سوات، ۲۰۰۴.

[17] افغاني، ابوالعطاء مولوي عبدالبصیر نعماني حنفي. د تصوّف ځلانده ستوري خزینةالاولیاء، مینګوره، حق میډیا سروسز، ۲۰۰۲.

[18] قیس، محمد حنیف. نوي نعتونه، پېښور، زېب آرټ پبلشرز.

[19] لائق، لائق زاده. جلوې (نعتیه مجموعه)، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۴.

[20] لائق، لائق زاده. ائے ګنبد خضرٰی، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۹.

[21] لائق ، لائق زاده. رازونیاز (نعتیه مجموعه)، پېښور، میلاد هاوس، ۲۰۱۱.

[22] فاني، عبدالجمیل. و رفعنا لک ذکرک، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۱۳.

[23] طالب، عزیزالرّحمان عزیز. ګډ وډ لعلونه، ۲۰۱۳.

[24] طائر، محمد نواز. پروفېسر، په پښتو کښې د ماشومانو سندرې او صوتونه، پېښور، پښتو اکیډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹۸۸، ۱۷مخ.

[25] یوسفزے،ډاکټر دیدار. زرغون زېري (د ماشو مانو نظمونه) ، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۰۱.

[26] خاکي، شاه وزیر خان. د سوات لرغونې لوبې، مشموله، درے میاشتنی مینه، سوات، وړومبے جلد، دوېمه شماره، (کال ۲۰۰۴)، ۷۲ مخ.

[27] حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۸۴مخ.

[28] نادان، محمد اقبال. تیندکونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز، جون ۲۰۰٦، ۲۷مخ.

[29] همدغه اثر،۲۸ مخ.

[۳۰]همدغه اثر،۲۸ مخ.

[31] Yousafzai, Rafiullah, Journalism in Swat, (M.A. Thesis), Department of Journalism and Mass Communication, University of Peshawar, Session: ۲۰۰۲-۲۰۰۳, p ٤٠

[۳۲]ديناخيل، محمد علي. سوات کی ادبی تنظیمیں، مشموله، روزنامه چاند، سوات، جلد: ۱۱، شماره: ۱، (۲٦ دسمبر ۲۰۱۳)

[۳۳]دېولی، ابراهیم. د مورنو ژبو عالمي ورځ پښتو او پښتانه، مسموله، درېِ میاشتنی مینه، سوات، جلد: ۱، ګڼه: ۳ (مارچ ۲۰۰۵)، ۸۱ مخ.

[۳٤]ګلرنګزے، حمید اقبال. پاڅون او خلاصون، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۱۲، ۱۹۸مخ.

[۳۵]رضا، محمد رضا خان. ژوند په رېګزار، ۲۰۰۳، ۱۴۱مخ.

[۳٦]عظیم، فضل عظیم. د سوات د سیمې زدوکونکو ماشومانو ته (نظم) مشموله، درېِ میاشتنی مینه، سوات، جلد: ۱، شماره: ۱، (اکتوبر، نومبر، دسمبر ۲۰۰۳)، ۴۵مخ.

[۳۷]قیس، حنیف. بله شونتیِ. مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۱۰۲مخ.

[۳۸]یوسفزے، ډاکټر دیدار. تاله مېدان. مینګوره، ګرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ۸۴ مخ.

[۳۹]منصور، محمد ګل. مونږ خو دواړه لېوني یو، ۲۰۰٦، ۳۸مخ.

[٤۰]ثاقب، محمد الیاس. د منر په څیره، کبل سوات، جان کتاب کور، ۲۰۱۲، ۱۳۰مخ.

[٤۱] اختر، اختر حسین. ژوندي سازونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۵۸ مخ.

[٤۲]همدغه اثر، ۵۲ مخ.

[٤۳]همدغه اثر،۸٦ مخ.

[٤٤]همدغه اثر،۱۲۳ مخ.

[٤۵] پیرخېل، ډاکټر امیر فیاض او فضل رازق شهاب. یو طرز دوه خیالونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷ ، ۳۰ مخ.

[٤٦]همدغه اثر، ۱۲۸مخ.

[٤۷]اختر، اختر حسین. ژوندي سازونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۴۷مخ.

[٤۸]منصور، محمد ګل. اوس بنګړي چاله واخلم، ۲۰۱۰، ۴۸مخ.

[٤۹]شاه، سید افضل. سي اېل آئي (نظم)، مشموله، درېِ میاشتنی مینه، سوات، جلد: ۱، ګڼه: ۴، (جون ۲۰۰۵)، ۴۱مخ.

[۵۰]ساجد، شیرزاده. چغه، فروری ۲۰۰۹، ٦۱مخ.

[۵۱]خان، شېر عالم. انسان د سفر په لاره، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۱۰۲، ۱۰۳ مخونه.

[۵۲]فضل، فضل خالق. پرخه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۳، ۱۷،۱۸ مخونه.

[۵۳]هلالي، مولوي محمد اکرم. د منزل نخښې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۵۰ مخ.

[۵٤]برکت، برکت علي. مات وزرونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷،۱٦۴، ۱٦۵ مخونه.

[۵۵]ثاقب، محمد الیاس. د منر په څیره، کبل سوات، جان کتاب کور، ۲۰۱۲، ۱۰مخ.

[۵٦]خاکي، شاه وزیر خان. په ټپه کښې د سترګو هر اړخیز جاج، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۱۲، ۱۸ مخ.

[۵۷]همدغه اثر، ۲۷ مخ.

[۵۸]لائق، لائق زاده. لېونتوب، پېښور، دانش کتابتون، ۲۰۰۵، ۱۲۴، ۱۲۵ مخونه.
[۵۹]شموزے، محمد نذیر. د احساس اوازونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۱۰، ۱۲۷مخ.
[٦۰]ننګیالے، جمعه دوست. ننګیالے، ۲۰۰٦، ۵۸ مخ.
[٦۱]حسرت، طاهر شاه. دیوان حسرت، مینګوره، شعېب سنز پبلشرزاينډ بکسیلرز، ۲۰۰۴، ۳٦مخ.
[٦۲]شبنم، محمد ابراهیم خان. شبنم په ګلو، پېښور، دانش خپرندويه ټولنه، مئ ۲۰۰۴، ۷ مخ.
[٦۳] بریالے، حکیم الله. زرغون فکرونه، ۲۰۰۵، ٦۹مخ.
[٦۴]ګل رنګزی، حمید اقبال. نوے ساز نوي نغمه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۱۹۹۵، ٦۰مخ.
[٦۵]هلالي، مولوي محمد اکرم. د منزل نخښې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۸۵ مخ.
[٦٦]جمیل احمد، خادم. (پېشند ګلو)، مشموله د منزل نخښې، مصنف مولوي محمد اکرم هلالي، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۱۲مخ.
[٦۷]هلالي، مولوي محمد اکرم. د منزل نخښې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۱۷۹مخ.
[٦۸]لائق، لائق زاده. لېونتوب، پېښور، دانش کتابتون، ۲۰۰۵، ۳۱ مخ.
[٦۹]یوسفزے، ډاکټر دیدار. تاله مېدان. مینګوره، ګرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ۳۸ مخ.
[۷۰]محمود حاجی. چنار چې ګل شي، [۲۰۰٦]، ۳۵ مخ.
[۷۱]دولت خېل، بخت زر درياب. موج، سعودي عرب، پښتو ادبي رڼا الرّیاض، ۲۰۱۳، ۱۳٦مخ.
[۷۲]یوسفزے، محمد ابراهیم شبنم. د اشاړي ګل، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۱۷۹مخ.
[۷۳]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۷۹، ۲۸۰ مخونه.
[۷۴]لائق، لائق زاده. فنکار نه مري، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۱۱، ۲۰۹،۲۱۰ مخونه.
[۷۵]همدغه اثر ۲۵۵- ۲۵۹ مخونه.
[۷٦]صدیقي، سیف الملوک. زۀ انتظار کومه ستا د سترګو، کبل، جان کتاب کور، ۲۰۱۱، ۲۷، ۲۸ مخونه.
[۷۷]یوسفزے، ډاکټر دیدار. تاله مېدان. مینګوره، ګرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ٦۰ مخ.
[۷۸]رحیم، رحیم شاه. زلزلې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۲۵ مخ.
[۷۹]شموزے، محمد نذیر. د احساس اوازونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۱۰، ۹۸،۹۹ مخونه.
[۸۰]همدغه اثر، ۱۷۲مخ.
[۸۱]پیرخېل، ډاکټر امیر فیاض. ژوندي خیالونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰٦، ۴۲ مخ.
[۸۲]یوسفزے، سالار. په ساندو کښې سندرې، ۲۰۰۳، ۹۰ مخ.
[۸۳]خاکي، شاه وزیر خان. په ټپه کښې د سترګو هر اړخیز جاج، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۱۲، ۱۹مخ.
[۸۴]یوسفزے، ډاکټر دیدار. تاله میدان. مینګوره، ګرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ۱۲٦ مخ.
[۸۵]دلګیر، شیر بهادرخان. خوره دېوال، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز، ۲۰۰۷، ۱۳۲ مخ.
[۸٦]شموزے، محمد نذیر. د احساس اوازونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز،۲۰۱۰، ۲۰۸، ۲۰۹ مخونه.
[۸۷]یوسفزے، ډاکټر دیدار. تاله مېدان. مینګوره، ګرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ۱۱۵، ۱۱٦ مخونه.
[۸۸]رحیم، رحیم شاه. زلزلې، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ، ۳۸، ۳۹ مخونه.
[۸۹]همدغه اثر، ۹۸مخ.

[۹۰]همدغه اثر، ۱۱۸مخ.

[۹۱]بریالے، حکیم الله. زرغون فکرونه، ۲۰۰۵، ۱۲ مخ.

[۹۲]همدغه اثر، ۲۵ مخ.

[۹۳]قیس، حنیف. بله شونتې. مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۳۳مخ.

[۹۴]رحیم، رحیم شاه. سوات نامه جواب نامه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۰٦، ۲۳ مخ.

[۹۵]همدغه اثر، ۲۴ مخ.

[۹٦]صابر، صابر احمد. سپین رښتیا، مینگوره، شعیب سنزپبلشرز اینډ بلسیلرز،۲۰۱۲، ۲۱۸ مخ.

[۹۷]همدغه اثر، ۲۲۰ مخ.

[۹۸]ساجد، شیرزاده. چغه، فروری ۲۰۰۹، ۵۲ مخ.

[۹۹]ننگیالے، جمعه دوست. سوات پرهر پرهر، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز ، جنوری ۲۰۱۰، ۱۲مخ.

[۱۰۰]همدغه اثر، ۱۴مخ.

[۱۰۱] ظاهر، شهریار. تا نۀ وې چې گل راوړه، تاڼه، تاڼه ادبي ټولنه، ۲۰۱۲، ۲۵، ۲٦ مخ.

[۱۰۲]دولت خېل، بخت زر دریاب. موج، سعودي عرب، پښتو ادبي رڼا الرّیاض، ۲۰۱۳، ۱۷۰مخ.

[۱۰۳]ثاقب، محمد الیاس. د منر په څیره، کبل سوات، جان کتاب کور، ۲۰۱۲، ۱۳۴، ۱۳۵ مخونه.

[۱۰۴]منصور، محمد گل. اوس بنگړي چاله واخلم، ۲۰۱۰، ۸۴، ۸۵ مخونه.

[۱۰۵]همدغه اثر، ۹۷، ۹۸ مخونه.

[۱۰٦]کاکا خېل، سید محمدتقویم الحق. (مقدّمه)، مخزن، مصنّف: اخون درویزه، پېښور، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي، ۱۹٦۹/۱۹۸۷،ل مخ.

[۱۰۷]رضا، محمد رضا خان. سواته چا هیڅ اونۀ وې، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۹، ۲۳، ۲۴ مخونه.

[۱۰۸]ننگیالے، جمعه دوست. سوات پرهر پرهر، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز ، جنوری ۲۰۱۰، ۱۳مخ.

[۱۰۹]منصور، محمد گل. اوس بنگړي چاله واخلم، ۲۰۱۰، ٦٦مخ.

[۱۱۰] نادان، محمد اقبال. سترے ژوند، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۱۳، ۱۵۷- ۱۵۹ مخونه.

[۱۱۱]برکت، برکت علي. مات وزرونه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۲۹٦مخ.

[۱۱۲]دولت خېل، بخت زر دریاب، موج، سعودي عرب، پښتو ادبي رڼا الرّیاض، ۲۰۱۳، ۱۲۳مخ.

[۱۱۳]یوسفزے، ضیاءالدّین. امن ټینگ ساتل جهاد دے (نظم)، مشموله، درې میاشتنی مینه، سوات، جلد: ۲، گڼه: ۱ (اپرېل ـ جون ۲۰۰۷)، ۹۸مخ.

[۱۱۴]دولت خېل، بخت زر دریاب. موج، سعودي عرب، پښتو ادبي رڼا الرّیاض، ۲۰۱۳، ۱٦۳مخ.

[۱۱۵]سرحدي، قاسم. زېړون، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۹، ۱۴۷مخ.

[۱۱٦]قیس، حنیف. بله شونتې. مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۴۱مخ.

[۱۱۷]همدغه اثر، ۴۳مخ.

[۱۱۸]بریکوټي، حاجي محمد ابراهیم. سرې سکروټې، کراچی، سوات پښتو ادبي گلونه، ۲۰۱۲، ۱۵۲مخ.

[۱۱۹]همدغه اثر،۱۵۴مخ.

[۱۲۰]همدغه اثر، ۱۵٦مخ.

[۱۲۱]برکت، برکت علي. مات وزرونه، مینگوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۲۴۴مخ.

[۱۲۲]صابر، صابر احمد. سپين رښتيا، مينگوره، شعېب سنزپبلشرز اينډ بلسيلرز،۲۰۱۲، ۱٦۰مخ.

[۱۲۳]همدغه اثر، ۱٦۸مخ.

[۱۲٤]رحيم، رحيم شاه. زلزلې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۷، ۱۰۸مخ.

[۱۲٥]مخلص، عبدالقهار. د حق چغه، پېښور، يونيورسټي پبلشرز، ۲۰۰۷، ۳٥۷مخ.

[۱۲٦]رحيم، رحيم شاه. زلزلې، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۷، ٥۲،٥۳ مخ.

[۱۲۷]قيس، حنيف. بله شونټې. مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز،۲۰۰۷، ۲۳مخ.

[۱۲۸]شموزے، محمد نذير. د احساس اوازونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز،۲۰۱۰، ۲٦۷مخ.

[۱۲۹]پيرخېل، ډاکټر امير فياض. ژوندي خيالونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰٦، ۲۰، ۲۱مخونه.

[۱۳۰]همدغه اثر، ٤٦مخ.

[۱۳۱]همدغه اثر، ٥۸ مخ.

[۱۳۲]همدغه اثر، ۹٥مخ.

[۱۳۳]کسکر، سکندر حيات. گله گرے، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۹، ۹مخ.

[۱۳٤]خاکي، شاه وزير خان. په ټپه کښې د سترگو هر اړخيز جاج، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۱۲، ۳۰مخ.

[۱۳٥]لائق، لائق زاده. لېونتوب، پېښور، دانش کتابتون، ۲۰۰٥، ۱٥٥، ۱٥٦ مخونه.

[۱۳٦]بريالے، حکيم الله. زرغون فکرونه، ۲۰۰٥، ٤۲ مخ.

[۱۳۷]روښان، فضل محمود. سره پښته په شنو جامو کښې، مينگوره، گرافکس ورلډ، ۲۰۰۷.

[۱۳۸]يوسفزے، ډاکټر ديدار. تاله ميدان. مينگوره، گرافکس ورلډ، ۲۰۰۲، ۱٦مخ.

[۱۳۹]منير، تاج منير. ژوندے احساس، مينگوره، حق ميډيا سروسز، ۲۰۰۲، ٦۱مخ.

[۱٤۰]سرحدي، قاسم. زېږون، مينگوره، شعيب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۹، ۲۰۱-۲۱۱ مخونه.

[۱٤۱]ببگم، مختيار. د ارمان چغه، ۱٤مخ.

[۱٤۲]همدغه اثر، ۱۱مخ.

[۱٤۳]شاهين، عبداللّطيف. اوگوره ته ماته ستا نظر کښې څنگه ښکارم، کبل، جان کتاب کور، ۲۰۱۱، ۱۰۳، ۱۰٤ مخونه.

[۱٤٤]قيس، حنيف. بله شونټې. مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز،۲۰۰۷، ٥۹ مخ.

[۱٤٥]اسلامپوري، مولانا امير رحمان قادري. د ملغلرو کان (ديوان امير رحمان)، اسلام پور سوات، حاجي محمد ظاهر جيولرز اينډ سنز، ۲۰۰٦، ۱٤۷مخ.

[۱٤٦]فضل، فضل خالق. پرخه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰۳، ۲٥، ۲٦ مخونه.

[۱٤۷]امير نواب، قاري. د وخت چغه (انقلابي نظمونه)، ۲۰۰٤، ۸ مخ.

[۱٤۸]همدغه اثر، ۲٦مخ.

[۱٤۹]شموزے، محمد نذير. د احساس اوازونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز،۲۰۱۰، ۱٤٥، ۱٤٦ مخونه.

[۱٥۰]پيرخېل، ډاکټر امير فياض. ژوندي خيالونه، مينگوره، شعېب سنز پبلشرز اينډ بکسيلرز، ۲۰۰٦، ۷٦ مخ.

[۱٥۱]لائق، لائق زاده. تهٔ به ما يادوې، پېښور، د پښتونخوا د پوهنې دېره، ۲۰۱۲، ۱۷٥مخ.

[۱٥۲]حکيمزے، وکيل، د بر سوات تاريخ نسلي سياسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۸۲مخ.

[۱٥۳]حکيمزے، وکيل. دغه زمونږ کلے دے، ۲۰۰٤، ۱٥۸مخ.

[۱۵٤]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۸۳مخ.
[۱۵۵]دلګیر، شیر بهادرخان. خوره دېوال، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز، ۱۳۵،۲۰۰۷ مخ.
[۱۵٦]نادان، محمد اقبال. تیندکونه، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز، جون ۲۰۰٦، ۲٦ مخ.
[۱۵۷]سرحدي، قاسم. زېړون، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۹، ۱۲٦مخ.
[۱۵۸]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۱۸۲مخ.
[۱۵۹]همدغه اثر، ۱۸۳مخ.
[۱٦۰]رحیم، رحیم شاه. زلزلې، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز، ۲۰۰۷، ۱۰۳، ۱۰۴مخ.
[۱٦۱]قیس، حنیف. بله شونډې. مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۰۷، ۹۱مخ.
[۱٦۲]رحیم، رحیم شاه. زلزلې، ۴۸،۴۹ مخونه.
[۱٦۳]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۵۷- ۲٦۲ مخونه.
[۱٦٤]همدغه اثر، ۲٦۴مخ.
[۱٦۵]نادان، محمد اقبال. تیندکونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز، جون ۲۰۰٦، ۲۷ مخ.
[۱٦٦]حکیمزے، وکیل، د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، مخ.
[۱٦۷]همدغه اثر، ۲٦۷- ۲٦۹ مخونه.
[۱٦۸]دیناخېل، محمد علي. د سوات د غرئیزو علاقو د غم رسم و رواج، مشموله، درې میاشتیني مشال، تخت بهائي، جلد: ٦، ګڼه: ۱ (مئي جون جولائي ۲۰۱۲)، ۴۸مخ.
[۱٦۹]شموزے، محمد نذیر. مینه او غمونه، مینګوره، شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز،۲۰۱۲، ۱۸۸مخ.
[۱۷۰]منصور، محمد ګل. اوس بنګړي چاله واخلم، ۲۰۱۰، ۱۲۵مخ.
[۱۷۱]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۵٦مخ.
[۱۷۲]همدغه اثر،۲۷۰، ۲۷۱ مخونه.
[۱۷۳]نادان، محمد اقبال. تیندکونه، مینګوره، شعېب سنز پبلشرز، جون ۲۰۰٦، ۲۸مخ.
[۱۷٤]همدغه اثر، ۲۸مخ.
[۱۷۵]یوسفزے، ضیاءالدّین. ماته غوړ شئ، سوات، پرائېوېټ سکول مینېجمنټ ایسوسي اېشن، ۲۰۰۳.
[۱۷٦]حکیمزے، وکیل. د بر سوات تاریخ نسلي سیاسي او سماجي جوړښت، ۲۰۰۷، ۲۷۳، ۲۷۴ مخونه.

# اتم باب

## خلاصه

په تاریخي دستاویزاتو کې له ټولو نه اول د سوات ذکر یو یوناني تاریخپوه اریان (Arrian) کړی دی. د چین یو سیلاني هیون سانګ سوات د u-chang-na او Udyana په نوم یاد کړی دی. په رګ وید کې سوات د سواستو په نوم یاد شوی دی. په ۳۲۷ ق ـ م کې سکندر اعظم پر سوات حمله کړې وه. له سکندر نه وړاندې راجه ارنس په ۳۳۳ قبل مسیح کې د سوات حاکم و. د یونانیانو له زوال نه بعد په ۳۲۱ ق. م کې دلته چندر ګپت موریه په اقتدار کې راغی. د اشوکا په دور کې بدهـ مت سوات ته راغی او ښه ترقي یې وکړه. اشوکا د چندر ګپت موریه لمسی و، فاهیان په ۴۰۳ عیسوي کې په سوات کې د بدهـ مت د عروج ذکر کړی، خو په ۶۳۰ عیسوي کې چې کله هیون سانګ راغلی، نو بدهـ مت بیا په زوال و. د منځنۍ اسیا یوې کډوالې قبیلې کشان هم په سوات کې حکومت کړی دی. په ۷۴۵ عیسوي کې سوات له ترکي شاهي سره تړل شوی و، له دې نه وروسته په سوات کې د هندو شاهي دور و، چې د محمود غزنوي له حملو سره پای ته ورسېد او ورسره دلته په ۱۰۰۲-۱۰۰۱کې د اسلام مذهب هم راغی.

له دې نه پته ولګېده چې سوات د مختلفو تهذیبونو کور پاتې شوی، چې پکې مشهور تهذیبونه یوناني، هندو تهذیب، بدهـ تهذیب،ایراني تهذیب، اسلامي تهذیب او نور دي. لکه څنګه چې وړاندې وویل شول چې د محمود غزنوي لښکر په ۱۰۰۲-۱۰۰۱ کې پر سوات حمله وکړه او دلته یې د اسلام بیرغ ښخ کړ او د سوات زاړه اوسېدونکي ګوجر او کوهستاني یې د سوات غرونو ته په تېښته مجبور کړل. د محمود غزنوي له لښکر سره دلته څه افغان قبیلې راغلې او په سوات کې ابادې شوې. دا سوات ته د پښتنو اولنی معلوم راتګ دی، په دې قبیلو کې له نورو نه علاوه دله زاک او دهګان مهمې قبیلې وې. په دې

وخت کې چې په سوات کومو حکمرانانو حکومت کولو هغوی په تاریخ کې په جهانګیري حکمرانانو یاد شوي دي. په دوی کې اخري بادشاه سلطان اوېس و. د سلطان اوېس په دور کې د شپاړسمې پېړۍ په اول کې یوسفزو پر سوات قبضه وکړه. په دغه وخت کې د سوات اوسېدونکي، یعنې دله زاک او دهګان (سواتي) زیاتره د سوات له میداني علاقو نه د سوات غرونو ته او څه د الایي، بټګرام، هزارې او نورو علاقو طرف ته لاړل. په سوات کې د پښتو ادب تحریري نخښې نښانې دلته د یوسفزو له راتګ نه وروسته په لاس راځي. د روښاني تحریک او د بایزید انصاري د کتاب خیرالبیان پر ضد اخون دروېزه خپل کتاب"مخزن الاسلام" ولیکه. د دې کتاب دوباره ترتیب او تدوین د اخون دروېزه اولاد په سوات کې کړی دی. د دې کتاب له لیکلو سره په سوات کې د پښتو ادب دروازه پرانستل شوه او دلته د علم او ادب یوه سلسله شروع شوه. پر سوات د یوسفزو له قبضې وروسته شېخ ملي د سوات د زمکو ګرځنده وېش متعارف کړ او په خپل دفتر کې یې خوندي کړ، خو د هغه دغه دفتر لا تر اوسه نه دی موندل شوی. دلته یوسفزو منظم حکومت جوړ نه کړی شه او په یو قبایلي طرز یې ژوند تېرولو. دا دور د وروسته راتلونکو دورونو په نسبت پسمانده او د جهالت دور و او د تاریخ په کتابونو کې ورته "د پښتو دور" ویلی شوی دی. له دښمن نه د بچ کولو او د خلکو په ژوند کې د ارام راوستلو په خاطر سیدو بابا دلته د حکومت جوړولو هڅه وکړه او د پیر بابا په اولاد کې یې یو کس سید اکبر شاه د ستهانې نه راوست او په ۱۸۴۹م کې یې د سوات باچاه کړ. دا څه منظمه باچاهي نه وه، نو ځکه کامیابه نه شوه او د ۱۸۵۷م کال د می پر ۱۱ مه چې کله سید اکبر شاه وفات شو، نو دغه باچاهي هم ختمه شوه او له دې نه وروسته د ۱۹۱۵م کال د اپرېل پر ۲۴ مه سید عبدالجبار شاه د ریاست سوات باچاه مقرر کړی شو. هغه د ریاست بنیادي ډهانچه جوړه کړه او بیا د ۱۹۱۷م کال د ستمبر پر دویمه دی له باچاهۍ نه معزول کړی شو او د ۱۹۱۷م کال د ستمبر په دویمه هفته کې میاګل عبدالودود د سوات باچاه شو او د ۱۹۴۹م کال د دسمبر پر دولسمه هغه خپل زوی میاګل عبدالحق جهانزېب ته د سوات د ریاست واک اختیار ورکړ. په ۱۹۶۹م کې د ریاست سوات په پاکستان کې تر ادغام پورې هغه د سوات والي و. کله چې انګرېزان مالاکنډ ته نه وو راغلي نو د وادي سوات حدونه د طوطه کان (قلنګۍ) پورې غزېدلي وو. ښي طرف ته د دیر علاقه وه، ګس طرف ته د کاڼا غوربند او بونېر علاقې پرتې وې. کله چې مالاکنډ ته انګرېزان راغلل، نو د لنډاکي نه تر

قلنگۍ پورې دا علاقه يې په مالاکنډ ايجنسۍ کې شامله کړه او تر تالاش پورې د اډينزۍ علاقه يې د يوې معاهدې لاندې د دير نواب ته ورکړه. د سوات بادشاه مياګل عبدالودود تر اباسين کوهستان پورې دا علاقې او د بونېر علاقې قبضه کړې او په رياست سوات کې يې شاملې کړې. د ۱۹٦۹م کال د جولای پر ۲۸مه چې کله د رياست سوات په پاکستان کې د ضم کېدلو اعلان وشو او په باقاعده توګه د ۱۹٦۹م کال د اګس پر ۱۵مه په پاکستان کې ضم شو، نو سوات د رياست پر ځای يوه انتظامي ضلع جوړه شوه چې د رياست په حدونو مشتمله وه؛ بيا څه موده وروسته ترې د اباسين کوهستان، بونېر او د کاڼا غوربند علاقې بيلې کړل شوې او ځان ځانله انتظامي ضلعې جوړې شوې او له لنډاکي نه تر سوات کوهستان پورې د سين د ښۍ غاړې او ګسې غاړې علاقې د سوات په ضلع کې پاتې شوې.

له پېرو راهيسي له چليدونکي يو قبايلي نظام نه وروسته د يو رياستي حکومت په وجود کې له راتلو سره د خلکو په ژوند ژواک او ټولنيز تنظيم کې ډېر بدلون راغی او دغه رنګ تقريباً شپېته کاله يو رياستي حکومت وچلېده، چې قانون يې د پښتنو له رواج او د شريعت له امتزاج نه جوړ و. د داسې رياستي انتظام ناڅاپي ختمېدل او د يو نا اشنا قانون او انتظامي ډهانچې جوړېدو سره دلته په ټولنه کې يو ځل بيا بدلون راغی. د دې قانوني او انتظامي بدلون او د څه نورو عواملو له کبله څه ټولنيزې ستونزې راپورته شوې او ورسره څه تحريکونه را پيدا شول. په دې کې يو اهم تحريک "تحريک نفاذ شريعت محمدي" و. کله چې په ۲۰۰۱ کې امريکا پر افغانستان حمله وکړه، نو د دې هم پر سوات ډېر اثرات پرېوتل. په ۲۰۰۷ م کې دلته د طالبانو تحريک شروع شو او سوات د ټولې دنيا د توجه مرکز وګرځېد، له دې نه پته ولګېده چې د يوسفزو سوات ته له راتګ نه وروسته د سوات په تاريخ کې څلور مهم دورونه راغلي دي.

اولنی دور "د پښتو دور" يادېږي چې له شپاړسمی پېړۍ نه تر شلمې پېړۍ پورې دی، دويم دور رياستي دور دی چې د شلمې پېړۍ له دويمې لسيزې نه تر اوومې لسيزې پورې خور دی، دريېم دور د رياست سوات له ادغام نه د شلمې پېړۍ تر اختتام پورې دی او څلورم دور له يويشتمې پېړۍ نه شروع کېږي.

د دې هر دور د ادب له مطالعې نه د سوات د ثقافت د خدوخال او دلته د تهذيب او ثقافت د ارتقاء پته لګېدلی شي.

تهذیب او ثقافت له یو بل سره ډېر ژور تعلق لري، دغه وجه ده چې د تهذیب په تعریف کې د ثقافت او د ثقافت په تعریف کې د تهذیب لفظ استعمال شوی او د تهذیب او ثقافت تعریف له یو بل نه بغیر نه دی شوی، ځکه چې د تهذیب او ثقافت حدونه له یو بل نه پورې راپورې وتلي او د دوی په مینځ کې واضحه کرښه راښکل گران کار دی، خو د دواړو تعلق له انساني ژوند او ټولنې سره دی. ډاکټر جمیل جالبي د تهذیب او ثقافت معنې یو ځای کړي او د دوی لپاره یې د "کلچر" لفظ استعمال کړی، چې عامه معنا یې ثقافت کېدلی شي، ځکه د دې کتاب په سرلیک کې صرف ثقافت لفظ ولیکل شو، خو مراد ترې نه تهذیب او ثقافت دواړه دي.

په سوات کې د پښتو ادب تحریري مواد "د پښتو دور" یعنې په شپاړسمه پېړۍ کې په لاس راځي. د دې دور ادبي اسلوب او ژبه خپلې ځانگړتیاوې لري. په ادب کې د نورو ژبو او په خصوصي توگه د عربۍ او فارسۍ اثرات ډېر دي. د شاعرۍ په ادبي اصنافو کې چاربیته، بدله، غزل، مخمس، رباعي، مرثیه، نورنامه او نور په نظر راځي او دغه رنگ د الف نامو باقاعده روایت په دې دور کې لیدلی شي. په دې دور کې نثر ډېر کم دی او کوم چې موجود دی هغه مقفٰی او مسجّع نثر دی. په دې دور کې په سوات کې له عام مذهبي نثر نه علاوه نوي نثري صنفونه، لکه ناول، افسانه، ډرامه، سفرنامه او نور په نظر نه راځي. په دې دور کې د شاعرۍ په باره کې د عوامو عکس العمل ښه نه و، شاعرۍ ته به یې په ښه نظر نه کتل او دا به ورته د معاشرې د اوچتې طبقې کار نه ښکارېده، بلکې دا به ورته د ډمانو یا د عامو خلکو کار ښکارېده. په دې دور کې به په سوات کې د بیت بازۍ مقابلې هم کېدلې او شاعرانو به په شاعرۍ کې معمّې هم ویلې. په ادبي صحافت کې په دې دور کې د یو اخبار صرف ذکر موجود دی خو تر اوسه د دغه اخبار هېڅ نمونه په لاس نه ده راغلې. د دې دور په ادب کې د روښاني مکتب ذکر موندل کېږي، چې روښاني مکتب ته پکې ښه نه دي کتل شوي. تصوف هم د دې دور د ادب یوه ځانگړې موضوع ده. د تصوف د اثراتو له وجې د خلکو له پیرانو، ولیانو سره عقیدت دومره زیات و، چې له مرگ نه پس د دې قسمه خلکو له قبرونو سره به یې هم هغه عقیدت لره. همدغه وجه ده چې خلکو به د زیارتونو احترام کولو او له زیارتونو نه به یې ونې نه وهلې. په ادب کې د خلکو له عقیدې نه علاوه د پیرانو، ملیانو او خانانو ملکانو ذکر راځي.د مختلفو پېشو، هنرونو او کارونو ذکر هم په ادب کې شوی دی. د علم کیمیا، علم نجوم او د موسیقۍ حوالې پکې هم موندل

کېږي، اگر چې موسيقۍ ته يې په ښه نظر نه دي کتلي. د وسلو او سکو روپو نه علاوه د مادي ثقافت د نورو ډېرو ځيزونو ذکر په ادب کې شوی دی. له دې نه علاوه د دې دور په ادب کې د خلکو د جامې پېزار، استوګنې، د غم ښادۍ د رسمونو، پښتونولۍ، ټل، ډلې، ګودر، د ښځو د ژوند، د اخترونو، د مېلو او د زمکو د وېش په حواله معلومات موندل کېږي. د زمکو د وېش چې کوم نظام په دې دور کې چلېده هغه ته به يې ګرځنده وېش يا واريز وېش ويلو. د ګرځنده وېش تر مخه به هر پينځه، اووه، نهه يا لس کاله بعد د خلکو زمکې بدلېدلې. د پښتونولۍ نور عناصر پر ځای وو خو د برامتې خلاف سيدو بابا فتوه ورکړې وه او له هغې نه وروسته به په سوات کې برامته نه کېدله. د ډمو ګډولو، چيلم څښلو او د موسيقۍ خلاف فتوې هم په دې دور کې جاري کړی شوې وې. په سوات کې د پښتو په دور کې پر ښځو ډېرې پابندياني نه وې، البته په ميراث کې به ښځو ته حصه نه ورکول کېده. د لور په واده به د هلک له کور والا نه روپۍ اخستل کېدې، اگر چې ټولې يا څه روپۍ به د هغې په واده بيا پلار لګولې. په دې دور کې به د کلي شريکه حجره وه او د ځان ځانله بېټکونو يا حجرو رواج نه و. په دې دور کې به چې د اخترونو په موقعه کومې د جهل مظاهرې کېدلې د هغوی ذکر هم په پښتو ادب کې شوی دی. خانانو، ملکانو به له کمزورو او غريبانو خلکو نه بيګار اخسته. په دې دور کې د عشر د راجمع کولو څه باقاعده نظام نه و، ځکه چې په دې دور کې دلته حکومت نه و.

د سوات د پښتو ادب دويم دور ته رياستي دور ويل کېږي. په ۱۹۱۵م کې سوات ځانله يو جدا او ازاد رياست جوړ شو، چې خپله جنډه، مونوګرام او قومي ترانه يې لرل. د رياست له جوړېدو سره دلته په ټولنيز تنظيم کې ډېر بدلون راغی، دلته حکومتي قلاګانې جوړې شوې، ښوونځي (سکولونه)، روغتونونه(هسپتالونه) او ډاکخانې جوړې شوې، په دې دور کې په وړومبي ځل عدليه، انتظاميه او نور په وجود کې راغلل، د رواج او شريعت مطابق باقاعده قوانين جوړ کړل شول، ټيليفون او بجلي سوات ته راوغزولی شول. په دې دور (۱۹۱۵-۱۹٦۹) کې پښتو ژبې او ادب ته سرکاري سرپرستي مېلاو شوه. په دې دور کې د ۱۹۳۷م کال په جون کې پښتو سرکاري ژبه وګرځېده، په رياستي دور کې به په سرکاري خرچ د پښتو مهم تاريخي، مذهبي او ادبي کتابونه چاپ کېدل او په خلکو به مفت وېشل کېدل. د دسمبر پر دولسمه او د جون پر پينځمه به د سوات د جشن په موقعه په سرکاري سرپرستۍ کې مشاعرې کېدلې او له ټولې پښتونخوا نه به پکې شاعرانو شرکت

کولو. دا مشاعرې به بیا په کتابي شکل کې چاپ کېدلې، د ریاست حکمرانانو به د شاعرانو او لیکوالانو هر قسمه حوصله افزايي کوله. په ریاستي دور کې په تعلیمي ادارو کې د پښتو ژبې تدریس هم کېده او پښتو به د سوات په تعلیمي ادارو کې په حیث د یو مضمون هم ښودل کېدله، چونکې ادب د دربار تر سیوري لاندې و، نو ځکه پکې د حکمرانانو مدح خواني زیاته شوې ده. په ریاستي دور کې د صحافتي ادب باقاعده بنیاد کېښودل شو، په دې دور کې رسالې خو به چاپ کېدلې خو اخبار له سوات نه، نه دی چاپ شوی. کومې رسالې چې به چاپ کېدې نو پر هغو به هم نظر ساتلی شه او د حکمرانانو په پالیسیانو چا هم تنقید نه شو کولای. د دې دور په ادب کې په اوله کې د خدايي خدمتگار تحریک خلاف اشارې په نظر راځي خو کله چې برتانوي حکومت ختم او پاکستان جوړ شو، نو بیا د سوات د ریاست د حکمرانانو رویه د خدايي خدمتگار تحریک په باره کې نرمه ښکارېږي. د ریاستي دور په شروع کې په پښتو ادب کې د سوات د وزیرانو (حضرت علي او احمد علي) ډېرې مدحې ویل شوي دي، خو کله چې وزیران له ریاست نه وشړل شول، نو بیا په ادب کې د هغوی کردار کشي په نظر راځي. په دغه دور کې د وزیرانو په هجو کې "وزیرنامه" هم لیکل شوې ده. د حکمرانانو د مشاغلو ذکر هم په ادب کې شوی دی. په دې دور کې د خیال د اظهار ډېره ازادي نه وه، که چا د ریاست د ځینو پالیسیانو خلاف لیکل کړي هم وو نو په هغه وخت کې یې چاپ کړي نه دي. د دې دور په ادب کې د ریاست سوات د ترقۍ ستاینې شوي دي. د ریاست سوات د برتانوي حکومت، د گاونډیو ریاستونو دیر او امب او له پاکستان سره تعلق هم د دې دور په ادب کې ښکارېږي. د دې دور لیکوالانو له سوات سره د خپلې مینې اظهار هم په ادب کې کړی دی. په ادب کې د قامي او ملّي اتلانو، ولیانو او بابا گانو ذکر هم موندلی شي. په ادب کې د ذات پات، پښتو او پښتونولۍ ذکر هم شوی دی. له وسلې سره د پښتنو د مینې او د مادي فوکلور حوالې هم ذکر شوي دي. د پښتنو له یو بل سره د دښمنۍ او د توهم پرستۍ حوالې هم د ریاستي دور په ادب کې ښکاري، خو دا دښمنیانې او توهم پرستي د پښتو د دور په نسبت په ریاستي دورکې کمه شوې ده. د کومو کلیو او ځایونو نومونه چې بې معنې وو او یا خوندور نه وو هغه ریاستي حکمرانانو بدل کړل. د سیل او تفریح لپاره د باقاعده مېلو انتظام وشو او د لوبو میدانونه جوړ شول. په جامه پیزار کې فېشن او جدیدیت لړ لړ په دې دور کې ښکاري خو تنقید پرې هم شوی دی. په عمومي توگه په دې دور کې د تېر دور په نسبت د ژوند معیار اوچت شوی په نظر

راځي. د ماشومانو د لوبو ذکر هم د دې دور په پښتو ادب کې موندل کېږي. د ښځو په ژوند او حقونو کې هم بدلون ښکاریږي. که له ریاست نه بهر به چا خپله زنانه هم بوتله نو راهداري به یې کوله، ګني نو هسې به ورته اجازت نه و. د دې دور په ادب کې د پښتو د دور او د ریاستي دور موازنه هم شوې ده. د پښتو دور ته یې د تیرو(جاهلیت) دور ویلی او د هغه وخت خرابیانې، لکه جنګونه کول، میراتې کول، سزاګانې او توهم پرستي او نور یې یواځې نه صرف په ګوته کړي، بلکې د ریاستي دور د ښه ثابتولو لپاره یې په دې موازنه کې له مبالغو او مغالطو نه هم کار اخستی دی. د پښتو دور کې چې د جماعتونو کوم خراب حالت و، هغه هم دلته بیان شوی دی. د پښتو دور کې به چا ځانله حجره نه شوه جوړولی، خو په دې دور کې د ذاتي حجرو او بېټکونو رواج شروع شو او د شریکې حجرې اهمیت ختم شو،کوم ته چې د دې دور په پښتو ادب کې اشارې شوي دي. د سیدو بابا په وخت کې چې کوم لنګر شروع شوی و، هغه په دې وخت کې هم چلېده. چونکې دلته یو بادشاهي نظام و، نو سیاسي پارټیانې نه وې خو د پښتو د دور په شان ډلې او ټلونه موجود وو، خو بیا هم د دې ډلو اختیارات او اهمیت ډېر کم شوی و. د خان ملک په اختیاراتو کې چې د وخت له تېرېدو سره کوم بدلون راغلی و، هغه په ادب کې ښکاره دی. خاني ملکي چې په تېر دور کې به موروثي وه دلته پکې دا بدلون راغی چې د بادشاه به څوک خوښ و، نو هغه به یې ملک جوړولو. په دې دور کې د خان ملک هغه اولنی زور کم شو. خان به د تاںېې تحصیل منډه وهله خو د تعلیم له عام کېدلو سره نوي تعلیم یافته ځوانان د خانۍ خلاف وو او د خانۍ منلو ته تیار نه وو. په دې دور کې د وړومبي دور په نسبت د ژوند معیار اوچت شوی و، نو خاني ټینګول پکې هم ګران وو او دغه وجه ده چې خانانو په زمکو خرڅولو شروع وکړه او دغه زمکې کسبګرو او نورو غیردوتریانو خلکو واخستې. په دې دور کې په ټولنه کې په پېشو کې هم بدلون راغلی و او خلکو د پلار نیکه پېښې بدلې کړې وې، اجاره داري او دکانداري وغیره به یې کوله. دلته د صنعت، تجارت او دستکارۍ ودې او ترقۍ ته حکمرانانو پخپله توجه ورکړه. په عمومي توګه کسبګرو ته په ښه نظر نه دي کتل شوي خو په دې دور کې باچا صیب د جولاګانو د حوصله افزایۍ لپاره ډېر اقدامات کړي وو، کوم بیګار چې به په اول دور کې کېدلو اوس په هغې کې سرکاري بیګار هم شامل شوی و، یعنې په خلکو سړکونه جوړول او دفترونو له سکاره (چارکول) وړل وغیره ریاستي بیګار و، کوم چې به غریبانانو خلکو کولو. په دې دور کې به عشر د ریاست حکمرانانو له

خلکو نه په زور اخسته او د رياست په خزانه کې به جمع کېده، د جماعت د ملا دانې او د جماعت دړ په دې دور کې هم خلکو ورکول. په دې دور کې د بدل په تصور کې هم کافي بدلون راغلی و، ځکه چې په دې دور حکومت موجود و، نو د دښمنو بدل به حکومت اخسته، خو بيا هم دا تصور ختم نه و او خلکو به خپل بدل پخپله هم اخسته. په اول دور کې د موسيقۍ، د ډمو د ګډا او د چيلم خلاف فتوې جاري شوې وې او په دې دور کې ګډا ته سرکاري سرپرستي مېلاو شوې وه، د شرابو د راوړلو به ټېکې ورکول کېدې، خو عامو خلکو ته يې د استعمال اجازه نه و.

د سوات د پښتو ادب درېيم دور د سوات د رياست په پاکستان کې له ضم کېدلو، يعنې له ۱۹٦۹ نه شروع کېږي او تر ۲۰۰۰م پورې رسېږي.کله چې رياست سوات په پاکستان کې ضم کړی شو، نو پر ټولنه هم د دې ادغام څه ښه او څه خراب اثرات پرېوتل. دلته چې کوم انتظامي او عدالتي نظام موجود و له هغې نه يو بدل نظام دلته راغی، عدالتي نظام اول په رواج مبني و اوس د پاکستان قوانين لاګو کېدل شروع شول.

اول ټول انتظامي اختيارات د سوات له والي سره وو، نو فيصلې به زر زر کېدې اوس اختيارات له صوبې او مرکز سره شول، نو په فيصلو کې ځنډ پيدا شو او خلک له عدالتي نظام نه ډېر ستړي وو. د رياست له ادغام نه وروسته په رياست کې په وړومبي ځل ازادې ادبي ټولنې جوړې شوې، خلکو ته نسبتاً د خيال د اظهار د ازادۍ موقعې په لاس ورغلې او هغه مواد يې هم چاپ کول شروع کړل کوم يې چې د رياست په وخت کې له وېرې نه شو چاپولی.

په ادبي اسنافو کې په دې وخت کې د نعتونو مجموعې او تذکرې چاپ شوي دي، له دې نه علاوه ناول، افسانه، سفرنامه، ترجمې، منظوم تاريخونه، د ماشومانو ادب او نور هم چاپ شوي دي. د صوفيانو او وليانو تذکرې هم ليکل شوې وې، د شاعرۍ تقريباً په ټولو ادبي اصنافو طبع ازمايي شوې ده.

په نوو ادبي اصنافو کې په دې دور کې هايکو هم ترقي کړې ده. په رياستي دور کې چې د مشاعرو د چاپولو کوم روايت و، هغه دلته برقرار وساتل شو، خو فرق دا و چې هغه به د سرکار په خرچ چاپ کېدې او د حکمرانانو صفتونه به يې بيانول.

اوس د دې مشاعرو نوعيت بدل و او ادبي ټولنو او ليکوالانو به په خپل خرچ چاپ کولې. په دې دور کې په سوات کې صحافت هم ښه ترقي وکړه او د صحافت له ترقۍ سره

66

حکمنامه 28 4/66

20

چې د شِل یا د شلو کالو نه زیاته دعوه یو حاکم. تحصیلدار واغسته نو هغه به سزاوار وی۔

حکمران
ریاست سوات

قضا
۲۸/۴/۶۶

ADC

67

حکمنامه

28 4/66

3

هر سوک چه درېم وادہ کوی۔ نو
وجوهات به ښئ او اجازت به
اخلی۔ بغیر د اجازت نه به سوک
درېم وادہ نشی کولے۔

حکمران ریاست سوات

ت
دستخط
۲۸/۴/۶۶

58

# حکمنامه

(1) د زنا په معامله کے چه جرمانه واغستے شی نو په ښځ کے به ملکانه نشی ورکیدے د جرمے زنانه او یا د ښځ دقریبی رشتدار نوم به په نقشه کے نه شی لیکلے۔ ځکه چه د ښځه شرم کیګی۔

(2) د جرمانے نه ځه مرهم پټئ اول ورکړے کیګی۔ پس د ښځ نه به په بقایا جرمانه کے ملکانه ورکیدے شی فقط

حکمران
ریاست سوات

فیضان
30.1.65

52

# حکمنامه

چه سرکاري نوکران به علاوه د

فيصلونه د قوم د خلقو سره د

حکومت نه د مطالبا تو په شکل کښې هيس قسم

گونه دستخط نکوي- او نه به ورسره راځي

ورنه سزا وار به وي فقط

فيضان
30-1-65

حکمران
رياست سوات

# حکمنامه

ګراج هر سوک چه جوړه وی نو د سوک د نالئ نه به آته فټه بېرته وی - او د سړک د کِنارے نه لس فټ.

به موړکے به هيس سوک ګراج نه جوړه وی که چا جوړکه۔ نو حکومت به ئې ورانه وی فقط

حکمران
رياست سوات

فيضان
30-1-65

میں اس بات کی وضاحت ہو گی - کہ درخواست کنندہ فی الواقعی اُس کام سے نہ صرف تعلق رکھتا ہے - بلکہ اس میں خاطر خواہ تجربہ رکھتا ہے - جس کا کہ وہ کارخانہ لگانا چاہتا ہے -

نوٹ :- تمام اُن درخواست کنندگان کو جنہیں چھ ماہ پہلے کارخانہ لگانے کی اجازت دی گئی تھی - اور جنہوں نے ابھی تک اس بارے میں کوئی عملی قدم نہیں اُٹھایا - یعنے نہ وہ ابھی تک کوئی کھڈیاں وغیرہ ریاست میں لائے ہیں اور نہ ہی فیکٹری لگانے کیلئے کوئی زمین خریدی - یا کرایہ پر لی ہے - انہیں دو ماہ کا نوٹس دیا جاتا ہے - کہ وہ مناسب کارگذاری دکھائیں - بصورت دیگر اُن کا اجازت نامہ خود بخود مسترد تصوّر ہوگا :-

فیضان حکمران ریاست سوات

55

# حکمنامہ

آئندہ کیلئے کسی شخص یا کمپنی کو ریاست سوات میں کسی قسم کی فیکٹری یا کارخانہ لگانے کی اجازت نہیں ہوگی۔ جب تک کہ وہ مندرجہ ذیل شرائط کو پورا نہ کرے

1:- درخواست کنندہ کو پانچ ہزار روپے 5000 سے دس ہزار روپے 10000 تک (بلحاظ تعداد کھڈیاں وغیرہ) ریاست کے خزانہ میں جمع کرانے ہونگے۔ یہ جمع شدہ رقم فیکٹری یا کارخانہ کے مکمل طور پر چالو ہونے کے بعد درخواست کنندہ کو واپس کر دی جائے گی۔

2:- تمام درخواست کنندگان پر لازمی ہوگا۔ کہ وہ اپنی درخواست کے ساتھ بینک سے اپنی مالی حالت کا سرٹیفکیٹ شامل کریں۔ اس سرٹیفکیٹ میں اُس رقم کا اظہار ضروری ہوگا۔ جو کہ ایک درخواست کنندہ فیکٹری میں لگا سکتا ہے۔

3:- تمام درخواست کنندگان کو ایک مزید سرٹیفکیٹ ڈائریکٹر آف انڈسٹریز مغربی پاکستان سے حاصل کرکے درخواست کے ساتھ منسلک کرنا ہوگا۔ اس سرٹیفکیٹ

# فہرست تعطیلات ریاست سوات

1- تاریخ وفات باباجی علیہ الرحمت 7 محرم ........ ایک دن
2- محرم ........ 10 " ایک دن
3- بارہ وفات ........ 12 ربیع الاول ...... ایک دن
4- شب برات ........ 15 شعبان ........ ایک دن
5- رمضان شریف ...... ایک دن پہلے دو دن بعد ...... کُل تین دن
6- جمعۃ الوداع ...... آخری جمعہ شریف ماہ رمضان المبارک ایک دن
7- عید الفطر ایک دن پہلے اور تین دن بعد ...... کُل چار دن
8- عید الضحیٰ ایک دن پہلے ...... پانچ دن بعد ...... کُل چھ دن
9- یوم جمہوریہ پاکستان ...... 23 مارچ ...... ایک دن
10- تاریخ پیدائش حضور والی صاحب بہادر 5 جون ایک دن
11- یوم پاکستان ........ 14 اگست ........ ایک دن
12- وفات قائد اعظم ........ 11 ستمبر ........ ایک دن
13- یوم انقلاب ........ 27 اکتوبر ........ ایک دن
14- تاریخ تاجپوشی حضور والی صاحب بہادر 12 دسمبر ایک دن
15- تاریخ پیدائش قائد اعظم ........ 25 دسمبر ........ ایک دن
16- تعطیل عام ........ ہر اتوار

حکمران
ریاست سوات

۸:- کوم کسان چه ورشو ته ختونکي وي او قبل د ختو نه د علاقې اجارګر ته په موسم کې غوړي واخلي - او په موسم د هاړ پشکال د بلې علاقې ورشو ته ختونکي په دغه صورت کې د ورشو د علاقې اجارګر د سيرو حقدار وي - او د هغه بل نه به سړي د جانب نه سيرے واپس کيږي -

۹:- د کوم تاريخ نه چه د غوړو د فراهمئ کار شروع شي - نو د هغه تاريخ نه چه د سارو تعداد حسابيږي - کچرے سيرو ورکونکي د سارو تعداد په د سه معقول سبب نه کم اوخي - نو هغه به د شروع د زوړ تعداد په موافق سير ورکوي - او که په دغه دوران کې د سارو تعداد زيات کړي - نو د موجوده تعداد په موافق به سير ورکوي - بشرطيکه په دغه ذيادو سارو باندې بل ځاے سير نه وي آخستے شوے -

۱۰:- بعض خلق چه خپل بعض ساروي د بلې علاقې ورشو ته د هاړ پشکال په موسم وليږي او بعض د بلې علاقې ورشو ته - نو هر کله که اجارګر د علاقو جدا جدا وي - د نيمو سيرو نو به يو اجارګر حقدار وي - او د نيمو سيرو نو به بل - او دوه ځايه به تې پوره پوره سيرے نه شي آخستے -

۱۱:- بعض داسې کسان چه په موسم د هاړ پشکال ساروي د رياست نه باهر وباسي نو د غوړو د سيرو د عشر حقدار به ئې د هغې علاقې اجارګر وي -

(نوټ) د سيرو د قانون ماتحت کسانو ته دا حکم دے چه د خپلو سارو تعداد به پوره پوره ښائي او اجارګر به هم د مقرره قاعدے نه تجاوز نه کوي - په صورت د غبن د سير ورکونکي کے او د تجاوز د اجارګر کے - د هر يو نه به ۱۰۰ سل روپئ جرمانه آخستے شي -

فيضان
۷-۱۰-۶۳

حکمران
رياست سوات

# حکمنامه

(نوے شرح متعلق د غوړو د ځش د سیر از سال 1964ء و برائے آینده)

1:- د هر اجړ گوجر چه درے میخے یا شپگ غواوی - یا مشترکه د دے نه دوه میخے یوه غواوی - یا یوه میخه درے غواوی - هغه به سالانه یو سیر غوړی ورکوی - او د دے تعداد نه دوه چنده به دوه سیره او سه چنده به درے سیره غوړی ورکوی - او زیادت علی هذا القیاس خو سارا دی به د دے قسمه دی - چه بلا درب وی - یا نے لنگون تیر کړے وی - مسنډ او غوایه به نه حسابیگی -

2:- علاوه د اجړ گوجر نه نور هر سوک چه وی - د چا چه پنزه میخے دی - یا لس غوا یا مشترکه د دے نه سلور میخے یوه غواوی - یا درے میخے - درے غواوی - یا دوه میخے پنزه غواوی - یا یوه میخه اوه غواوی - هغه به سالانه یو سیر غوړی ورکوی - د دے تعداد نه دوه چنده به دوه سیره او سه چنده به درے سیره غوړی ورکوی او نور زیادت علی هذا القیاس -

3:- د دے قانون نه به هر موا جب خور مستثنی وی -

4:- بیزے به د غوړو د سیر نه معاف وی

5:- د مندرجه بالا شرح په موجب به هر چا چه سیر کیگی که سارو یے په سم کے اوسی - یا د بعضے علاقے په ورشو کے اوسی - نو د دغه علاقے اجاره گر به د دغه سیر و نو حقدار دی -

6:- بعض داسے کسان وی چه د یوے علاقے اوسیدونکے وی - او سارو د هاړ پشکال په موسم کے بلے علاقے ته وخیژوی - په دغه صورت کے به د بلے علاقے اجاره گر د سیر حقدار دی -

7:- او بعض داسے کسان چه بعض سارو یے د بعضے کډے سره په سم کے وی - او بعض سارو یے د هاړ پشکال په موسم کے د بلے علاقے ورشو ته لاړ شی - د ورشو د علاقے اجاره گر به د سیر حقدار دی - د سم سارو به د ورشو د سارو سره شما روی - د سم د علاقے اجاره گر به ترے غوړی نه اخلی -

52
11.3.64

# حکمنامه

په رياست کے چرچا په يو بل لارئ ويگن موټر- موټر رکشه- خرس کوټه- او ياڅې وا غسته- او يو بل ته ئې ټرانسفر نه کړه- نو د لارئ دوه سوه 200 روپے د موټر او ويگن سل 100 روپي- او د موټر رکشه په پنزوس 50 روپے جرم آغسته شی-

حکمران
رياست سوات

فيضان
۱۱-۳-۶۴

51

# اوقاتِ حاضری برائے دفاترِ سرکاری

## ریاستِ سوات

16 اکتوبر سے یکم اپریل تک ½8 بجے سے ½12 بجے تک

جُمعہ کے دن ½8 بجے سے 12 بجے تک

یکم اپریل سے 15 اکتوبر تک 8 بجے سے 2 بجے تک

فیضانِ حکمران

ریاست سوات

50
20.6.62

# حکمنامه

چې د چا په پښتې کې ونه وي. نو
هغه د پښتې د خاوند ده،
خواه که هغه ونه هر چا شاله کړې
وي.

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲۰/۶/۶۲

# حکمنامه

منصفان چه زما په حکم فیصلے له ذی نو فیس به نه اخلی

او که سوک ئے خپله فیصله له غو اړی نو په لاندې لیکلے شوے

طریقه به د فیصله خاوند فیس ورکوی۔

(موټر یا سواری)

1۔ باچوزے۔ چارباغ۔ اباخیل موسٰی خیل فکس لس روپے 10

2۔ نیک پی خیل۔ عزی خیل۔ فتحپور۔ برسوات 〃 دولس روپے 12

3۔ مدین۔ بحرین۔ شموزی۔ بونیر 〃 پنځه لس روپے 15

4۔ خدوخیل۔ کالام۔ شانګله پار 〃 شل روپے 20

فیضا م ن
۲۸/۴/۶۲

حکمران
ریاست سوات

48/5.1.62

# حکمنامه

دَ کومو و نو پریکول چه قانونًا منع دی
دَ هغې نه علاوه دَ سوات دَ لوګو دَ پاره
دَ زیلو نه بوټے یا ونه به نه اُو باسی
او دَ سوات لوګی په ریاست کے چه
دَ هر تحصیل نه بل تحصیل ځوک وړی
نو وړلو شی سره پابندی نشته:-

حکمران
ریاست سوات

فیضا ت
۵/۱/۶۲

47
28.4.64

# حکمنامه

چه هر عامل د علاقے به په تحصیل د رهن
یا اجارے اسٹامپ د دوه کاله میعاد نه
زیات میعاد نه لیکی۔ او نه به ئے تصدیق
کوی۔ د دوه کالو نه پس که فریقین رضا
وی۔ نو بیا ئے هم د یو کال یا د دوه
کالو د پاره توسیع کولے شی۔

فیضا
۲۸/۴/۶۴

حکمران
ریاست سوات

461
25.11.63

# حکمنامه

هر سړی چې د خپلې ښځې نه پوزه پرېکړي نو هغه سړے به دوه زره روپے 2000 جرمانه ورکوي یا اوه کاله قید - او د هغه ښځے له به طلاق هم ورکوي.

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲۵-۱۱-۶۳

456
5.10.63

# حکمنامه

چہ هغه رقم به په تحصیل کے امانتی طور
ایخو دے شی چہ کوم په میاشت
یا دوه میاشتے کے واپس ور کړے کیږی
که د دے نه زیاتو ورځو د پاره
رقم پاتے وی نو مرکزی خزانه
سیدو شریف ته به تجے امانت د پاره
رالیږی په تحصیل کے به نه ګډیږی۔

حکمران
ریاست سوات
فیضان
۵-۱۰-۶۳

44
25.5.63

# حکمنامه

هر حاکم۔ تحصیلدار به پخپله علاقه کے بغیر زما د اجازت اغستو نه د چا ډوډی له نه زی۔ او نه به د چا نه موټر غواړی۔

فیضان حکمران
ریاست سوات
۲۵/۵/۶۳

42/6
5.10.62

# حکمنامه

که په اشټامپ کے چا تغیر تبدل او
ردوبدل او کړه. نو هغه اشټامپ
ضبط او هغه سړے به ۱۰۰-/۱۰۰۰- روپئے سل تر زرو
روپو پورے جرمانه ورکوی.

فیصله ۵-۱۰-۶۲

حکمران
ریاست سوات

41
24.9.62

# حکمنامه

چه هسپتال ته به سوک قطعًا د سله نه ورځي. که په هسپتال کے چا جنګ اُوکه نو ډبل جرمانه به ورکوي - اوکه په هسپتال کے چا مرګ اوکه نو هغه له به آخيري سزا ورکيدے شي :-

حکمران
ریاست سوات
فيضام
۲۴-۹-۶۲

4/0
4-4-62

# حکمنامه

چه د هر تحصیل حاکم - تحصیلدار - د تحصیل سرزا

تهانیدار چه څو کس په چهټی زی نو

څو کس به چهټی اغستے شی - باقی دوه

کسان به چهټی ناخلی په تحصیل کے

به پاتے کیګی - په جمع درے واړه یا

دوه کسان چهټی نه شی آغستے -

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۴-۸-۶۲

37
31-5-62

# حکمنامه

آینده د پاره به په اجاره بانړو په منډ رجه ذیل طریقه بولۍ کیدې شي د دې نه په کمه بولۍ به اجاره نه شي بدلیدې - نیز چه اجاره دریمه حصه لوړه شي - بیا به پرې بولۍ نه شي کیدې -

1:- د سلو [100] خټو نه د دوه سوه [200] خټو پورې په اجاره به لس [10] خټې بولۍ کیدې شي
2:- د دوه سوه [200] خټو نه د پنځه سوه [500] خټو پورې په اجاره به شل [20] خټې بولۍ کیدې شي
3:- د پنځه سوه [500] خټو نه د یو زر [1000] خټو پورې په اجاره به څلویښت [40] خټې بولۍ کیدې شي
4:- د یو زر [1000] خټو نه د دوه زره [2000] خټو پورې په اجاره به پنځوس [50] خټې بولۍ کیدې شي
5:- د دوه زره [2000] خټو نه د څلور زره [4000] خټو پورې په اجاره به اویا [70] خټې بولۍ کیدې شي
6:- د څلور زره [4000] خټو نه د اته زره [8000] خټو پورې په اجاره به سل [100] خټې بولۍ کیدې شي
7:- د اته زره [8000] خټو نه د دولس زره [12000] خټو پورې په اجاره به او نیم سل [150] خټې بولۍ کیدې شي
8:- د دولس زره [12000] خټو نه پورته په اجاره به دوه سوه [200] خټې بولۍ کیدې شي

حکمران ریاست سوات

۳۱-۵-۹۲

38
17-11-61

# حکمنامه

هر چا چه طبیه کالج دهلي - طبیه کالج لاهور یا هر ډ ګریډ کمپاونډر دی امتحان د حکومت پاکستان محکمهٔ صحت نه نه وي پاس کړے نو هغوئ به د سوات محکمهٔ صحت د سیکنډ ګریډ امتحان پاس کوي - که نئے نو بیا به په سوات کے په ډاکټری یا یونانی طریقه علاج معالجه نه کوي - میعاد د د سند اغستو د نن نه دوه کاله مقرر دے - چا سره چه موجوده سندونه دي - که په دے میعاد کے چا سرټیفیکیټ وا نخسته نو د هغوئ سندونه به ضبط کیګی -

فیضان
12-11-61

حکمران
ریاست سوات

37 ځ
19.11.62

# حکمنامه

کومه غله چه په ټنډ رخوسه شی۔ او
ټنډ دکونکی زمانه د مهلت حکم حاصل کړی
نو پنځوس (50) پیسې فی سینکړه ماهوار
منافعه به ترے آغستے شی۔ لیکن چه په
اجاره کے سوک خساره اوکی۔ زه ورله
مهلت ورکړم نو منافعه به ترے نه
شی آغستے:۔

حکمران
ریاست سوات

ت
فیضان
19-11-62

306
15.1.61

# حکمنامه

۱:- په هر ځای چې د حکومت قرضه وي. نو تر سو پورې چې هغه د حکومت قرضه نه وي ادا کړی. نو هغه وخت پورې د هغه سړي خپل جائداد به هیڅوک نه خرسولی او نه گانړه کولی شي. او که خرس یا گانړه یې که. نو د حکومت د قرض د پاره به واپس کیږي.

۲:- او د اسټامپ ورکولو ذمه واري به د حاکم یا تحصیلدار وي. چې اسټامپ ورکړی وي.

حکمران
ریاست سوات

فیضان
15-1-61

(نوټ)

1۔ خلاف قانون ښاخترا ښی ډ هر قسم ونې یا ډ کی۔

بلا اجازت نه په زیات مقدار کے کرچا اوکړه نو جرم

په لس $\overset{10}{}$ روپۍ ورکوی۔ او که په کم مقدار کے ئې اوکړه

نو پنځه $\overset{5}{}$ روپۍ جرم به ورکوی۔

2۔ هر هغه سوک چې بلا اجازته کټائی او کړی نو

سره د مندرجه بالا جرم نه به لرګی هم حکومت

ته حواله کوی۔ بصورت دیګر که لرګی ئې ضائع

کړی وی۔ نو ډبل جرم به ترے آخستے شی۔

حکمران ریاست سوات

فیضان
۲۸/۸/۶۱

357 L
29.6.61

# حکمنامه

هر سوک چه خلاف قانون کټائي یا شاخ تراشي د ونو وکړي نو په مندرجه
ذیل شرح به ترې جرم آخستے شي،

(نوټ) سلو فټه و زائد لپیټ به په ونه حساب - او د سلو فټو نه کم لپیټ به په ډډکي حساب وي

| نمبر شمار | اقسام درختان | تشریح درختان و جرم | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ونه | روپے | ډډکے | روپے | |
| 1 | زنغوزړه | ونه | 300 | ډډکے | 100 | |
| 2 | پیوچ | 〃 | 150 | 〃 | 50 | |
| 3 | اچر | 〃 | 150 | 〃 | 40 | |
| 4 | نختر | 〃 | 100 | 〃 | 30 | |
| 5 | چنار | 〃 | 100 | 〃 | 30 | |
| 6 | اوغز | 〃 | 100 | 〃 | 30 | |
| 7 | شوه | 〃 | 100 | 〃 | 30 | |
| 8 | توت | 〃 | 50 | 〃 | 30 | |
| 9 | خونه | 〃 | 50 | 〃 | 30 | |
| 10 | جوز | 〃 | 30 | 〃 | 10 | |
| 11 | توکنه | 〃 | 30 | 〃 | 10 | |
| 12 | بریت | 〃 | 30 | 〃 | 10 | |
| 13 | کانړ | 〃 | 30 | 〃 | 10 | |
| 14 | بنج | 〃 | 10 | 〃 | 3 | |
| 15 | هنړیا | 〃 | 10 | 〃 | 3 | |

34
30.12.60

# حکمنامه

چه کوم وزیر ـ مشیر ـ حاکم او تحصیلدار دَ یوے علاقے اجاره بے بوده سړی له ورکړه نو هغه عامل به دَ اجارے دَ رقم اداګی کولو پخپله ذمه واروی ۔

حکمران
ریاستِ سوات

فیضان
۳۰-۱۲-۶۰

# حکمنامه

لاندې الفاظ چه سوک لیکی نو صحیح به لیکی. غلط به نه لیکی.

| صحیح | | غلط |
|---|---|---|
| صاحب | | صیب |
| معصوم | | ماشوم |

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۳۰-۱۲-۶۰

31 ع
10.10.61

# حکمنامه

هر سړے به مواجب بذاتِ خود پخپله اخلی

که چا یو کال وا نخسته - نو بیا به بغیر زما د اجازت

نه شی ورکیدے - چا چه درے کاله وا نخسته

هغه به بلکل بند وی - د چا چه پنځه

نه وی د هغه مواجب به کټ وی :-

حکمران
ریاست سوات

فیضان
10-10-61

3 ـ ـ
۲۰/۱۲/۶۰

# حکمنامه

چه هر سرکاری نوکر به یو اخبار یا
رسالے ته خوشامدانه تعریف ـ توصیف
مضمون نه ورکوی ـ البته شاعر
خپل نظم یا شعر و نه اخبار ته
ورکولے شی ـ

حکمران
ریاست سوات
فیضان
۱۸-۱۲-۶۰

۲۹۶
۱۹-۱۰-۶۰

# حکمنامه

چې هر سوک په خط یا په درخواست کې سر نامه لیکی نو

هغه به هیچا ته "قبله و کعبه - قبلهٔ دو عالم" القاب

نه لیکی - خواه که هغه پلار ته لیکی - یا بل لوئ افسر

ته - د هر مسلمان د پاره قبله او کعبه شته - هغه کافی

دی - صرف جناب پوره دے - لکه "جناب وزیر

صاحب" - یا "جناب مشیر صاحب" :-

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲-۱۰-۶۰

نہیں دیا جائیگا - یہ سکیم صرف اُن ملازمین سوات کے لئے ہے جو اختتام مردسس پر پراویڈنٹ فنڈ یا پنشن نہیں لینگے۔

6- حضور والی صاحب کو پورا پورا اختیار ہے - کہ وہ جب بھی چاہیں اس اسکیم کو تبدیل فرماویں۔

| نمبر شمار | حسب ذیل ملازمین ریاست سوات پر قانون معاوضہ عادی ہوگا | نمبر شمار | مندرجہ ذیل ملازمین ریاست سوات پر قانون معاوضہ عادی نہیں ہوگا |
|---|---|---|---|
| 1 | فوج | 1 | نوکران کالج |
| 2 | پولیس | 2 | نوکران خواری |
| 3 | محکمہ صحت - کمپاونڈران اور اُن سے اوپر | 3 | ملازمین سڑک |
| 4 | محکمہ تعلیم - استاد ہر قسم | 4 | چوکیداران میگزین و کارخانہ |
| 5 | ڈرائیوران | 5 | آھنگران - مشین والے |
| 6 | محرران دفتر اور اُن سے اوپر | 6 | سکول چوکیداران |
| | | 7 | کلینران |

حکمران ریاست سوات

فضل ...

47
8.7.60

# حکمنامہ

ریاست سوات کے سول ملازمین کے لئے معاوضہ کی تجویز

## قواعدِ ضابطہ

1 :- معاوضہ کی تجویز کا نفاذ جملہ مستقل ملازمین پر ہوگا - جن کی ملازمت مندرجہ ذیل وجوہات میں سے کسی کی بناء پر ختم ہو جائے (الف) ضرورت سے زائد ہونا (ب) کمزوری صحت (بیماری) (پ) ملازم کا پندرہ 15 سال کی مسلسل ملازمت کرنے کے بعد حکام کی تحریری اجازت سے مستعفی ہونا (ت) دورانِ ملازمت میں کام کرنے کی بدنی طاقت و صلاحیت نہ رکھنا -

2 :- معاوضہ کسی بھی ایسے ملازم کو نہیں دیا جائیگا - جن کی ملازمت قابل اعتراض کارگزاری کی وجہ سے ختم کر دی جائے - یا کسی اخلاقی جرم کی وجہ سے برطرف کیا جائے -

3 :- حضور والی صاحب جن کا فیصلہ ایسے معاملات میں مسلّم اور آخری ہوگا - اگر چاہیں تو مستقل ملازمین کو جن پر مندرجہ بالا قاعدہ 1 (جزو الف سے ت) کا نفاذ ہوتا ہے - مندرجہ ذیل طریق پر معاوضہ عطا فرمائینگے (الف) پندرہ 15 سال یا اس سے زائد عرصہ کی مسلسل ملازمت پر معاوضہ ملازمت کے ہر سال کیلئے ایک ماہ کی اصلی تنخواہ زیادہ سے زیادہ بیس 20 ماہ کی تنخواہ تک (ب) اصلی تنخواہ معلوم کرنے کے لئے ملازمت کے عین گذشتہ تین 3 سالوں کا اوسط نکالا جائے -

4 :- سکیم ہذا اب یکم اگست سنہ 1960ء سے عمل کیا جائیگا - لیکن تمام مستقل ملازمین جو مذکورہ تاریخ سے قبل مسلسل ملازمت کر رہے ہونگے - اُن کی اس ملازمت کا شمار بغرض معاوضہ کیا جائیگا -

5 :- جو ملازمین ریاست سوات پراویڈنٹ فنڈ لینگے - اُن کو مندرجہ بالا معاوضہ

| نمبر شمار | مقامات | | دَ سړک نه فاصله |
|---|---|---|---|
| 16 | دَ منګوړې نه | کوکارئ | دَ سړک دَ عین میزنه شل فټه (20) |
| 17 | دَ چهتلې نه | کوړه-لیلونئ-چکیسر | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 18 | دَ ډګر نه | ګوکند | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 19 | دَ شانګلې نه | چکیسر-پورن | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 20 | دَ کسونو نه | لیلونئ | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 21 | دَ کوړوړې نه | کانا | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 22 | دَ مجرین نه | کالام-اوشو-اتروړ | دَ سړک دَ عین میزنه اتلس فټه (18) |
| 23 | دَ منګوړې نه | سیدو شریف | دَ حکومت رضا ده- |

فیضام حکمران ریاست سوات
۱۱-۴-۴۰

# ځمکنامه

(فاصله د نوي آبادو په غاړه د سړک)

| نمبرشمار | مقامات | د سړک نه فاصله |
|---|---|---|
| 1 | د لنډاکۍ نه منګوره - سیدوشریف تا فتحپور | د سړک د عین مینځ نه پنځویشت فټه (25) |
| 2 | د منګورې نه کبل | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 3 | د کبل نه توتانوبانډۍ - شاه ډیرۍ - سیګلۍ - ډډهارې - شموزئ | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 4 | د منګورې نه مټه | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 5 | د مټې نه کالاکوټ - بهها | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 6 | د پیرکلي نه ګمټ | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 7 | د خوازه خیلې نه چمتلئ | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 8 | د بریکوټ نه ډګر - پاچاکلې - امبیله | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 9 | د امبیلې نه چمله - امازې | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 10 | د ډګر نه دیوانه بابا | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 11 | د سوړاړۍ نه دیوانه بابا | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 12 | د سالارزي نه ګدیزی | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 13 | ګلګت روډ | 〃 〃 〃 〃 〃 |
| 14 | د فتحپور نه مدین - بحرین | د سړک د عین مینځ نه شل فټه (20) |
| 15 | د سیدوشریف نه مرغزار - سلامپور | 〃 〃 〃 〃 〃 |

26
9.6.60

# حکمنامه

زما د تحریري منظورۍ نه بغیر به لاندې لیکلي شوي اشخاص په ریاست کې د هیڅ قسم اجاره نه کوي - د دوئ سره هر قسم معاهده د اجارې نه کیګي - او نه به دوئ د کوم اجارګی سره شریکوالی شي -

۱:- د حضور بادشاه صاحب عمله - د والي صاحب عمله - د ولیعهد صاحب عمله

2:- سپاه سالار صاحب - د هغه عمله - لکه مرزا اردلي - ناظر - رور - عزیز

3:- وزیر صاحب مال - د هغه عمله لکه مرزا - اردلي - ناظر - رور - عزیز

4:- وزیر صاحب ملک - د هغه عمله لکه مرزا - اردلي - ناظر - رور - عزیز

5:- مشیران د هغو عمله - - - لکه مرزا - اردلي - ناظر - رور - عزیز

6:- نائب سالار صاحب د هغه عمله لکه مرزا - اردلي - ناظر - رور - عزیز

7:- کمانډر صاحب - فهم حکمران کپتان صاحب سره د خپلو عملو -

8:- مهتمم صاحب سره د خپلې عملې -

9:- زما ماماګانو صاحبانو له به هم اجاره نه شي ورکیدی -

10:- هر حاکم - تحصیلدار - د هغه رور - زوی - عزیز - مرزا اردلي له به هم په خپله متعلقه علاقه کې د اجارې ورکولو اجازت نه شي ورکیدی

فیضان
9-6-60

حکمران
ریاست سوات

25
9-5-60

# حکمنامه

۱:- چې په هر دفتر یا تحصیل کې نکاحنامه لیکلې شي نو په نکاحنامه کې به د هلک او جنئ دواړو عمر لیکلې کیږي.

2:- کوم عامل چې ونه لیکه نو سزاوار به وي.

3- د نابالغه نکاحنامه به نه شي ورکولې:

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۹-۵-۶۰

# حکمنامه

24/ 9.1.60

د مندرجه ذیل اشیاؤ د ریاست نه بهر او په ریاست کے د یو تحصیل نه بل تحصیل ته د وړو اجازت دے۔

| تعداد | نوم د څیز | نمبر شمار |
| --- | --- | --- |
| 5/ پنزه | کښتو نه ټکو هلی | 1 |
| 5/ پنزه | صندوقو نه تیار | 2 |
| 2/ دوه | تخته پوشو نه 〃 | 3 |
| 5/ پنزه | الماري 〃 | 4 |
| 1/ یوه | تونړۍ 〃 | 5 |
| 4/ سلور | چوکاټو نه 〃 | 6 |
|  | دروازے 〃 | 7 |
|  | زانګو 〃 | 8 |
| هرڅوم چه د | میزو نه 〃 | 9 |
| 〃 〃 | کریټو نه د میوو ډک | 10 |
| 〃 〃 | کرسۍ کوچونه | 11 |

حکمران
ریاست سوات

فیضان
٩-١-٦٠

23c
8.9.60

# حکمنامه

چه هر سړے په ځائے سته
الاس نیوے له لاړ شه. نو
هلته به چائے یا ډوډۍ
نه خوری:-

حکمران
ریاست سوات

فضا
۸-۱-۶۰

بغیر باشندۂ سوات کے اور کسی کو نہیں دیا جائیگا

6 ۔ حکومت پاکستان ہراس شخص کے خلاف قانونی کارروائی کرتی ہے جو چوری کی صورت سے باہر لکڑی نکالنا چاہے۔ چونکہ ایسے اشخاص سے ریاست سوات کی بدنامی ہوتی ہے۔ اس لئے ریاست سوات اُن اشخاص کے خلاف تعزیراتی کارروائی کرتی ہے۔

7 ۔ جو شخص ریاست سوات میں لکڑی خرید کر اپنے ذاتی استعمال کے لئے باہر لے جانا چاہے۔ اس کیلئے موزون طریقہ یہی ہے۔ کہ وہ حکومت پاکستان کے محکمۂ جنگلات سے اجازت برآمد (پرمٹ) حاصل کرے۔

8 ۔ اگر خریدار چوب ہدایت نمبر 7 پر عمل نہ کرے۔ تو پھر وہ دوسرے طریقے سے لکڑی باہر نہیں لے جا سکتا۔

حکمران ریاست سوات

فیضاً
۸/۱/۶۰

24

22
8-1-00

# حکمنامہ

## سوات سے عمارتی لکڑی کی برآمد کے متعلق ہدایات

1 :- سوات سے محکمۂ جنگلات حکومتِ پاکستان کی اجازت کے بغیر کسی قسم کی عمارتی لکڑی باہر نکالنے کی اجازت نہیں ہے۔

2 :- عمارتی لکڑی کے باقاعدہ تاجر موجود ہیں۔ جو کہ ریاست کو حسبِ ضرورت ٹینڈر پیش کرتے ہیں۔ اور جس کا ٹینڈر معقول ہوتا ہے۔ اسے متعلقہ جنگل میں کام کرنے کا اجارہ دیا جاتا ہے۔ اور اس سے باقاعدہ اقرارنامہ کیا جاتا ہے۔

3 :- چونکہ سوات کے جنگلات پاکستان کے محکمۂ جنگلات کی نگرانی میں ہیں۔ اس لئے یہ محکمہ مندرجہ بالا تاجروں کو سوات سے لکڑی برآمد کرنے کا پرمٹ دیتا ہے۔

4 :- سوات کے باشندوں کی مقامی ضروریات کے لئے بھی لکڑی مندرجۂ بالا طریقہ سے تاجروں کو دی جاتی ہے جو کہ وہ صرف ان اشخاص کو مہیا کرتے ہیں۔ جنکے پاس ریاست کا اجازت نامہ ہوتا ہے۔ جس پر تعداد وغیرہ لکھی ہوتی ہے۔

5 :- جب تک عرض کنندہ ان لکڑیوں کو سوات کے اندر استعمال نہ کرے۔ ایسا پرمٹ جو پیرگراف 4 میں ذکر کیا گیا ہے

23

21.6
5.7.61

# حکمنامه

هر چا چه د تعمیراتو - پلونو او
کټانې ټیکه د حکومت نه واخسته
او په بل چا ئې خرسه کړه - نو
500
پنځه سوه روپې جرمانه به ورکوی -

حکمران
ریاستِ سوات

فیضان
٥-٧-٦١

22

201
7-1-60

# حکمنامه

چه هرچا که دَ سوات نه زړه سکه (روپئ - پیسے) هر قسم معدنیات یا یو بُت بغیر زما دَ اجازته باهر اُویسته نو دَ سلو نه زرو روپو پورے جرمانه به هغه سړی ورکوی۔

حکمران
ریاست سوات

فیضان
٦-١-٦٠

21

19
7-1-60

# حکمنامه

۱:- هر اسټامپ به بغیر زما د اجازت نه نه ضبط کیګی.

2:- هر شریعت چه شوے وی بغیر زما د اجازت نه به هغه پل سوک پل قاضی ته د نظرثانی یا منسوخ کیدو د پاره نه شی لیګلے.

3:- نوکاردار به زما د حُکم د پاسه پل حُکم نه ورکوی.

4:- زما هر حکم به بغیر زما د اجازته نه ضبط کیګی. هر چا که ضبط که. نو هغه به دا نه غواړی چه زه نوکری اوکړم.

حکمران
ریاست سوات

فیضان
7-1-60

۱۰

۱۸
۶.۱.۶۰

# حکمنامه

۱:- چه یو دکاندار په نابالغه هلک سګریټ نسوار او چلم نه خرسوی او که چا په نابالغه هلک دا څیزونه خرس کړل نو سل روپۍ ۱۰۰ جرمانه به د غه دکاندار ورکوی

۲:- که نابالغه هلک چا په سګریټ، چلم او په نسوارو اولیده نو هغه سړے ئې تو څیزونه دی وهلے شی -

حکمران
ریاست سوات

آن
فیضا
۶/۱/۶۰

۱۹

17
31-10-62

# حکمنامه

چه یو قیدی به په تها نه کے د یو
هفتے نه زیات نه قید کیگی۔
د هفتے نه زیات قیدی به جیل
ته لیگلے شی۔

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۳۱-۱۰-۶۲

13

30 — دیرش روپئ جرم به ورکوي - او که ونه د کال نه زړه

300 — درې سوه روپئ - 150 — پیوچ اووه نیم شل روپئ - 150 — اچر اووه نیم شل روپئ - 100 — نختر سل روپئ

60 — چنار شپېته روپئ - 60 — اوغز شپېته روپئ - 60 — شوه شپېته روپئ

50 — توت پنځوس روپئ - 30 — خو نه دیرش روپئ جرم فی ونه

ورکوي - او هغه لرګي به سرکاري وي -

7:- د منلو رجسټر بالا ونو د بې له اجازته بې قاعدې شاخ تراشۍ چه به

زیاته مقلم کړې شاخ تراشي شوي وي نو 10 — لس روپئ فی ونه - او که به کم

مقلم کړې وي نو 5 — پنځه روپئ فی ونه جرم به ورکوي -

8:- په واده کې که سوګ ځړ ورکړي نو 50 — پنځوس روپئ فی کس جرم به ورکوي

فیصله ٦-١-٦٠

حکمران
ریاست سوات

١٦

# حکمنامه

16 / 6.1.60

400-

۱:- زنا چه ثبوت شي او د مرګ نه بچ شي نو د سلورو سوو روپو به کم نه ناخلي -

100-

2:- په بد نیت د ټش لاس لګولو جرم به د سلو روپو نه کم نه اخلي -

50-

3:- څوک چه سوټ کوټک کړي نو فی ضرب پنځوس روپۍ جرم د - او څوک به یې ورکوي -

20-

4:- هر څوک چه خپل واړه سنته وي - نو په کورکې به د شلو پوړګ زنا نه او

15

باهر پنځلس تنه سړي راوستې شي - که د دې نه زیاته ګنډه په

100-

کورکې یا باهر جوړه کړه نو سل روپۍ جرم به ورکوي -

5:- په سنتو کې که په کورکې ډمامه وهي نو اجازت - باهر تماشه

200-

به نه کوي - او که وې کړه نو دوه سوه روپۍ جرم به ورکوي -

6:- د غزا ونه مثلاً رنډه - پیوچ - ایو نختر - او غز - چهار توغه

توت - شوه که چا بلا اجازته پریکړه که وړوکې ډکې نو فی ډکې مبلغ

16

15
5-1-60

# حکمنامه

هر مُلا چې د یو نابالغه جینئ
نکاح ؤکه نو هغه مُلا به مبلغ
200-
دوه سوه روپۍ جرمانه
ورکوي - او یا به شپګ میاشتې
قید تیروي - او که عامل د نابالغه
جینئ په نکاحنامه بانډې دستخط اُوکه
500-
نو پینځه سوه روپۍ جرمانه به ورکوي
یا به ډسمس وي -

حکمران
ریاست سوات

فیضان
5-1-60

15

14
5.1.60

# حکمنامه

چه کوم یو ډرائیور په ریاست کے په لار کے

موټر نه انسان او واهه او مړ شه نو د

300/– 500/–
درے سوه روپو نه د پنځه سوه روپو پورے

300/–
جرمانه آخستے شی - او د درے سوه روپو نه

500/–
د پنځه سوه روپو پورے د مقتول وارثانو له به

تورے آخستے شی - که ډرائیور زیاتی گنهگار ووه نو قید

سزا به هم ورکړے کیدے شی - که د مقتول وارثان

رضا شی نو صرف د حکومت جرمانه به ورکوی -

حکمران
ریاست سوات

تصدیق
فیضان
۵-۱-۶۰

۱۶

# حکمنامه

۴.۱.۶۱

چه زنانه خیل خاوند ته مهر نه شی بخلے - که مهر بخی نو سرکاری اسٹامپ به په دغه بخانه یو عامل هم نه ورکوی - که زنانه خیل مهر د خاوند نه نه غواړی نو هسے د ورته پریږی د سرکاری تصدیق ضرورت بالکل نشته -

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲-۱-۶۱

13

# حکمنامه

12
4 1 60

۱:- چې د هر قسم خوشحالۍ په موقعه به سوک دروازې
نه جوړه وي- که د خلکو نه سوک معزز میلمانه راتله
نو د هغې متعلق به زه حکم کوم چې په فلانی ځای
دومره دروازې جوړې کړې-

۲:- که زه په خپله د سوات نه باهر یا په سوات کې په دوره
ځم راځم نو هم به سوک دروازې نه جوړه وي- د دې
حکم به په هره علاقه کې په تاکید سره تعمیل کیدے شی:

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲-۱-۶۰

13

11
4.1.60

# حکمنامه

چه په کومه علاقه کښې د پلونو یا سرکاری
آبادی کار کیګی. چه هغه د تحصیل نه په
دوه میله کې دننه وی. نو تحصیلدار یا
حاکم د علاقې به هغه روزانه ګوری
د دوؤ میلو نه باهر چه په پنځو میله
کې دننه وی. نو هفته کې به یو ځل
ګوری. چه کار په ټهیک طریقه سره اوشی
که په کار کې څه نقص راغی نو د علاقې
حاکم تحصیلدار به په دغه کار کې دائمه
ذمه وار وی. لکه څنګه چه نائب سالار
صاحب او ناخود کپتان ذمه وار دے.

حکمران
ریاست سوات

۱۱-۱-۶۰

حال، کوم اجارې چې به یو علاقې کې د یو علاقې اجاره ګر واخلي نو د اجاره شوې علاقې عامل به د هغه بل عامل ته د وخت څخه اطلاع ورکوي - که په میعاد کې دننه وصولي نا ممکن وي نو مرکز ته به رپوټ ورکوي، د میعاد نه بعد به د اجاره ګر نه د قید په صورت کې وصولي کیږي شي - یا په مرکزي آخري حکم به عمل درآمد کیږي شي -

7 :- کوم احکام چې چهاپ شوي په تحصیلانو کې پاتې دي - هغه به په چارج کې عامل د علاقې اخلي - که چرې عامل د علاقې په چارج کې بعض احکام بل ته کم په تعداد کې ورکړي - نو د چارج آخستلو په وقت کې به د مرکز نه مناسب هدایت حاصلوي - که هسې نه حاصل نه کړه - نو د کمو احکامو به بعد د چارج نه د آخري عامل نه جواب طلبي کیږي شي - په صورت د لاپرواهۍ کې به ورله مناسب سزا ورکیږي شي -

8 :- هر حاکم به د خپلې حاکمۍ د عاملانو او هر عامل به د خپلې علاقې د رقم د داخلې پاره رسیدونو د خزانې د سالانه حساب په وقت چیکنګ کوي - او مرکز ته به رپوټ ورکوي - که په موقع د چارج کې په یوه علاقه کې جعلي رسیدات برآمد شو نو کوم چې چارج آخستلی وي - د هغه نه به د هغه جعلي رسیدونو رقم آخستل شي -

9 :- کوم غلې چې د منګوړه په سیټهانو د وزیر صاحب مال په دفتر کې خرڅ شي - د سالانه حسابا په وخت به وزیر صاحب مال د دغه غلو اندراج په تحریري طور د فیصلې په شکل کې به ښتا لیکي - د هغې د وصولۍ به وزیر صاحب مال ذمه وار وي -

10 :- عاملان به د سر دفترانو په حساب دستخط کوي - او د زان نه هم په سمه طور ریکارډ ساتي - د سالانه حساب په وقت به ورسره وزیر صاحب مال حسابا کتاب کوي

فیضا ! حکمران ریاست سوات
۳-۱-۶۰

9

9
3.1.60

# حکمنامه

هرچاچه په ریاست کې غله میدا ئې خرسه
کړي نو دخرسولو په وقت کې مروجه چه
سمه نرخ وي دهغې نه یوه آنه روپۍ منافع
نه به زیات نه آخلي ـ حکومت به صرف یوه
آنه روپۍ پسې دکال منافعه منی ـ

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۳-۱-۶۰

# حکمنامه

هر چا چه رګ اُو نه واهه او
ننګئ په کور کے را اُوځئ نو
50/-
پنځوس روپئ جرم به ورکوی
کلئ د ګونه دِ اُو وهی :-

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲۸-۴-۶۱

7

7
3.1.60

# حکمنامه

۱:- هغه نوکران چه ماهواري نقشي او خزانه سیدو شریف ته راوړي - او واپس خپل ځائے ته ځي - نو صرف دوه کسان به بلا کرایه وړه راوړه شي -

2:- د ټیلیفون لائن مین چه د لائن د اصلاح د پاره ځي نو صرف یو تن بلا کرایه وړے راوړے شي-

3:- مجرم چه د یو علاقے نه بلے علاقے ته بوتلے شي- یا سیدو شریف ته راوستے شي- نو هغه به کرایه ورکوي

4:- د لارئ په فرنټ سیټ کے چه یو سفید پوش میلمه ناست وي نو د یو افسر د پاره به هغه د دغه فرنټ سیټ نه نه شي بیولے-

5:- چه یوه لارئ په لاره کے وړانه شي چه په هغے کے سفید پوش سړے یا سرکاري کار د پاره نوکر وي- او بله لارئ د سورلو ډکه راشي نو دغه لارئ ته د دغه کسانو د وړو اجازت دے-

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۳-۱-۶۰

6

6/1
2.1.60

# حکمنامه

کوم خلق چه خکته مزدورۍ له تلی دی نو د خپلې ناچارۍ
نه تلی دی۔ که د دې ځاۍ نه خانان ملکان یا نور خلق ورپسې خکته
لاړ شي۔ د هغوی سره ډیره شول۔ او د هغوی څرسونه یې کول
څه رقم یې ترې غوختنه یا ئې چندا کوله۔ نو که د دې
پاس لیکلو شوو خبرو ثبوت په وشه نو مبلغ
500 — پنځه سوه روپۍ جرمانه به ترې آخستل شي۔

حکمران
ریاست سوات

نفاذ
۲-۱-۶۰

5

# حکمنامه

شام او لیټ (یعنې مرغ زریني) که به غیر
د اجازت نه په هره علاقه کې
چا اُویشته - نو سل روپۍ فی مارغه
جرمانه به ورکوي -

حکمران
ریاست سوات

فیضان
۲-۱-۶۰

مرغاوې به د سینډر تر سرو یاشت

۶

4
23.11.62

# حکمنامه

10000/-
د لس زره روپو. یا د دے په
دڼا تو روپو استاسې
چه لیکلے شي - نو زمانه ته
پکې تپوس کوئ :-

فقط حکمران
ریاست سوات
۲۳/۱۱/۶۲

3

# حکمنامه

دَ قتل په معامله کے چه دَ مقتول وارثانو له
دیت ورکړے شی نو که دَ مقتول وارثانو
دَ خپل دشمن نه بیا له دَ قتل دا غسته
نو دَ قتل دَ جرم سره به هغه آغسته دیت
هم حکومت له واپس ورکوی:-

حکمران
ریاستِ سوات

فیضام
۶۰-۱-۱

2

2.C
1.1.60.

# حکمنامه

۱- هر قسم ونې چه د چا د کور د چارد یوالئ په دننه حدودو کې ولاړې وی - د هغو متعلق د دغه کور او ونو مالک ته اختیار دے که یې پرے کوی - یا یې ساتی پابند نه دے -

۲- په باغچو باغونو کې هر قسم ونې که یو سړے پرېکوی نو د هغو اختیار هم د دغه ونو مالک ته حاصل دے پرېکولے شی

۳- په باهر زمکو کې چه د چا د هٔه قسم میوه دارے ونې وی هغه هم خپل مالک په هر وقت پرېکولے شی - البته سایه دار یا نورے بے میوے ونې که پرېکوی - نو هله به یې پرېکوی چه [illegible] د هغو بدلې نورے ونې دوه درے کاله مخکې د دغه ونو بیخوا نهلے کړې او دا یې حد ته ورسی چه د دغه ونو کې لوړ کړې

۴- د غوزانو - چنار - خونه - اچر - بیوج - رنزړه ه ونې علاوه د کورنه بل هر ځائے چه وی نو هغه به بغیر د حکومت د اجازت نه هرگز سوک نه پرېکوی:-

حکمران
ریاست سوات

فیضان
1-1-60

# حکمنامه

چه هر يو تحصيل ته سوک فيصلے لره
راڅي. نو هغه به د زان سره
د هيس قسم وسله نه راوړي
که په يو تحصيل کے دننه د فيصلو
په وخت د چا سره وسله
ښکاره شوه. نو تحصيلدار يا حاکم به
مجرم وي.

فيضا
١٩-٦-٦٣

حکمران
رياست سوات

# Pashto Literature & Culture of Swat









دَسوات قومی ترانه

کُل ثنا ربه ستا ده ✻ کُل ثنا ربه ستا ده
ربنا دا دُعاء ده
دا زمونګ اِلتجاء ده
ترحیات سوات زیات کړے له دے ✻ ترحیات سوات زیات کړے له دے
له دے نه یو په سل ګل ګل ✻ له دے نه یو په سل ګل ګل
بادشاه دُم لرے ✻ بادشاه دُم لرے
لرے دُنیا خو آباده ✻ لرے دُنیا خو آباده
ربنا دا دُعاء ده
دا زمونګ اِلتجاء ده
وی اِمام قام تام دِخوشحال ✻ وی اِمام قام تام دِخوشحال
خوشحال دِوی تل تل ✻ خوشحال دِوی تل تل
کُل ثنا ربه ستا ده ✻ کُل ثنا ربه ستا ده
ربنا دا دُعاء ده
دا زمونګ اِلتجاء ده


**Dr. Muhammad Ali Dinakhel**



**2020**


ISBN 978-9936-645-80-6


